# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوٰی فریدیه

شپږم جلد

افادات: محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله
مولانا مفتی **محمد فرید** رحمه الله
جامعه دار العلوم حقانیه اکوړه ختک

تخریج وترتیب: مفتی محمد وهاب منگلوری
مدرس دار العلوم صدیقیه زروبی

ترجمه وکمپوزنگ: **دار الترجمه وکمپوزنگ سنټر**
عبد الغنی پلازه محله جنگی پشاور

زیر سرپرستی: مولانا حافظ **حسین احمد صدیقی** نقشبندی
مهتمم دار العلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی

ناشر: مکتبه رشیدیه اکوړه ختک

**دکتاب نوم:** فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (شپږم جلد)

**افادات:** محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله مولانا
مفتی محمد فرید مجددی زروبوی رحمه الله
شیخ الحدیث وصدر دارالافتاء جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

**ترتیب و تخریج:** مولانا مفتی محمد وهاب منګلوری نقشبندی
دارالافتاء دارالعلوم صدیقیه

**معاون:** مولانا مفتی عصمت الله حقانی

**ترجمه وکمپوزنګ:** دارالترجمه وکمپوزنګ سنټر
عبدالغنی پلازه محله جنګی پشاور

**زیرنګرانی:** برهان الدین صدیقی فاضل جامعه دارالعلوم کراچی
ایم اے عربی پشاور یونیورسټی (فون: ۰۳۴۴_۹۱۲۹۰۲۳)

**مصححین:** (۱) مولانا لطف الرحمن صاحب مدرس ونګران قاسم العلوم شیقدر
(۲) مولانا محمد یعقوب حقانی صاحب

**ضخامت:** ۷۴۰ صفحات

**رومبی چهاپ:** مئی ۲۰۱۴ء ......... رجب ۱۴۳۵ھ

**زیر سرپرستی:** مولانا حافظ حسین احمد صدیقی نقشبندی
مهتمم دارالعلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی (پاکستان)

**ناشر:** مکتبه رشیدیه سردار پلازه اکوړه خټک نوشهره
رابطه نمبر: ۰۳۴۴-۹۰۸۴۶۹۳

# فهرست مضامین

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## باب الایلاء واللعان



## باب الظهار

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب الخلع

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## باب العدة

| صفحه | مضمون |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## باب فی التحلیل



## باب ثبوت النسب

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## فصل في العزل وضبط التوليد

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## باب النفقات

| مضمون | صفحه |
|---|---|

# كتاب الأيمان

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| صفحه | مضمون |
|---|---|



# باب ما یتعلق بالنذر

| مضمون | صفحه |
|---|---|

# کتاب الوقف

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

# باب احکام المساجد

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

| مضمون | صفحه |
|---|---|

# باب ما یتعلق بالمدارس

| مضمون | صفحه |
|---|---|



# کتاب الجهاد

## باب شرائط الجهاد وغیره

## باب الغنائم وقسمتها

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## باب الاستیمان واحکام دار الحرب

## باب الاستعانة من الکفار وغیره



# کتاب الحدود والتعزیرات

## باب التعزیر

## باب حد الزنا

| مضمون | صفحه |
|---|---|



## باب حد السرقة



## کتاب القصاص

## كتاب الدية والكفارة

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |

## کتاب المرتد

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (شپږم جلد)

الحمد لله رب العالمین والصلوٰة والسلام علی سیدنا محمد وآله واصحابه اجمعین وعلی کل من تبعهم باحسان الی یوم الدین، اما بعد!

د فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه شپږم جلد پیش کولې شی، ددې نه مخکې پنځه جلدونه پوره په تیزئ سره چاپ شوی وو، او الله تعالی ورته قبولیت ورکړې وو، دا قبولیت زمونږ د حضرت رحمة الله علیه د علم وعمل، تقوی او طهارت، عجز او تحمل، فقه او فتاوی او په علوم او معارف کې لدنی کامل مهارت او د ارشاد نبوی من کان لله کان الله له، د صحیح مصداق کیدو نتیجه او کرامت دې، پس ښکاره شوه چې دا عظیمه علمی ذخیره ددې بې مثاله فقیه النفس، وسیع النظر مفتی، د لوی محدث، مفسر او عظیم عارف او مرشد قطب الارشاد حضرت مولانا مفتی محمد فرید رحمة الله علیه د علومو او معارف او د دینی خدماتو یوه حصه ده.

کونسی خوبی پر جان دوں کس ادا پر مر مٹوں خوبیاں لاکھ بھری ہیں آپ کی تصویر میں

د ځینې عوارضو په بنا د تاخیر په وجه په شپږم جلد کې ډیر انتظار اوکړې شو، خو د ''دیر آید درست آید،، په مصداق په دیکې جلتی اونه کړې شوه چه په تخریج او ترتیب او په مخکینی طرز او اسلوب کې څه فرق رانه شی. او د مخکینو جلدونو په شان په دې جلد کې هم څه کمې پاتې نه شی.

حقیقت دادې چې د علوم تفسیریه او حدیثیه نه پس په علوم دینیه شرعیه کې چې د فقهې او فتاوی کوم مقام او مرتبه ده، بل علم ته دومره درجه حاصله نه ده، فقهائې عظام او مفتیان کرام چې دوی د امت مسلمه دپاره د روحانی طبیبانو حیثیت لری دغه حضراتو د عرف او عادة الناس او د روزمره راتلونکی زمانې په لحاظ سره د تولو نوو راپیښیدونکو مسئلو حل پیش کړې دې، د قرآن او حدیث د ډیرو علومو او معارفو چینې ئې جاری کړی دی او د علم تږی ئې سیرابه کړی دی، الله تعالی په احناف فقهاؤ کې د دیوبند اکابرین علمائې کرامو ته په علم فقه کې قابلیت او جامعین ورنصیب کړې دې، ټول ددې اعتراف او اقرار کوی، په فقه حنفی کې د فقه او فتاوی د تصانیفو ډیر زیات کتابونه دی، چې په هغې کې د ''فتاوی دیوبند پاکستان معروف به فتاوی فریدیه،، نوم د ځلیدونکی ستوری په شان دې، اود الله تعالی د طرفه چې کوم جامعیت، شهرت او قبولیت دې فتاوی ته ورکړې شوې دې د رڼا ورځې په شان ښکاره دې

د مخکینو جلدونو په شان ما فقیر هرې مسئلې لره د جدا جدا ساتلو اود جامع

عنوان ورکولو اهتمام کړې دې چه په مسئلې پوهېدلو او د مسائلو په تخریج کې آسانی وی، د هرې مسئلې متعلق د فقهې د متداول کتابونو حواله جات او چرته چې د آیت یا حدیث ضرورت وو دهغې تخریج شوې دې، چې جامع او مدلل مسائلو پوهېدلو او راویستلو کې آسانی وی، او چرته چې د زیاتی تشریح او وضاحت ضرورت محسوس شرنو په حاشیه کې د مختلفو حواله جاتو اود قدیم او جدید کتابونو نه د هغې وضاحت شوې دې.

په دې موقع زه فقیر دا خبره ښکاره کول ضروری کنم چې په دې ټول علمی خدمت کې زما هیڅ کمال نشته دا ټول د الله کریم فضل او کرم او خصوصی مهربانی ده.

کنه نو: من آنم که من دانم تهی دامن بدر آرم

ډیره بې انصافی به وی چې په دې موقع د بعضې حضراتو اجمالی تذکره اونه کړم، هغه داچې د ژوند د ټولو نه زیاته قیمتی سرمایه محترم مور اوپلار او استاذان مشائخ او خاصکر سیدی وشیخی واستاذی الکریم حضرت مولانا مفتی سیف الله حقانی مدظله العالی او صاحبزاده مولانا خواجه حافظ حسین احمد صدیقی مدظله العالی چه دا دواړه حضرات ددې فتاوې په نګرانئ، اشاعت او اهتمام کې لګیا دی، ددې مشفقانه دعاګانې اود حضرات علمائې کرامو او مشائخو خصوصی توجو او مفیدې مشورې په دې کارخیر کې ماسره شامل حال دی. او مولانا حافظ ولی الرحمن حقانی حفظه الله د کمپوزنګ مشکل کار په شوق سره سرته اورسولو، زما ددې خدمت په برکت دې الله کریم دې ټولو حضراتو ته صحت او عافیت اوپه عمر کې ښه خیر او برکت ورنصیب کړی.

په آخره کې د زړه په صدق سره د الله کریم نه دعا کوم چه زما دا سعی دې په خپل دربار کې قبوله کړی، او زما دپاره او د ټولو استاذانو مشائخو، محترم مور اوپلار، اولاد او خاصکرد سیدی ومرشدی وشیخی و مولائی محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله حضرت مولانا مفتی محمدفرید صاحب رحمة الله تعالیٰ علیه دپاره دې صدقه جاریه او دائمی ثواب اوګرځوی.........آمین

بجاه سید المرسلین صلی الله علیه وسلم

طالب دعا: فقیر محمد وهاب منګلوری فریدی عفی عنه

رئیس قسم التخصص فی الفقه والافتاء الفرید فقهی اکیډمی
دار العلوم اسلامیه حکومیه سیدو شریف سوات
۲۰۱۳ء | ۱۰ | ۲۳

بسم الله الرحمٰن الرحیم

فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

فتاوٰی فریدیه

# باب الایلاء واللعان

قال الله تبارك وتعالیٰ:

لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ ۚ فَاِنْ فَآءُوْ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۲۶﴾

(سورة البقرة...... ۲۲۶)

.........

# باب الایلاء واللعان

## ښځې ته د نه ورنږدې کیدو قسم کول ایلاء ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو خاوند خپلې ښځې ته ووائی چې قسم دې زه به کله هم تا ته نږدې نه راځم، بیا په څلورمه ورځ خاوند په خپل قسم باندې پښیمانه شی او نن اتمه ورځ ده نو د دې مسئلې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: تاج اکبر اضاخیل بالا نوښهار... ۲۵ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا سړې خپلې ښځې ته نږدې کیدې شی خو د نږدې کیدو نه پس به د قسم کفاره ضروری وی، وهوحکم الایلاء کما صرحوا به (۱) وهوالموفق.

## ښځې ته د نږدې نه ورتلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د خپلې ښځې نه خفه شي او قسم وخوري چې زه به تا ته نږدې نه درځم هغه درې څله دا کار وکړي، خو بیا قسم مات کړی، آیا طلاق واقع شو یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اقبال کوهاټ.... ۱۲۳ کتوبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** که دې خاوند د جماع کولو نه قسم کړې وی او د څلور میاشتو پوره کیدو نه مخکښې ئې قسم مات کړو نو د هغه په قسم باندې طلاق نه راځی او

---

(۱) قال العلامة المرغینانی: واذا قال الرجل لامرأته والله لا اقربک او قال والله لا اقربک اربعة اشهر فهو مول لقوله تعالیٰ: للذین یؤلون من نسائهم تربص اربعة اشهر (الآیة) فان وطیها فی الاربعة الاشهر حنث فی یمینه ولزمته الکفارة لان الکفارة موجب الحنث وسقط الایلاء لان الیمین ترتفع بالحنث الخ- (هدایة ۲:۳۸۰ باب الایلاء)

که ځلور میاشتې ئې پوره کړې وی نو په هغه باندې اول ځل ښځه په یو طلاق بائن باندې مطلقه شوې ده او که د دې نه پس ئې د نکاح تجدید نه وی کړې نو سراسر په حرامو کې اخته دې (١) وهوالموفق

## "زه به ستا نه مخکښ پیدا شوې یم که تاسره مې څه تعلق وساتلو" د دې خبرې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې خاوند ښځې ته د غصې په حالت کې ووایې چې زه به ستا نه مخکښ پیدا شوې یم که ما تاسره څه تعلق وغیره وساتلو. نو آیا دا ښځه طلاقه شوه یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** معرفت فرید احمد (متعلم حقانیه) وړوکې لاهور صوابۍ.. ٣ اپریل ١٩٨٥ء

**الجواب:** احتیاط دا دې چې دا سړې دې د ځلورو میاشتو تیریدلو نه مخکښ د دې ښځې وغیره سره تعلق وساتې چې د ایلاء د حکم نه بچ شی. **هوالموفق**

## ښځې سره د صحبت نه کولو قسم کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د نن نه شپږ میاشتې مخکښ زما وادۀ د یو سازش د لاندې د یوې بدنامې کورنۍ سره وکړې شو، مور او پلار ته مې هم پته نه وه، د وادۀ نه پس ماته معلومه شوه چې ښځې خپل عزت ختم کړې دې، اوس زما ښځه زما تابعداره ده، هغه ماته د سپی پورې هم ویلې دی ما فیصله کړې ده چې دا جینۍ د ښځې جوړولو قابله نه ده پس ما درې ځله قسم وکړو چې زه به د خپلې ښځې سره نه یو ځای کیږم،

---

(١) قال العلامة المودود الموصلی : اذا قال والله لا اقربک او لا اقربک اربعة اشهر فهو مول وکذلک لو حلف بحج او صوم... فان قربها فی الاربعة الاشهر حنث وعلیه الکفارة وبطل الایلاء وان لم یقربها ومضت اربعة اشهر بانت بتطلیقة.
(الاختیار لتعلیل المختار ٢: ١٩٥ باب الایلاء)

پس د هغې څلور میاشتې پوره شوې، ما د هغې نه پس په ښځه باندې دا خبره ښکاره کړه، ښځې مې ټول حال پلار ته وویل، پلار مې غصه شو، خو ما پلار ته وویل چې هغه سره دوباره نکاح کول نه غواړم، اوس هغه طلاق شوې دې یا نه؟ یا به طلاق نامه ورکوم؟ که پلار صاحب دوباره جبرا زما نکاح کول غواړي نو آیا جبرا نکاح کیدې شي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: گوندل .... اٹک..... ۱۹رجب ۱۳۹۳هـ

**الجواب**: واضحه دې وی چې په تاسو باندې ښځه د څلور میاشتو نه پس مطلقه شوې ده په طلاق بائن سره، ستاسو ترمینځ نکاح ختمه شوې ده، **کما فی الدر المختار، والا یقربها بانت واحدة بمضیها** (۲: ۷٥٤)(١) که تاسو دوباره نکاح کول غواړئ نو عدت هم ختمولې شئ خو ستاسو د مرضئ نه بغیر نکاح کول کالعدم او نامنظور ده. **وفی الدر المختار: ولا تجبر البالغة البکر علی النکاح قال العلامة الشامی فی ردالمحتار: ۲: ۴۱۰ ولا الحر البالغ الخ**(٢) **وهوالموفق**

## لاندې الفاظ کنائی او قسم کول ایلاء ده

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما د لور خاوند (زوم) دا لاندې لیکل شوې الفاظ استعمال کړې دی چې ته زما ښځه نه ئې ته زما قابله نه ئې، زما دې قسم وی که زه تاسره صحبت وکړم نو د خپلې مور سره به مې صحبت کړې وی او ته زر د خپل مور او پلار کره لاړه شه، بیا ئې زما لور خپله د لاس نه نیولو سره ما کره پریښودله، اوس زما د لور دپاره شرعی حکم څه دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: چهب ... کیملپور ...شوال ۲ .... ۱۳۸۹هـ

---

(١) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٥٩٥: ۲ باب الایلاء)

(٢) (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳۲۴: ۲ باب الولی)

**الجواب:** د هغه سړي دا الفاظ چې ته زما ښځه نه ئې ته خپل مور او پلار کره لاړه شه، د طلاق د کنایاتو نه دی، پس که خاوند د طلاق په اراده باندې دا الفاظ ویلي وی نو ښځه طلاقه شوې ده کنه نو نه ده طلاقه شوې (۱) او دا لفظ چې زه قسم کوم دا د ایلاء الفاظ دی، پس که خاوند په څلورو میاشتو کې دننه رجوع ونکړه نو ښځه به مطلقه شی،

فی الدر المختار مع رد المحتار ۲: ۵۶۲ (لو قال والله لا اقربك) ای بلا بیان مدة اشار الی انه کالموقت بمدة الایلاء لان الاطلاق کالتأبید (۲) وفی الهندیة: ۱: ۵۰۴ الایلاء منع النفس عن قربان المنکوحة منعاً مؤکداً بالیمین بالله او غیره مطلقاً او موقتاً الخ (۳). وهو الموفق

## د لعان مسئله او د لیکل شوي طلاق حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء کرام د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته چې د هغې نه شپږ اووه بچی پیدا شوې دی، ووئیل چې دا ماشومان زما د نطفې نه نهٔ دی بلکه د غیر نه دی یعنی په خپله ښځه باندې ئې تهمت لګولو حال دا چې حقیقت داسې نه دې، په دې صورت کې په دې سړی باندې لعان راځی یا نه؟ او هغه ته به حد قذف ورکولې شی یا نه او دا زنانه په هغه باندې د همیشه دپاره حرامیږی یا نه؟

---

۱) قال العلامة الاوزجندی: الکنایة ما یحتمل الطلاق ولا یکون الطلاق مذکوراً نصا... لا یقع الطلاق بشیئ من الکنایات الا بالنیة... وعن ابی یوسف رحمه الله تعالیٰ فی الاملاء انه الحق بهذه الخمسة اربعة اخری لاملک لی علیک لا سبیل لی علیک الحقی باهلک لو قال ذلک فی حال مذاکرة الطلاق او فی الغضب وقال لم انو به الطلاق یصدق قضاء فی قول ابی حنیفة الخ. (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ۱: ۴۶۷ فصل فی الکنایات والمدلولات)

۲) الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۵۹۴ باب الایلاء)

۳) (فتاوی عالمگیریه ۱: ۴۷۶ الباب السابع فی الایلاء)

هم دغه شان دې سړی طلاق ثلاثه خپلې ښځې ته لیکل ورکړل چې ته په ما باندې طلاقه، طلاقه، طلاقه ئې، او تاته د بل خاوند کولو اجازت دې د دې نه پس ئې بغیر د حلالې نه دوه میاشتې پس بغیر د تجدید نکاح نه دا زنانه خپله ښځه جوړه کړه او وجه ئې دا بیان کړه چې لیکل شوي طلاق نه واقع کیږی په وینا کیږی د دې مسائلو شرعی حکم څه دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی محب الله.... مئ ۱۶ ....... ۱۹۷۳ء

**الجواب**: (۱) چونکې په پاکستانی قانون کې د حدود جاری کولو اجازت نشته لهذا په دې سړی باندې نه لعان جاری کیدې شی او نه حد قذف، لان الحدود مفوضة الی السلطان لحدیث معروف. (۲) په لیکلو سره طلاق واقع کیږی، کمافی ردالمحتار ۲: ۵۸۹ (۱) وفی الهندیة ۱: ۴۰۳ فلیراجع (۲) وهوالموفق

## د خاوند د لور نه انکار کول او د زنانه د اقرار مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې منکوحې ته ووایې چې ستا د خیټې نه چې کوم هلك پیدا شوې دې، دا زما نه دې او زما ښځه وائی چې دا د بل چا دې، هم ستا د نطفې نه دې، او خاوند په جرګه کې هم انکار کړې دې اوس په دې دواړو کې د چا خبره صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: لطیف c/o مولانا عزیز الرحمن صاحب کوهاله مری ستمبر ۱۹۶۹/۹/۲۷ء

---

۱ ) قال العلامة الشامی: (قوله کتب الطلاق الخ) قال فی الهندیة الکتابة علی نوعین مرسومة وغیر مرسومة ونعنی بالمرسومة ان یکون مصدر او معنونا مثل ما یکتب الی الغائب... وان کانت مرسومة یقع الطلاق نوی اولم ینو الخ۔
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴۶۴: ۲ مطلب فی الطلاق بالکتابة)

۲ ) ومثله (فی فتاوی عالمگیریة ۳۷۸: ۱ الفصل السادس فی الطلاق الکتابة)

**الجواب:** که دې سړی د نفاس په موده کې زیات انکار کړې وی نو د هغه انکار صحیح دې دا جینۍ به صرف مور ته منسوب کیږی، په دې شرط چې لعان جاری شی، او که وروستو ئې انکار کړې وی نو دا انکار نامنظور دې او دا جینۍ به د دواړو طرف ته باقاعده منسوب وی.

فی الهندیة: رجل له امرأة فجاءت بولد فنفاه وقال هذا الولد لیس منی اوقال هذا الولد من الزنا وسقط اللعان بوجه من الوجوه فانه لا ینتفی النسب سواء وجب علیه الحد اولم یجب، وکذلك اذا کان من اهل اللعان فلم یتلاعنا، فانه لاینتفی النسب، کذا فی شرح الطحاوی. (هندیة ١: ٥٤٣) (١) وفی الدر المختار مع ردالمحتار ٢: ٨١٣ نفی الولد الحی عند التهنئة ومدتها سبعة ایام عادة (وعندهما تقدیره بمدة النفاس) وعنده بابتیاع آلة الولادة صح وبعده لا (٢). وهوالموفق

...

١) (فتاوی عالمگیریة ١: ٥١٩ الباب الحادی عشر فی اللعان)

٢) (الدرالمختار مع ردالمحتار ٢: ٦٤١ مطلب الحمل یحتمل کونه نفخا وفیه حکایة، قبیل باب العنین)

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

## فتاوی فریدیہ

# باب الظھار

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

وَالَّذِیْنَ یُظٰهِرُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ ثُمَّ یَعُوْدُوْنَ لِمَا قَالُوْا فَتَحْرِیْرُ رَقَبَةٍ مِّنْ قَبْلِ اَنْ یَّتَمَآسَّا ۭ ذٰلِكُمْ تُوْعَظُوْنَ بِهٖ ۭ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ ۝

(سورة المجادلة.....۳)

.........

# باب الظهار

## ښځه "به په ما د مور په شان وی" ویونکی مظاهر دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید خپلې ښځې زینب ته وویل چې کله هم ته د پلار کور ته لاړې نو په ما به د مور په شان نې. څه ورځې پس د زینب ورور راغلو او هغه سره کور ته لاړه، اوس به د زید دپاره څه حکم وی؟ آیا د ظهار کفاره به په هغه باندې راځی یا نه؟ او دا قید به د همیشه تلو دپاره وی او که په یو کرت تلو سره ختم شوې دې؟ بینواتوجرو

المستفتی: حاجی محمد شریف کرم ایجنسی..... ۱۹۶۹/۵/۱۲ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې دا خاوند (په شرط د نیت د ظهار) مظاهر دې د کفارې ورکولو نه مخکې د دې ښځې سره جماع وغیره نه شی کولې (۱) خو د بیا دپاره به پرې ظهار نه وی لازم لعدم کلمة التکرار (۲) وهوالموفق.

## ښځې ته ویل "ته زما مور نې" او خوښې ته د کنځلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما خوم زما لور ته درې کرته وویل چې ته زما مور نې بیا نې ما (خوښې) ته دا الفاظ وونیل

---

۱) قال العلامة الموصلی: الظهار وهو ان یشبه امراته او عضوا یعبر به عن بدنها او جزآ شائعا منها بعضو لا یحل النظر الیه من اعضاء من لا یحل له نکاحها علی التأبید وحکمه حرمة الجماع ودواعیه حتی یکفر فان جامع قبل التکفیر استغفر الله تعالیٰ. (الاختیار لتعلیل المختار ۲:۲۰۷ باب الظهار)

۲) قال العلامة الحصکفی: وصح اضافته الی ملک او سببه کان نکحتک فکذا حتی لو قال ان تزوجتک فانت علی کظهر امی ماة مرة فعلیه لکل مرة کفارة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۲۶ باب الظهار)

چې زه به تا سره بدکاری کوم، خو د مسجد امام صاحب وویل چې طلاق واقع شوې دې، د واقعې ګواهان هم موجود دی، صحیح مسئله څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد رحیم مسلم ټاؤن راولپنډی.... ۱۳ ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې د وقوع طلاق حکم ورکول بې قاعدې دی. اما الثانی فظاهر لان المحرم هو الوطی دون ارادة الوطی واما الاول فلعدم حرف التشبیه کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲: ۷۹۴ والا ینو شیئا او حذف الکاف لغا وتعین الادنیٰ(۱). وهوالموفق

## دا ښځه به زما خور وی ویلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د خپلې ښځې متعلق دا ووائی چې دا ښځه به زما خور وی، د دې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: فیروز شاه یار حسین صوابۍ... ۱۲ صفر ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې صرف د نکاح تجدید کافی دې که عدت باقی وی او که تیر شوې وی، وهذا حکم الکنایات(۲) ولیس بظهار کما لا یخفی علی من راجع الی العرف(۳). وهوالموفق

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۶۲۶: ۲ باب الظهار)

۲) قال العلامة الحصکفی: والکنایات لاتطلق بها قضاء الا بنیة او دلالة الحال الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۵۰۲ باب الکنایات)

۳) قال العلامة الشامی: (قوله وان نوی بانت علی مثل امی او کامی برا او ظهارا او طلاقا صحت نیته لانه کنایة) ای من کنایات الظهار والطلاق قال فی البحر واذا نوی به الطلاق کان بائنا کلفظ الحرام وان نوی الایلاء فهو ایلاء عند ابی یوسف وظهار عند محمد والصحیح انه ظهار عند الکل لانه تحریم مؤکد بالتشبیه ونظر فیه فی الفتح بانه انما یتجه فی انت علی حرام کامی والکلام فی مجرد انت کامی... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## ښځې ته مور يا خور ويلو سره طلاق نه واقع کيږي

**سوال:** څۀ فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې که يو سړې د غصې په حالت کې خپلې ښځې ته مور يا خور ووائی درې کرته ووايي، بيا هغه خپلې ښځې لره طلاق شده ګڼلو سره هغې سره تعلقات پرې کړی هم په دې حالت کې تقريبا دولس کاله تير شی دولس کاله پس د خط په ذريعه ليکلې طلاق ورکوی خو ليکلې صرف يو نوټس (خط) دې اوس هغه دې ښځې لره څنګه دوباره آبادولې شی؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: حکيم عبدالستار رضا فقير والی بهالونګر ۱۸/۱/۱۹۷۵

**الجواب:** ښځې ته مور خور ويلو سره طلاق نه واقع کيږي، **کما فی الدرالمختار:** والا ينو شيئا او حذف الکاف لغا (۲:۷۹۴)(۱) وجه الدلالة انه مقابل لقوله: وان نوی بأنت علی مثل ای صحت نيته ووقع ما نواه قلت فيحمل علی التوبيخ دون الکرامة کما لا يخفی، خو که په نوټس (خط) کې طلاق ليکل شوې وی نو د هغې حکم آسان دې او که صرف درې وليکل شو نو بغير د تحليل (حلالې) نه خلاصې نشته هغه داچې دا ښځه به بل سړی سره نکاح کوي او خپل هواهش به پوره کوي وروسته به دا دويم خاوند طلاق ورکوي ښځه به د خپل عادت سره سم عدت تيروی بيا به لومړي سړي ته رواکيږي. **وهوالموفق**

## ته زما خور ئې ويلو سره طلاق نه واقع کيږي

**سوال:** څۀ فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره چې زيد ته خپلې ښځې

---

...بقيه ازحاشيه ګذشته] ای بدون لفظ حرام، قلت وقد يجاب بان الحرمة مرادة وان لم تذکر صريحا هذا وقال الخير الرملی وکذا لو نوی الحرمة المجردة ينبغی ان يکون ظهارا وينبغی ان لا يصدق قضاء فی ارادة البر اذا کان فی حال المشاجرة وذکر الطلاق.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۲۶ باب الظهار)

۱ ) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۲۶ باب الظهار)

کنځلې وکړې، زید د جنګ په حالت کې د غصې نه خپلې ښځې ته وویل: ته زما مور خور ئې، نه ئې د طلاق اراده وه او نه د طلاق مذاکره موجود وه، اوس په دې الفاظو سره طلاق واقع کیږي یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: قاري همایون چک نمبر ۲۲ پوسټ خاص ۳۱/۳/۱۹۷۳

**الجواب:** د صدق په شرط به په مستفتي زید باندې منکوحه طلاقه نه وي، في الدرالمختار: والاينوشيئاً اوحذف الكاف لغاً وتعين الادنٰی (۱) وهوالموفق

## که ته مې د کور نه او نه وېستلې نو زه به ستا خوی نم ویلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړي خپلې ښځې ته وویل چې لمونځ مه پرېږده که د نن نه پس دې مونځ پرېښودلو نو تا به د کور نه اوباسم او که ته ما د کور نه او نه ویستلې نو ستا خوی به یم، په دې صورت کې د هغه سړي نیت د طلاق نه وو، اوس هغه زنانه بیا هم مونځ ونکړو آیا دا ظهار دې یا طلاق او که بل څه څیز دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: حافظ اسلام نور تریاب هنګو ....... ۲۲/۱/۱۹۷۵

**الجواب:** د طلاق نیت او تحریم ادات د تشبیه د ذکر کولو په وخت موثر دي، لاعند عدمه، كما يفيده مافي الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲/۷۹۳، والا ينوشياء اوحذف الكاف لغاً (۲) پس په صورت مسئوله کې د عدم تشبیه د وجې نه نه ظهار لازمیږي او نه طلاق، هم دغه شان دا ایلا هم نه ده، لان الاخراج لا يستلزم عدم القربان لامكان القربان خارج البيت فلا يكون ايلاء البتة (۳) وهوالموفق

---

۱) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۲۶ باب الظهار)

۲) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۲۶ باب الظهار)

۳) قال العلامة ابن عابدين: والكناية كل لفظ لايسبق. [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## که د کور نه و نه وتلې نو ستا خوی به یم ظهار نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړې خپلې ښځې ته ووائی چې د کور نه ووځه که ونه وتلې نو زه به ستا خوی یم. پس هغه زنانه و نه وتله ځکه چې د خاوند قسم ئې اوریدلې هم نه وو. اوس دا الفاظ د قسم دی او که د ظهار دی؟ او کفاره څه ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: گل فراز...... ۱/۲//۱۹۷۵

**الجواب:** دا ظهار یا ایلاء نه ده لعدم التشبیه(۱) ولعدم الیمین علی القربان (۲) خو د یمین کفاره ورکول غوره دی، لکونه یمینا فی الظاهر. وهوالموفق.

## د صبی او مجنون ظهار صحیح نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په طلاق کې عاقل او بالغ کیدل ضروری دی یا نه آیا په ظهار کې هم عقل او بلوغ ضروری دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی علی اکبر کوه مری کوهاله.... ۱۹۹۱/۸/۳۰

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] الی الفهم معنی الوقاع منه ویحتمل غیره ولا یکون ایلاء بلا نیة ویدین فی القضاء. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۹۳ باب الایلاء)

۱) قال العلامة الموصلی: الظهار وهو ان یشبه امرأته او عصوا یعبر به عن بدنها او جزئا شائعا منها بعضو لا یحل النظر الیه من اعضاء من لا یحل له نکاحها علی التأبید. (الاختیار لتعلیل المختار ۲:۲۰۶ باب الظهار)

۲) قال الحداد الیمنی: الایلاء هو فی اللغة الیمین وفی الشرع عبارة عن الیمین علی ترک وطیٔ الزوجة فی مدة مخصوصة والایلاء ممدود لانه مصدر الایلاء والمولی من لا یمکنه قربان امرأته فی المدة الا بشیئ یلزمه بسبب الجماع فی المدة. (الجوهرة النیرة ۲:۱۲۹ کتاب الایلاء)

**الجواب:** په ظهار کې هم د مظاهر عاقل او بالغ کېدل شرط دی، **کما فی الطلاق، وفی الهندیة: وشرط الظهار ان یکون الزوج من اهل الکفارة فلا یصح ظهار الذمی کالصبی والمجنون (۱). وهوالموفق**

## خاوند ته ورور ویلو سره ظهار نه لازمیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې تی وی پروګرام "دین و دنیا" کې یو عالم وویل چې که زنانه خپل خاوند ته ووائی چې ته زما ورور ئې نو په دې سره ظهار واقع کیږی، آیا دا مسئله صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: احمد گل پشاور

**الجواب:** د طلاق او ظهار تعلق د خاوند سره دې، د ښځې د داسې کولو هیڅ اعتبار نشته

**لان الطلاق والظهار لا یکون الا من الزوج العاقل البالغ المسلم، وفی الهندیة: وشرط الظهار ان یکون الزوج من اهل الکفارة ومن الشرائط ان لا یکون معتوهاً ولا مدهوشاً ولا مبرسماً ولا مغمی علیه ولا نائماً الخ(۲)۔ وهوالموفق**

## ته زما د مور خور برابر ئې. زما د مور په شان ئې. فارغه ئې. الفاظو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته وویل چې ته زما د مور خور برابر ئې او د نن تاریخ نه ته زما د مور په شان ئې د نن تاریخ نه نو زما د طرف نه فارغه ئې، دا خبره هغه د ډیرو خلقو مخکې کړې ده، اوس د طلاق وغیره څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد اشراف چمن کوټ، آزاد کشمیر .... ۱۹۷٦/۱۰/۱۳

---

(۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۸-۵:۱ الباب التاسع فی الظهار)

(۲) (فتاویٰ عالمگیریة ۸-۵:۱ الباب التاسع فی الظهار)

**الجواب:** د دې سرې اول کلام لغو دې، او د دويم کلام بنياد په نيت باندې دې يعنی که د نکاح د ختمولو په ارادې سره ئې ويلې وی نو طلاق بائن به واقع شی او که د جماع د حرمت په ارادې سره وی نو ظهار به وی، او کلام سوم په ظاهر کې د کنايات نه دې چې د طلاق د واقع کيدو دارومدار په نيت باندې دې، يدل على الاولين ما فى شرح التنوير: وان نوى بانت على مثل امى اوكامى وكذا لوحذف على (خانية) برا اوظهارا اوطلاقا صحت نيته ووقع ما نواه لانه كناية والا لم ينو شيئا اوحذف الكاف لغا (هامش ردالمحتار ۲:۷۹۴)(۱) ويدل على الثالث ما فيه ايضا فالكنايات لا تطلق بها قضاء الابنية اودلالة الحال وفى ردالمحتار ۲:۶۳۶ قوله قضاء قيد به لانه لا يقع ديانة بدون النية ولووجدت دلالة الحال(۲) پس د نيت متعلق دې تحقيق وکړی چې د حکم شرعی تعين وشی. وهوالموفق

## په جنګ کې ښځې ته "زما مورې خاموشه شه" ويلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د ښځې او خاوند ترمينځه جګړه شروع وه، او دې دوران کې خاوند خپلې ښځې ته وويل چې "زما مورې ته خاموشه شه" په دې سره په نکاح باندې څه اثر پريوځی؟

بينوا توجروا

المستفتی: آصف محمود اټک ښهر...... ۲۷/۳/۱۹۷۸

**الجواب:** چونکې په دې الفاظو کې تشبيه نشته په دې وجه په دې سره نه ظهار لازميږی او نه طلاق، كما فى الدر المختار ۲/۷۹٤. والا ينو شيئا اوحذف

---

۱) (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۶۲۶:۲ باب الظهار)

۲) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۵۰۱،۵۰۲ باب الكنايات)

الکاف لغاً وتعین الادنی ای البر یعنی الکرامة ویکره (١). وهو الموفق

## معلق بالشرط ظهار او د قبل الکفاره پیدا شوی ماشوم حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړې خپلې ښځې ته ووائی ﴿لوفعلت کذا فأنت علی مثل امی﴾ چې که تا دا کار وکړو نو ته په ما د مور په شان ئې په دې سره د هغه اراده د قسم وه، اوس سوال دا دې چې آیا ظهار په شرط د تعلیق صحیح دې؟ او د شرط د وقوع نه پس به په دې باندې د ظهار احکام جاری کیږی؟ او که هغه د ظهار کفاره ادا نه کړه او د خپلې ښځې سره ئې مباشرت وکړو نو د هغه څه حکم دې؟ په دې موده کې چې کوم ماشوم پیدا شی هغه به ولد الزنا وی یا نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: سید صالح...... ۳/۱۲/۱۹۷۲

**الجواب:** دا ظهار معلق بالشرط دې او صحیح دې. کما فی الهندیة ۱/۵۳۴ **یصح ظهار زوجته تعلیقاً (٢) فیجری علیه احکام الظهار بعد وجود الشرط (٣)**. او د ظهار د وجې نه نکاح نه ماتیږی خو وطی حرام ده،

---

١) (الدر المختار علی هامش رد المحتار ۶۲۶:۲ باب الظهار)

٢) وفی الهندیة: یصح ظهار زوجته تعلیقا بان قال ان دخلت الدار وان کلمت فلانا فانت علی کظهر امی کذا فی البدائع.
(فتاویٰ عالمگیریة ۵۰۹:۱ قبیل الباب العاشر فی الکفارة)

٣) قال العلامة الشامی: قوله (وان نوی بانت علی مثل امی او کامی برا او ظهارا او طلاقا صحت نیته لانه کنایة) ای من کنایات الظهار والطلاق ... قال فی البحر واذا نوی به الطلاق کان بائناً کلفظ الحرام وان نوی الایلاء فهو ایلاء عند ابی یوسف وظهار عند محمد والصحیح انه ظهار عند الکل ... وقال الخیر الرملی وکذا لو نوی الحرمة المجردة ینبغی ان یکون ظهارا الخ.
(فتاویٰ شامیة علی الدر المختار ۶۲۶:۲ باب الظهار)

كما فى حالة الحيض فلايكون ولده من الزنا نعم يجب عليه الاستغفار، فى الهندية ۱: ۵۳۲ ان وطئها قبل ان يكفر استغفر الله تعالىٰ ولا شيئ عليه غير الكفارة الاولىٰ... المظاهر اذا لم يكفر ورفع امره الى القاضى يحبسه القاضى حتى يكفر او يطلق كذا فى الظهيرية(۱). وهوالموفق

### ښځې ته بغير د تشبيه نه په خور مور ويلو سره ظهار نه لازميږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د غصې په حالت کې ما خپلې ښځې ته وويل چې د ننه نه پس ته زما خور ئې. د هغې نه وروستو د جينې والو جرګه وکړه چې په هغې کې د کلی تقريبا ټول مشران او امام صاحب شامل وو، جرګې فيصله وکړه چې د غصې په حالت کې داسې خبره شوې ده د دې سزا دې د قرآن کريم نه ورکړې شی نو مولوی صاحب د ۲۸ پارې نه فيصله وکړه چې يا دوه مياشتې مسلسل روژې اونيسه يا په شپيتو مسکينانو باندې خوراک وکړه ما په شپيتو يا د شپيتو نه په زياتو مسکينانو باندې خوراک وکړو آيا دا فيصله صحيح ده؟ بينواتوجروا

المستفتی: حوالدار محمد يعقوب خان... ۱/۹/۱۹۷۳

**الجواب:** چونکې تاسو داسې نه دی ويلی چې ته په ما باندې د مور خور په شان ئې لهذا ستاسو دا لفظ ويل مکروه دی خو په تاسو باندې کفاره نشته، لما فى الدرالمختار على هامش ردالمحتار(۲: ۷۹۴) والاينوشيئا اوحذف الكاف لغا وتعين الادنى اى البريعنى الكرامة ويكره قوله انت امى الخ(۲). والتفصيل فى ردالمحتار فليراجع(۳). وهوالموفق

---

۱) (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۵۰۶، ۵۰۷ الباب التاسع فى الظهار)

۲) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۶۲۶ باب الظهار)

۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله او حذف الكاف)..[بقيه حاشيه برصفحه آئنده

## په كفاره او ظهار كې د مثل پيسو فطرانه وركولو حكم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې د ظهار په كفاره كې كه رقم د فطرانې د رقم په مثل ادا كړى نو دا به جائز وى كه ناجائز؟ بينواتوجروا

المستفتي: محمد غوث بلوچستان........١٣٨٩هـ

**الجواب:** په قرآن كريم كې عبادة دا حكم كړې شوې دې چې كله ئې په اعتاق او صيام باندې قدرت نه وى نو شپېتو مسكينانو ته دې خوراک وركړې شى، او فقهاء كرامو ليكلي دى چې هر مسكين ته دې فطرانه وركړې شى،

قال الله تعالىٰ: فمن لم يستطع فاطعام ستين مسكينا (الآية) (١) وفي الهداية ٣٩٤ ويطعم كل مسكين نصف صاع من بر او صاعا من تمر او شعير او قيمة ذلك لقوله عليه الصلوٰة والسلام في حديث اوس بن الصامت وسهل بن صخر (سلمة بن صخر) لكل مسكين نصف صاع من بر (٢)۔ وهو الموفق

...

...بقيه از حاشيه گذشته ] بان قال انت امى ومن بعض الظن جعله من باب زيد اسد در منتقى عن القهستانى قلت ويدل عليه ما نذكره عن الفتح من انه لا بد من التصريح بالاداة، (قوله لغا) لانه مجمل فى حق التشبيه فما لم يتبين مراد مخصوص لا يحكم بشيئ فتح (قوله ويكره الخ) جزم بالكراهة تبعا للبحر والنهر والذى فى الفتح وفى انت امى لا يكون مظاهرا و ينبغى ان يكون مكروها فقد صرحوا بان قوله لزوجته يا اخية مكروه وفيه حديث الخ۔

(فتاوىٰ شاميه هامش الدر المختار ٢:٦٢٦ قبيل باب الكفارة)

١ ﴾ (سورة المجادلة آيت: ٤ پاره ٢٧)

٢ ﴾ (هداية ٢:٣٩٣ فصل فى الكفارة كتاب الطلاق)

بسم الله الرحمٰن الرّحيم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوٰی فریدیه

(شپږم جلد)

# باب الخلع

........

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

# باب الخلع

قال الله تبارك وتعالیٰ:

فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ اللَّهِ ۙ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا افْتَدَتْ بِهِ ۗ

(سورة البقرة........۲۲۹)

.........

# باب الخلع

## د خلع وعدې سره طلاق نه کیږی، خلع د عقد د انشاء نوم دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسمی زمان بنځه په صنوبر پسې وتښتیده او لاړه، لس کاله تیر شو د صنوبر د طرف نه د طلاق کوششونه کیدل خو زمان په یو صورت کې هم او نه منله. آخر د ښهر معتبرین د شرعی احکاماتو طرف ته زمان راغب کړو، هغه وویل چې که ما ته درې زره روپۍ راکړې نو زه به طلاق ورکوم، پس د صنوبر مشر ورور په جرګه کې موجود وو او د صنوبر د طرف نه ئې د وکیل په حیثیت خلع منظور کړه، په مقرر ورځ باندې په مقرر ورځ باندې زمان او د صنوبر ورور د اسلامی جرګې وړاندې حاضر شو جرګې زمان ته وویل چې تا چې پیسو اخستلو سره د خلع کومه وعده کړې وه د هغې دپاره تیار ئې؟ زمان وویل چې خلع خو ما ته منظور ده او زه طلاق ورکوم زما نور شرطونه هم دی ١: د شلو زرو روپو کالی او د خرچې د یوې ماشومې چې هغه به پیۍ (شیدې) څښل د مور سره وه د هغې په عوض کې که څوارلس کناله ځمکه راکوئ نو زه طلاق ورکوم جرګې انکار وکړو، په دې انکار باندې هغه د جرګې نه پاڅیدو او لاړو، اوس ١: آیا د زمان بنځه په خلع مقرر کولو سره طلاقه شوه یا نه؟ ٢: صنوبر سره د ښهر د معتبرینو او د اهل جرګه د رورولۍ تعلقات ساتل جائز دی یا نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** مولوی عبدالهادی قریشی کوټ نجیب الله هزاره ... ۲۵/۱۱/۱۹۷۲

**الجواب:** ١: چونکې زمان خلع نه ده کړې صرف وعده ئې کړې ده لهذا په هغه باندې بنځه نه ده طلاقه شوې، **لان الخلع عقد وانشاء**(١) ٢: که صنوبر خپل

---

١ وفی الهندیة: لو قال خلعت نفسک منی بکذا فقالت خلعت قیل یصح وقیل لا یصح مطلقا والمختار انه لا یصح الا اذا اراد به التحقیق لانه سوم ظاهراً ...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده _

ځان زاني او ګناهګار کړي نو فاسق او لائق د تعزير دې او که مستحل وي نو کافر او مرتد دې (١) او بهر حال هغه سره اعزازي تعلقات ساتل حرام دي وهوالموفق

## زنانه خاوند ته طلاق نه شي ورکولې خو خلع ورسره کولې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې مسماة فلانۍ بيان کوي چې زه خپل هوش او حواس قائم ساتلو سره په الله پاک باندې قسم کولو سره تحريري بيان کوم چې زما د خاوند د فلاني قوم د فلانۍ بې حيايۍ او بدکارۍ د وجې نه د هغه د کور د ښځې او خاوند تعلقات بالکل ختموم چې مذکور خاوند که د څه قسم جبر زما په مور پلار باندې کوي يا په څه حيلې سره هم ما حاصلول غواړي نو زما د عصمت او مال و نفس او هر قسم نقصان به ذمه دار وي. لهذا درخواست دې چې حاملين شريعت دې زما په دې مهم کارکې مدد کولو سره د مشکلاتو تدارک وفرمائي. **بينواتوجروا**

سائله .... هکړاکيړي مري ...........١٩٧٥ء/١٣/١١

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] كذا فى محيط السرخسي ولو قال خلعتك بكذا فقالت نعم فليس بشيئ كانها قالت نعم خلعتني ولو قالت رضيت او اجزت صح وكذا لو قال طلقني بكذا فقال نعم فليس بشيئ لانه وعد بخلاف قولها انا طالق.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١:٤٨٨ الباب الثامن فى الخلع وما فى حكمه الفصل الاول)

١) قال العلامة ابن عابدين : فى شرح العقائد النسفية استحلال المعصية كفر اذاثبت كونها معصية بدليل قطعي وعلى هذا تفرع ما ذكر فى الفتاوىٰ من انه اذا اعتقد الحرام حلالا فان كان حرمته لعينه وقد ثبت بدليل قطعي يكفر والا فلا بان تكون حرمته لغيره او ثبت بدليل ظني وبعضهم لم يفرق بين الحرام لعينه ولغيره وقال من استحل حراما قد علم فى دين النبى عليه الصلاة والسلام تحريمه كنكاح المحارم فكافر.

(فتاوىٰ شامية هامش الدر ٢:٢٩ مطلب استحلال المعصية القطعية كفر)

**الجواب**: واضحه دې وی چې زنانه خاوند ته طلاق نه شی ورکولې. (١) خو خلع کولې شی یعنی خاوند ته مال ورکولو سره د هغه په رضا باندې آزادی حاصلولې شی. (٢) بله دا چې دا زنانه په ظلم او بدکردارئ سره بغیر د اجازت نه، د مور پلار وغیرهما کور ته تښتیدلې شی. (٣) وهوالموفق

## دویم سړې د زنانه په اذن سره اصالة یا وکالة خلع کولې شی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید د ښځې سخر بدکردار دې څو کرته ئې د اینګور په عصمت باندې د ډاکئ اچولو ناکام کوشش وکړو خو ښځې ترې ځان بچ کړې دې او خپل رشته دار ئې د سخر د ارادې نه خبرهکړې دی چې هغه خلق دې دا سخر منع کړی خو هغه منع نه شو بیا یوې جرګې په زنانه باندې حکم صادر کولو سره دا فیصله وکړه چې که دا زنانه بل سړی سره وادهٔ کول غواړی نو هغه به اته سوه روپئ ادا کوی، او د هغې نه پس به ورته موجوده خاوند طلاق ورکړی، اوس زنانه خواره مور پلار

---

١) قال العلامة الحصکفی: لحدیث ابن ماجة الطلاق لمن اخذ بالساق.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٤٦١ کتاب الطلاق)

٢) وفی الهندیة: اذا تشاق الزوجان وخافا ان لا یقیما حدود الله فلا بأس بان تفتدی نفسها منه بمال یخلعها به.
(فتاوی عالمگیریة ١: ٤٨٨ الباب الثامن فی الخلع الفصل الاول)

٣) قال الشیخ عزیز الرحمن الدیوبندی: چې کله هغه (خاوند) داسې شریر النفس او ظالم او بدکار دې او سائله په معصیت باندې مجبوروی نو په مذکوره حالت کې هغه سره نه دی اوسیدل پکار او شریعت انسان نه مجبوروی چې د داسې ظالم او فاسق سره پاتې شی، خو بغیر هغې نه د طلاق ورکولو نه د نکاح د ماتیدلو او د بلې نکاح د جواز هیڅ صورت نشته، پس هر څنګه چې وی د حکامو په ذریعه دې په هغې باندې زور اچولو او جبر کولو سره طلاق واخستلې شی او پس د عدت تیرولو نه دویمه نکاح صحیح ده.
(فتاوی دار العلوم دیوبند ١٠/ ٢٤٩ باب سیزدهم)

کړه اوسیږی او د پیسو ورکول هم نا ممکن دی آیا په زنانه باندې د دې پیسو اداکول لازم دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: مولانا ضياء الحق حقاني باجوړ سکاؤټس مالاکنډ ايجنسی ... ۱۹۷۳/۹/۶

**الجواب:** په وادهٔ کړې شوې باندې پیسې مقرر کول یو غلط رسم دې د هغه زنانه دپاره ضروری دی چې خاوند ته پیسې ورکولو سره خلع (طلاق بالمال) حاصل کړی، یا چې کوم انسان د وادهٔ کولو اراده لری نو هغه اصالة یا وکالة (د مخکې خاوند سره) خلع وکړی او د زنانه په اذن سره دې د بدل خلع ضامن شی، لانهم صرحوا بصحة خلع الاجنبي مع كون البدل عليه فليراجع الى رد المحتار ۲/۷۸۲(۱) والهندية ۱/۵۲۹(۲). وهوالموفق

## د بدل خلع مقدار مقرر نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما ښځه نافرمان ده د هغې مور پلار هغه په زبردستۍ سره کور ته بوتله او د ډیرې تقاضې کولو باوجود ئې نه واپس کوی یو لور هم ورسره ده چې یو نیم کال عمر لری چونکې د جینۍ د مور پلار ماحول ښه نه دې کوم چې زما د لور په وروستنی کردار باندې اثر اچولې، زه خپله ښځه په کور کې اوسیدل غواړم خو د هغې مور پلار د طلاق غوښتنه کوی او زما د مجبوریاتو نه ناجائزه فائده اوچتوی ، زما په

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: وفي الفصولين اذا ضمنه الاب او الاجنبي وقع الخلع ثم ان جازت نفذ عليها وبرئ الزوج من المهر والا ترجع به على الزوج والزوج على المخالع وان لم يضمن توقف الخلع على اجازتها فان اجازت جاز وبرئ الزوج عن المهر والالم يجز.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۱۷ مطلب في خلع الصغيرة)

(۲) وفي الهندية: رجل قال لرجل اخلع امرأتك على هذا العبد او هذه الالف او هذه الدار ففعل فالقبول الى المرأة فان قبلت الخلع طلقت وعليها تسليم البدل المسمى فان استحق البدل ضمنت.
(فتاوی عالمگیریة ۱:۵۰۳ الفصل الثالث في الطلاق على المال)

وادهٔ او ښځه باندې خرچ تقریبا پنځوس زره روپۍ راغلي دي نو آیا د خلع په صورت کې دجینۍ اودهغې دموریلارنه یولاک روپۍ وصولولي شم؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد گل فرازمری...۱۹۷۸/۷/۲۹

**الجواب:** په شریعت کې د خلع د بدل څه خاص مقدار مقرر نه دې خو د مهر د مقدار نه زیات وصولول مکروه دی یدل علیه فی الهندیة ۱/۵۱۵ (۱) او که ستاسو دعوی صحیح او سره د دلیل وی نو تاسو ماشومه واپس اخستلې شئ (شامی) (۲) وهوالموفق

## په خلع کې د مهر واپس اخستلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د نکاح نه پس په ښځه خاوند کې که نفرت او اختلاف پیدا شی او ښځه د خلع مطالبه وکړی نو د ښځې دپاره حق مهر واپس اخستل جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: ډاکټر عروج اعوان پشاور چهاونی......۱۲/۱/۱۹۹۰

**الجواب:** چې ظلم د خاوند د طرف نه وی نو د هغه دپاره مهر واپس اخستل حرام دی او که د ښځې د طرف نه وی نو د مهر مقدار واپس اخستل جائز دی

---

(۱) وفی الهندیة: اذا تشاق الزوجان وخافا ان لا یقیما حدود الله فلا بأس بان تفتدی نفسها منه بمال یخلعهابه... وان کان النشور من قبلها کرهنا له ان یأخذ اکثر مما اعطاها من المهر ولکن مع هذا یجوز اخذ الزیادة فی القضاء کذا فی غایة البیان.
(فتاوی عالمگیریة ۴۸۸: ۱ الباب الثامن فی الخلع الفصل الاول)

(۲) قال العلامة الحصکفی: الحضانة تثبت للام... الا ان تکون مرتدة او فاجرة فجورا یضیع الولد به کزنا وغناء وسرقة ونیاحة کما فی البحر والنهر بحثا قال المصنف والذی یظهر العمل باطلاقهم کما هو مذهب الشافعی ان الفاسقة بترک الصلاة لا حضانة لها الخ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۶۸۸: ۲ باب الحضانة)

اودهغې نه زیات اخستل غوره نه دی (شامی باب الخلع ۲/۷۰۰) (۱) وهوالموفق

## د مهر مسمی نه زیات مال باندې خلع جائز ده خو غوره نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د ترهٔ د لور خالدې سره نکاح وکړه د کور په تنازعات خو زیات تر د خالدې د مور پلار د کم عقل توب د وجې نه هغوی خالده خپل کور ته بوتله، اوس زید بل وادهٔ د عابدې سره وکړو د خالدې پلار وائی چې خالدې ته طلاق ورکړه خو زید خالده پریښودل نه غواړی، خو پلار ئې نه منی، اوس زید مطالبه ولیکله چې طلاق به ورکوم خو پنځه زره روپۍ په طور د خلع راکوي، آیا داسې معامله جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: فیض الحق حقانی ریاض سعودي عرب .... ۱۹۸٤ء/۷/۱٦

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت د زید دپاره د مهر مسمٰی نه زیات مال اخستل جائزدی خو غوره نه دی، بلکې غوره دا ده چې څومره مو ښځې ته مهر ورکړې وي هم په هغه مقدارباندې خلع وکړئ (شامی ۲/۷۷۲) (۲) وهوالموفق

## دویم خاوند باندې د اول خاوند د وادهٔ د خرچ شرط کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید خپلې ښځې

---

۱ ﴾ قال العلامة الحصكفی : وكره تحريما اخذ شيئ ويلحق به الابراء عمالها عليه ان نشز وان نشزت لا ولو منه نشوز ايضا ولو باكثر مما اعطاها على الاوجه فتح وصحح الشمنی كراهة الزيادة وتعبير الملتقى لا بأس به يفيد انها تنزيهية وبه يحصل التوفيق-
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:٦٠۹ باب الخلع)

۲ ﴾ قال العلامة الحصكفی : وكره تحريما اخذ شيئ ان نشز وان نشزت لا ولومنه نشوز ايضا ولو باكثر مما اعطاها على الاوجه فتح وصحح الشمنی كراهة الزيادة وتعبير الملتقى لا بأس به يفيد انها تنزيهية وبه يحصل التوفيق-
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:٦٠۹ باب الخلع)

ته درې طلاقه د ګواهانو په مخکې ورکړی خو په طلاق نامه باندې د هنده دا اقرار لیکلې شوې دې چې کله هغه نکاح ثانی د خاوند ثانی سره وکړی نو دویم خاوند په اول خاوند (زید) ته د وادهٔ هغه خرچه کومه چې ئې د هنده په وادهٔ باندې کړې وه اول خاوند ته ادا کوی، اوس دا اقرار د هنده د طرف نه نهٔ دې چې دا خرچه به زه ادا کوم بلکې دویم خاوند لیکلې ده، اوس عمرو د هنده سره نکاح وکړه، آیا په عمرو باندې دا خرچه لازمه ده که نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** حاجی سراج الدین هری پور .....۱۹۸۳ء/۶/۹

**الجواب:** دا معامله د عام طلاق معامله ده خلع نه ده، پس په دې خاوند باندې چاته خرچه ورکول واجب نه دی، بله دا چې زید هنده ته د نکاح د منع کولو هیڅ اجازه نه لري بهر حال دا شرعی معامله نه ده بلکې د جاهلانو غیر اسلامی رسم دې. **وهوالموفق**

## د خاوند د رضامندئ نه بغير خلع صحيح نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې یو سړې هر اعتبار سره (مثلاً د مال او نفقې صحت) سره صحیح دی خو ښځې په عدالت کې بغیر د څه شرعی عذر نه د خاوند خلاف د خلع دعوی دائر کړې ده او خاوند په خلع باندې راضی نه دې، آیا د قاضی دپاره جبرا خلع کول جائز دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد زمان اټک خضرو ...... ۱۹۸۷ء/۲۹/۹

**الجواب:** چې کله خاوند باقاعده ښځې لره آباد ساتی او حقوق زوجیت یې هم ادا کوی نو بغیر د شرعی وجې نه د قاضی خلع او تفریق جائز او منظور نه دی. **لعدم رضا الزوج بالخلع كالطلاق، وفى الهندية ۱/۵۰۳، وشرطه شرط الطلاق** (۱). **وهوالموفق**

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۴۸۸:۱ الفصل الاول فی شرائط الخلع وحکمه)

## د نابالغ کیدو په حالت کې د خلع او طلاق مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید نکاح د شپږو کالو په عمر کې د بازيرې سره په عمر د اتو کالو شوې وه هغه وخت دواړه نابالغ وو، د نکاح نه څلور کاله پس هغوی جینئ ته طلاق نامه لیکلې وه، د دې نه پس ئې په هغه کال باندې د هغه جینئ په بل ځای کې کوېژدن وکړه. په دې نکاح او کوېژدن کې د مسمی زید مور پلار هم شریک شو او نکاح اوتړلې شوه. په طلاق نامه کې چې د خلع په صورت کې کوم رقم لیکلې شوې دې هغوی نه دې ورکړې د دې نه پس هغوی په دې باندې اصرار کوی چې نورې پیسې هم راکړئ، آیا شرعی حیثیت سره د هغوی دا رقم اخستل صحیح دی یا نه؟ د فریق اول والاخلق صرف د پیسو د تقاضې د وجې نه ضد کوی چې د جینئ زمونږ ده، په دې علاقه کې اکثر داسې واقعات راغلې دی، د وړو ماشومانو کوېژدن کولو سره بیا طلاق ورکولو سره د جینکو د مور پلار نه په زرګونو روپئ طلب کوی او دا پیسې د خلع په حیثیت سره وصولوی د علاقې مولوی صاحبان دې ته جائز وائی، شرعی حکم څه دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: معروف خان پل کوټ مانسهره......۱۴۰۱ھ/۷/۶

**الجواب:** په ظاهره د خلع په وخت کې دا ماشوم نابالغ معلومیږی او د نابالغ خلع نامنظور او کالعدم وی لما فی الهندیة ۵۲۹/۱، **اذا خالع الاب علی ابنه الصغیر لایصح وخلع الصبی باطل**(۱) او په تقدیر د بلوغ سره دا معامله د خلع شرعی نه ده. پس په ښځې باندې دا رقم واجب الادا نه دې، **ونظیره ما فی الهندیة** ۵۲۲/۱، **ولو قال انت طالق وعلیك الف فقبلت طلقت بلامال عند ابی حنیفة رحمه الله**(۲) او که باقاعده په شهادت سره خلع شرعی ثابته شی نو دا

---

۱) (فتاوىٰ عالمگیریة ۵۰۴:۱ قبیل الباب التاسع فی الظهار)

۲) (فتاوىٰ عالمگیریة ۴۹۶:۱ الفصل الثالث فی الطلاق علی المال)

پیسې به په ښځه باندې واجب الادا وی (۱) **هوالموفق**

## د صبی او مجنون دپاره خلع کول صحیح نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې نابالغ ماشوم خپلې ښځې ته په عوض د مهر یا نورو مالونو خلع وکړی، نو آیا د هغوی خلع صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: انعام الله سوکړی بنون... ۲۲ نومبر ۱۹۷۴ء**

**الجواب:** کوم سړې چې د طلاق ورکولو اهل نه وی هغه د خلع کولو اهل هم نه دې. **لما فی الهندیة: وشرطه شرط الطلاق** (۲) پس د نابالغ او مجنون خلع کول صحیح نه دی. **وفی الهندیة: وخلع الصبی باطل والمعتوه والمغمی علیه من مرض بمنزلة الصبی فی ذلك هكذا فی المبسوط** (۳). **وهوالموفق**

## نابالغ نه خپله خلع کولې شی او نه د هغه د طرف نه کیدلې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د خپل نابالغ هلك واده د نابالغې جینۍ سره وکړو، ایجاب و قبول د مورپلار په ذریعه وشو جینۍ شپږ کالو پورې باقاعده اباده وه، بیا یوه میاشت د خپلې ترور په کور کې د اوسیدو نه پس بیا یو کاله پورې د خاوند په کور کې اوسیده، بیا په بالغه کیدو باندې ئې په خپله مرضۍ بل واده وکړو، د دې نه پس د هلك پلار په درې سوه روپۍ باندې خلع حاصل کړه، هلك ورته هیڅ طلاق ورنکړو حال دا

---

۱) **قال العلامة المودود الموصلی: الخلع وهو ان تفتدی المرأة نفسها بمال لیخلعها به فاذا فعلا لزمها المال-**

**(الاختیار لتعلیل المختار ۲:۲۰۰ باب الخلع)**

۲) **(فتاوی عالمگیریة ۱:۴۸۸ الباب الثامن فی الخلع وما فی حكمه)**

۳) **(فتاوی عالمگیریة ۱:۵۰۴ قبیل الباب التاسع فی الظهار)**

چې هلك نابالغ دې د داسې نكاح او هلك باره كې څه حكم دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی:** مولانا عزیز الرحمن کوهاله مری......۳۰ دسمبر ۱۹۶۸ء

**الجواب:** نابالغ نه خپله خلع كولې شی او نه يې پلار د هغه د طرف نه خلع كولې شی لهذا د هغه جينۍ نكاح په بل ځای كې كول ناجائز دی، په دې شرط چې پورته ذكر شوې واقعات صحيح وی

وفی الهندية ۱: ۵۲۹ اذا خالع الاب علی ابنه الصغير لايصح ولا يتوقف علی اجازته كذا فی فتاوی قاضی خان خلع السكران والمكره جائز عندنا وخلع الصبی باطل هكذا فی المبسوط انتهی مختصرا (۱). وهوالموفق

## د اختلاف راتلو په صورت كې زنانه د خلع كولو يا د نكاح فسخ كولو اجازه شته

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې د يو سړی واده وشو او باقاعدګۍ سره ښځه او خاوند تر يوې مياشتې پورې آباد وو، بيا د ناداری د وجې نه ئې ښځه وهلو ټكولو سره د كور نه وويستله، زنانه تقريبا د څلورو كالو نه زيات د پلار په كور وه، هم په دې وخت كې هغه ته د جرګې په طور ووئيلې شو چې ښځه آباده كړه او خرچه او جامې ورته وركړه او حق مهر وركولو سره جينۍ بوځه، نو هغه په جواب كې ئې وويل چې نه جامې وركوم، نه خرچه او نه جينۍ بوځم بلكې د هغه جرګې د ځای نه لاړو، بيا ئې د څو كسانو مخكې دا وويل چې د حق مهر نه چې مو كوم كالې وركړې دې هغه دې ماته واپس كړې شی او پنځه زره روپۍ په بدل كې خلع كولو سره جينۍ چې چېرته غواړی واده كولې شی، دومره لوئې رقم مور پلار نه شی ادا كولې، صرف د جينۍ تنګول مقصود دی، په دې صورت كې د خلع او خلاصی شرعی طريقه څه ده؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی:** كريم ګل خان بفه هزاره

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۱:۵۰۴ قبیل الباب التاسع فی الظهار)

**الجواب:** فقهاء کرامو تصریح کړې ده چې په جماع وغیره سره ټول مهر د خاوند په ذمه واجب کیږي خو چې کله دا مهر مهر معجل نه وي نو د مرګ یا د طلاق په وخت واجب الادا ګرځي د دې نه مخکې واجب الادا نه وي،

**في الهندية ۱ : ۳۲۳ والمهر يتأكد بأحد معان ثلاثة الدخول والخلوة الصحيحة وموت احد الزوجين الخ (۱) وفيها ايضا ۳۳۹ وان كان لا الى غاية معلومة فقد اختلف المشائخ فيه قال بعضهم يصح وهو الصحيح وهذا لان الغاية معلومة في نفسها وهو الطلاق او الموت (۲)**

لهذا د دې خاوند په ذمه باندې مهر واجب دې خو واجب الاداء به هغه وخت وي چې کله مرګ یا جدائي راشي، او ښځه که مناسب مقدار پیسې (د مهر مقدار) ورکولو سره خاوند خلع ته تیار کړي نو دا ډیر غوره صورت دې، او که خاوند نه د زوجیت حقوق ادا کولو ته تیار وي او نه مناسب خلع ته تیاریږي نو په دې صورت کې دا زنانه د مسلمان حاکم په ذریعه د هغه نه د طلاق (تنسیخ نکاح) حاصلولو مجاز ده. **(الحيلة الناجزة)(۳) وهو الموفق**

---

۱ ) (فتاویٰ عالمگیریة ۳۰۳:۱ الفصل الثانی فیما یتأکد به المهر والمتعة)

۲ ) (فتاویٰ هندیة ۳۱۸:۱ الفصل الحادی عشر فی منع المرأة نفسها بمهرها والتاجیل الخ)

۳ ) قال الشاه اشرف علی التهانوی : زوجه متعنت لره اول لازم دی چې په څه طریقې سره خلع وغیره وکړي خو که باوجود د سعي بلیغ نه څه صورت جوړ نه شي نو د سختې مجبورئ په حالت کې د موالکو په مذهب باندې د عمل کولو ګنجائش شته ځکه چې د هغوی په نزد زوجه متعنت ته د تفریق حق ملاویدې شي. او د سختې مجبورئ دوه صورتونه دی یو دا چې زنانه خپله په حفظ او عزت سره په کسب معاش باندې قدرت ساتي او دویم صورت د مجبورئ دا دې چې اګر چې په سهولت یا په مشکله د خرچ انتظام کیدې شي خو د خاوند نه په بیل اوسیدو کې د ابتلاء معصیت قوی ویره وي، او صورت د تفریق ئې دا دې چې زنانه خپله مقدمه قاضی اسلام یا مسلمان حاکم او د هغه د نه کیدو په صورت کې جماعت المسلمین ته پیش کړي او چاته چې پیش شي هغه دې د معاملې...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د ناداری په صورت کې ښځې ته بغیر د خلع نه فسخ نکاح لیکل او بیا د مقدمې صورت

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مسمی مقبول علی په وخت د وادهٔ خپله مسماة زاهدې بي بي ته په سرکاری کاغذ باندې ولیکل چې د عدم اتفاق زوجین په صورت کې مسماة مذکوره ته رجوع بعد العدالت کیدو سره بغیر د خلع نه د نکاح د فسخ کولو اختیار وی، اوس بنا په عدم اتفاق مسماة مذکوره رجوع عدالت عالیه ته وکړه، پرلپسې تر شپږو میاشتو پورې عدالت مقبول علی طلب کړو خو هغه د خبریدلو باوجود عدالت ته پیش نه شو، بالآخر عدالت ذکر شوې لیکلو ته کتلو سره د نکاح د فسخ کیدو حکم جاری کړو، آیا دا شرعا جائز ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالحمید مظفر آباد هزاره...... ۳ نومبر ۱۰۷۵

**الجواب:** د ضرورت په وخت قضاء علی الغائب جائز ده.

كما فى ردالمحتار ۴: ۲۳۹، فالظاهر عندى ان يتأمل فى الوقائع ويحتاط ويلاحظ الحرج والضرورات فيفتى بحسبها جوازا اوفسادا الى آخر ماقال فليراجع (۱)

باقی په دې خاص صورت کې د نکاح د فتوې ورکولو نه مونږ معذور یو تر څو پورې چې د ټولو مسائلو نه مونږ خبر نه شو، هم دغه شان چې د دې نه هم خبر نه شو چې په هغه لیک باندې دستخط د عقد نکاح نه مخکې شوې دي او که وروستو. (۲) **وهوالموفق**

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] د شرعی شهادت وغیره په ذریعه پوره تحقیق وکړی او که د زنانه صحیح ثابته شی چې سره د وسعت نه ورته خرچ نه ورکوی نو د هغې خاوند ته به ووئیلې شی چې د زنانه حقوق ادا کړه یا ورته طلاق ورکړه کنه نو مونږ به په مینځ کې جدائی راولوو دې نه پس هم که هغه ظالم په څه صورت باندې عمل ونکړی نو قاضی کوم چې شرعا د هغه قائم مقام وی د هغه په ښځه دې طلاق واقع کړی. (الحیلة الناجزة ۱٦٤، حکم زوجه متعنت فی النفقة)

۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴: ۳۷۷ قبیل مطلب فی القضاء علی المسخر)

۲) قال العلامة النووی: اذالم يفهم المفتى السوال اصلا...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د خلع نه پس د تجدید نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د خپلې ښځې په بدکارئ کې د اخته کیدو د وجې نه د هغه په قتل پسې لګیدلې دې خو بدامنی کونکی خلق زیات وو هم په دې وجه هغه تر نهو لسو ورځو پورې هغه هم په دې سوچ او فکر کې وو چې د څو کسانو سره ئې قتل کړم، هم په دې وخت کې خالد زید ته مشوره ورکړه چې مجرم صحیح طریقې سره تا ته معلوم نه دی لهذا غوره دا ده چې د منکوحه مهر تا ته معاف کړې شی او ته هغې ته طلاق ورکړې دا صورت به ستا دپاره غوره وی، زید د خالد دا مشوره قبلولو سره ښځې ته یو طلاق ورکړو د هغې نه څو ورځې پس زید وویل چې زه د خپل طلاق نه رجوع کوم، په دې صورت کې دا رجوع صحیح ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: اشرف الدین

**الجواب:** په صورت مسئوله کې که زید د خپلې ښځې سره جماع وکړه نو د هغه مراجعت صحیح دې کنه نو تجدید نکاح (دنکاح تازه کول) ضروری ده، هم دغه شان د خلع په صورت کې د نکاح تجدید ضروری دې.

فی ردالمحتار ۲: ۷۲۸ ان الخلوة الصحیحة لاتکون کالوطی فی الرجعة انتهی (۱) وفی الدرالمختار وحکمه ان الواقع به ولو بلا مال وبالطلاق الصریح علی مال طلاق بائن، او په ظاهره دا معامله خلع ده، کما لایخفی ویؤیده ما فی ردالمحتار

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] ولم یحضر صاحب الواقعة فقال الصیمری یکتب یزاد فی الشرح لیجیب عنه او لم افهم ما فیها فاجیب قال وقال بعضهم لا یکتب شیئا اصلا قال ورأیت بعضهم کتب فی هذا یحضر السائل لیخاطبه شفاها.
(شرح المهذب للنووی ۱۶ فصل فی آداب الفتوی)

۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۵۷۴ باب الرجعة)

وارادبالمال مایشتمل الابراءمنه حتی لوقالت ابرأتك عمالی علیك علی طلاق ففعل برئ وبانت(١)۔وهوالموفق ٢:٧٧٠

١) (الدرالمختار مع ردالمحتار ٢:٦٠٨ قبیل مطلب ابرأته من حق یکون للنساء علی الرجال)

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

# باب العدة

قال الله تبارك وتعالىٰ:

يَآأَيُّهَا النَّبِيُّ إِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَطَلِّقُوهُنَّ لِعِدَّتِهِنَّ وَأَحْصُوا الْعِدَّةَ

(سورة الطلاق........١)

.........

# باب العدة

## د طلاق د عدت وخت د طلاق د ورکولو د وخت نه شروع کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د طلاق عدت د کوم وخت نه شروع کیږی چې کله طلاق ورکړی یا زنانه ته علم اوشی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مطیع الله مدینه منوره سعودی عرب... ۵ جمادی الثانی ۱۴۰۱ هـ

**الجواب:** د طلاق عدت د طلاق د وخت نه شروع کیږی نه د علم د وخت نه. (شامی) (۱) وهوالموفق

## د عدت وخت د طلاق ورکولو نه شروع کیږی او د خاوند د طرف نه شرطونه لګول باطل دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه زنانه مطلقه مغلظه ده او د طلاق نه مخکې د مور پلار په کور باندې تر دولسو کالو پورې پاتې شوې ده، آیا د طلاق نه پس به پوره موده تیروی او که په هغې کې به څه کمې وی؟ په طلاق نامه کې ئې دا شرط ولیکلو چې زنانه به دویمه نکاح نه کوی کنه نو خاوند ته به شل زره روپۍ ورکوی، د دې شرط څه حکم دې؟

**بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولانا حسین احمد فاضل بنوری ټاؤن

امام مسجد بالا حصار پشاور... ۱۹ دسمبر ۱۹۸۵ء

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: ومبدأ العدة بعد الطلاق وبعد الموت علی الفور وتنقضی العدة وان جهلت المرأة بهما ای بالطلاق والموت لانها اجل فلا یشترط العلم بمضیه سواء اعترف بالطلاق او انکر، قال ابن عابدین: (قوله لانها اجل) ای لان العدة اجل فلا یشترط العلم بمضیه ای بمضی الاجل. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۶۶۲ باب العدة)

**الجواب**: دا زنانه د لیکلو د وخت نه مطلقه شوې ده او هم د دې وخت نه عدت شروع شوې دې (۱) او د خاوند دا شرط لګول باطل او نامنظور دې خو په خاوند باندې نفقه د عدت باقاعده واجب ده که دا زنانه ناشزه نه وی. (۲)

وهوالموفق

## د نابالغې مدخول بها ښځې د عدت مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی ښځه چې تراوسه پورې نابالغه وه او وادۀ ئې شوې وو، هم دې دوران کې هغه دې نابالغې ښځې ته طلاق ورکړو اوس د دې زنانه دعدت څه حکم دې؟

بینواتوجروا

المستفتی: عبدالجبار پشین بلوچستان ... ۱۳ مارچ ۱۹۷۷ء

**الجواب**: نابالغه زنانه به د حیض د نه کېدو د وجې نه درې میاشتې حیض تیروی که دې دوران ئې حیض شروع شو نو د میاشتو په ځای به د حیض نه عدت شروع کوی

وفی الهندیة: والعدة لمن لم تحض لصغر اوکبر اوبلغت بالسن ولم تحض ثلاثة اشهر کذا فی النقایة وکذا لورأت دما یوما ثم لم ترفعدتها بالشهور وهو الصحیح ولو رأت ثلاثة دما ثم انقطع فعدتها بالحیض (۳). وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصکفی : ومبدأ العدة بعد الطلاق وبعد الموت علی الفور وتنقضی العدة وان جهلت المرأة بهما ای بالطلاق والموت. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۶۲ باب العدة بعید مطلب فی وطء المعتدة بشبهة)

۲) قال العلامة الحصکفی : لا نفقة لاحد عشر ... وخارجة من بیته بغیر حق وهی الناشزة. قال ابن عابدین : تنبیه : تزوج معتدة البائن انما لا یسقط نفقتها ما دامت فی بیت العدة والا صارت ناشزة کما فی الذخیرة.(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۷۰۲ باب النفقة)

۳) (فتاوی عالمگیریة ۱:۵۲۶ الباب الثالث عشر فی العدة)

## په مطلقه غير مدخول بها باندې عدت نشته

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د يوې پيغلې جينۍ د يو ځوان هلک سره نکاح د شريعت مطابق قائم شوه دا پيغله جينۍ ناڅاپه د يو پردي سړي سره لاړه چې په هغې باندې ورته زوړ خاوند فورا طلاق ورکړو، اوس به دا دويم خاوند د عدت نه مخکې نکاح کوی يا بغير د عدت نه؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: سخی سرور، وانړه خان محمد ری آئی خان .... ۲۷ اپرايل ۱۹۷۰

**الجواب:** چې نه جماع شوې وی او نه خلوت، نو دا زنانه د طلاق نه پس متصل نکاح کولې شی په دې باندې عدت نشته. قال في الهندية: ۱: ۵۴۹ هي انتظار مدة معلومة يلزم المرأة بعد زوال النكاح حقيقة او شبهة المتأكد بالدخول اوالموت كذا في شرح النقاية للبرجندى (۱). وهوالموفق

## په غير مدخول بها باندې عدت وفات واجب او دې دوران کې به نکاح ثانی باطله شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يوه کوېژدن کړې زنانه چې د هغې نکاح لوستلې شوې وی او د رخصتۍ نه مخکې ئې خاوند وفات شو، آيا په هغه زنانه باندې عدت واجب دې؟ او که د عدت تيريدلو نه مخکې بل سړی سره نکاح وکړې شی نو جائز به وی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: گل حسين کوهاټ ښهر .... ۱۱ اگست ۱۹۷۴ء

**الجواب:** په دې زنانه باندې عدت واجب دې، بغير د عدت تيرولو نه ئې نکاح حرام او کالعدم ده. في الدر المختار: والعدة للموت اربعة اشهر وعشر من

(۱) (فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۵۲۶ الباب الثالث عشر في العدة)

الايام مطلقا وطئت اولا ولو صغيرة (هامش درمختار ۲: ۸۳۰)(۱) وفي الهندية ۱: ۲۹۸ لا يجوز للرجل ان يتزوج زوجة غيره وكذلك المعتدة سواء كانت العدة عن طلاق اووفاة اودخول الخ(۲). وهوالموفق

## د غیر مدخول بها د عدت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د یوې زنانه سره نکاح وکړه، د خلوت نه مخکې باز خان دا منکوحه زنانه په زبردستئ سره خپل کور ته بوتله، اوس باز خان د زید سره صلح وکړه او هغه زنانه ته ئې طلاق ورکړو اوس که باز خان هغه زنانه لره په نکاح اخلی نو آیا دا زنانه به عدت تیروی؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالحلیم متعلم حقانیة..... ۱۲ جنوری ۱۹۷۲

**الجواب:** دا زنانه د دې بل سړی سره بغیر د عدت نه نکاح کولې شی.

فی الدرالمختار: وسبب وجوبها (ای العدة) عقد النكاح المتاكد بالتسليم وما جرى مجراه من موت اوخلوة، هامش ردالمحتار ۲: ۸۲۴(۳) وفيه ايضا وكذا لا عدة لو تزوج امرأة الغير ووطئها عالما بذلك ودخل بها (هامش الرد ۲: ۸۳۵)(۴). وهوالموفق

## د طلاق رجعی د عدت دوران کې که خاوند مړ شی نو زنانه به عدت وفات تیروی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې

---

۱) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۵۵ مطلب فى عدة الموت باب العدة)

۲) (فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۲۸۰ القسم السادس المحرمات التى يتعلق بها حق الغير)

۳) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۵۰ باب العدة)

۴) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۶۷ قبيل الفروع آخر باب العدة)

ښځې ته دوه طلاق رجعي ورکړل، د عدت دوران کې خاوند وفات شو، اوس به دا زنانه عدت وفات تیروی یا عدت طلاق؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: محمد انور متعلم تعلیم القرآن.....۳۱ مارچ ۱۹۷۳

**الجواب**: د طلاق رجعي په صورت کې به بالاتفاق عدت وفات تیروی. وفی الهدایة۲/۴۰۳اما اذاکان رجعیا فعلیها عدة الوفاة بالاجماع(۱) وهوالموفق.

## د درې کالو نه غیر آباد زنانه به هم د طلاق نه پس عدت تیروی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې تر درې کالو پورې زنانه د خاوند نه غیر آباد او بیله وه، اوس خاوند درې کاله پس طلاق ورکړو د هغه زنانه عدت به څه وی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: عبد الصمد پیر سباق نوښهر.......۳۰ جمادی الثانیة ۱۴۰۱ هجری

**الجواب**: دا زنانه د درې حیضه تیریدلو نه پس په بل ځای کې وادۀ کولې شی. (شامی باب العدة) (۲)، وهوالموفق

## د درې کالو نه د غیر آبادې زنانه د طلاق د عدت مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه زنانه د درې کالو نه غیر آباد ده بیا د هغې خاوند طلاق ورکړو. نو د دې زنانه د عدت څه مسئله ده آیا پوره عدت به تصور کولې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: نیاز محمد یعقوب دهاوی آزاد کشمیر ۲۶ جولائی ۱۹۷۳ء

---

۱) (هدایة ۲:۴۰۲ باب العدة)

۲) قال العلامة الحصکفی: ومبدأ العدة بعد الطلاق وبعد الموت علی الفور وتنقضی العدة وان جهلت المرأة بهما ای بالطلاق والموت، قال ابن عابدین: وهذا مبنی علی تعریف البدائع من ان العدة اجل ضرب لانقضاء ما بقی من آثار النکاح وقدمنا ترجیحه. (الدرالمختار مع هامش ردالمحتار ۲:۶۶۲ باب العدة)

**الجواب:** په داسې زنانه باندې مکمل عدت تیرول ضروری دی، لان عدة المدخول بها ثلاثة قروء ولم یستثنوا منها هذه المرأة وامثالها والمسئلة اجماعية. (١) وهوالموفق

## د زانیه د عدت او تجدید نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی بازګل منکوحه د عالم ګل نومی سړی سره لاړه، تقریبا د پنځه ځلویښت ورځو پورې دواړه غائب وو بیا سل کلومیټره لرې په یو ځای کې دواړه ونیول شو، دکوم ځای نه چې هغوی د پاکستان طرف ته تښتیدل پولیس عالم ګل د ګرفتارولو نه پس جیل ته ولیږلو او زنانه پلار ته حواله کړې شوه، درې میاشتې پس مشرقاضي فیصله وکړه چې زنانه د سابقه خاوند بی بی ده او بیا هغه ته حواله کړې شوه، ښځه او خاوند هم هغه شان خوشحاله دی اوس د کلی خلق بازګل د مانځه په صف کې اودریدلو ته نه پریږدی، بازګل وائی چې ما دوباره نکاح کړې ده خلق وائی چې د هغه حلاله نه ده شوې نکاح به څنګه صحیح شی، بعض وائی چې د نامحرم سړی سره په اوسیدو باندې ئې نکاح ماته شوې ده او طلاق واقع شوې دې لهذا د مسئلې حقیقت او د عقد نکاح نه پس د عدت حکم بیان کړئ؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** مولوی زین العابدین برکلی علاقه کلکت ... ۱۵ شوال ۱۴۰۲ھ

---

(١) وفی الهندية: العدة هی انتظار مدة معلومة یلزم المرأة بعد زوال النکاح حقیقة او شبهة المتأکد بالدخول او الموت کذا فی شرح النقاية للبرجندی، رجل تزوج امرأة نکاحا جائزا فطلقها بعد الدخول او بعد الخلوة الصحیحة کان علیها العدة... اذا طلق الرجل امرأته طلاقا بائنا او رجعیا او ثلاثا او وقعت الفرقة بینهما بغیر طلاق وهی حرة ممن تحیض فعدتها ثلاثة اقراء.
(فتاوی عالمگیرية ١:٥٢٦ الباب الثالث عشر فی العدة)

**الجواب:** (۱) که هغه اغواء کونکی د دې زنانه سره عقد نکاح نه وی کړې نو په دې زنانه باندې هیڅ عدت نشته. لمافی الهندیة: لاتجب العدة علی الزانیة (۵۴۶/۱)(۱)

(۲) او د تجدید نکاح ضرورت بهر حال نشته او که دا زنانه مستحله وی او زنا لره حلاله گنی نو د ارتداد د وجې نه ئې اوله گناه باطله شوې ده او دویمه نکاح ئې ضروری ده.(۲)

(۳) او دې خاوند لره د جماعت د مانځه نه منع کول ناجائز او عوامی تعزیر دې اسلامی تعزیر نه دې. قال الله تعالی: ومن اظلم ممن منع مساجد الله ان یذکر فیها اسمه (الایة)(۳). وهوالموفق

## د مفقود الخبر د ښځې د عدت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مفقود الخبر ښځې څومره عدت دې او کله به شروع کیږی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد خان سواتی ...... ۱۲ مارچ ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د مفقود ښځه به د حکم بالموت نه پس د وفات عدت تیرولو سره په بل خای کې نکاح کوی، کمافی الدارالمختار یحکم بموته فی حق ماله فتعتد منه عرسه للموت الخ، هامش ردالمحتار: ۳۵۸/۳(۴) وهوالموفق

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۵۲۶:۱ الباب الثالث عشر فی العدة)

۲) قال الملا علی قاری: ان استحلال المعصیة صغیرة کانت او کبیرة کفر اذا اثبت کونها معصیة بدلالة قطعیة.
(شرح فقه الاکبر للقاری ۱۵۲ بیان استحلال المعصیة کفر)

۳) (سورة البقرة آیت: ۱۱۴ پاره: ۱ رکوع: ۱۴)

۴) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳۶۳:۳ قبیل کتاب الشرکة)

## د نفاس په حالت کې د طلاق ورکولو په صورت کې د عدت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې چه یوه زنانه د وضع حمل نه دوه ورځې پس طلاقه شی نو آیا د عدت دپاره به دا نفاس د درې حیضو قائم مقام شمار کولې شی. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** گل احمد میان کانو کلے ۲۷ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** څنګه چې د حیض دوران کې د طلاق ورکولو په وخت دا حیض نامکمل او غیر محسوب وی. (۱) هم دغه شان د نفاس دوران کې به هم دا حکم وی. کمافی الدرالمختار: والنفاس کالحیض، هامش ردالمحتار ۲/۵۷۸ (۲) وهوالموفق

## که خلوت وشی خو ښځه ئې ځان ته نه پرېږدی نو آیا دا خلوت صحیح دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې خپله منکوحه یو کوټې ته داخلولو سره خلوت وکړي خو ښځه خاوند خپل بدن مس کولو ته نه پرېږدی، دا خلوت صحیح دې یا فاسده، او په دې خلوت باندې د مطلقه کیدو په صورت کې به عدت تیرول واجب وی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولانا لطیف الرحمن کوټکه حیات خان تختی خیل

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله ولا اعتداد بحیض طلقت فیه) ای اذا طلقها فی الحیض لا یحسب من العدة لان ما وجد قبل الطلاق لا یحتسب به منها لعدم التجزی فلو احتسب کمل من الرابعة فوجبت کلها لعدم التجزی ایضا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۶۰ قبیل مطلب فی وطئ المعتدة بشبهة)

(۲) قال العلامة الحصکفی: والنفاس... کالحیض فی کل شیئ الا فی سبعة، قال ابن عابدین: وصورة العدة اذا قال لامرأته اذا ولدت فانت طالق فولدت ثم قال مضت عدتی فانها تحتاج الی ثلاث حیض ما خلا النفاس.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۱:۲۱۹ باب الحیض قبیل مطلب فی حکم وطئ المستحاضة)

**الجواب**: دا مختلف فیه مسئله ده، کما فی الهندیة ۱:۳۰۵ وان خلابها ولم تمکنه من نفسها اختلف المتأخرون فیه، قال بعضهم لاتصح الخلوة وقال بعضهم تصح کذا فی السراج الوهاج(۱) پس په احتیاط باندې عمل کول پکار دی، فلوکان وقع تحریه علی الجملة منهافهی لیس بأقل من کلبها العقور(۲) وهوالموفق.

## د یو کرت خلوت صحیحه تیرولو نه پس هم عدت طلاق تیرول لازمی دی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مور پلار په یو خای کې د خپل ځوی واده وکړو ځوی صرف یوه شپه خپلې ښځې ته لاړو، د ناداریٔ او طبیعت د نه لګیدو د وجې نه ئې بغیر د جماع کولو نه سحر بهر راتلو سره د ګواهانو مخکې طلاق ورکړو آیا په دې زنانه باندې چې جماع ورسره نه ده شوې عدت واجب دې یا نه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عزیز الرحمن هزاره.... ۱۴ اپریل ۱۹۷۴ء

**الجواب**: خلوت صحیحه قائم مقام د وطی دې، پس په دې زنانه باندې د طلاق عدت واجب دې،

فی الدر المختار: والخلوة بلا مانع حسی وطبعی (الی ان قال) کالوطئ فیما یجیئ الخ فی تاکد المهر والنفقة والسکنی والعدة انتهی بحذف یسیر(۳) .وهوالموفق

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۰۵ الفصل الثانی فیما یتأکد به المهر والمتعة)

۲) قال العلامة الحصکفی: والکلب یمنع ان کان عقورا مطلقا وفی الفتح وعندی ان کلبه لا یمنع مطلقا او کان للزوجة والا یکن عقورا وکان له لا یمنع.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۶۸ مطلب فی احکام الخلوة)

۳) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۶۷،۳۷۰ مطلب فی احکام الخلوة)

## معتده صرف د موهومه خطرې د وجې نه نه بلکې د ضرورت د وجې نه سفر کولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو پیر او مرشد چې د هغوی حلقه متوسلین او مریدین تر لرې لرې پورې خوره شوې ده او د الله پاک مخلوق د هغوی نه مستفیض شوې دی د هغوی دوه بیبیانې دی د یوې نه ئې اولاد شته او د دویمې نه ئې اولاد نشته دواړه بیبیانې ئې په مختلف ښهرونو کې اوسیږی، اوس هغه بزرگ وفات شوې دې او د اولاد والا بی‌بی ئې په دغه ځای کې اوسیږی کوم ځای کې چې د حضرت پیرصاحب مزار دې اوس د متوسلین خواهش دې چې دا بله بي بي هم هغه مقام ته بوځی نو آیا هغه اهلیه د عدت دوران دا سفر کولې شی او حال دا چې هغه ځای تقریبا سل میله دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: حافظ محمد عباس، احمد پور شرقیه ...... ۶ فروری ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د معتده دپاره صرف د موهومه خطرې د وجې نه سفر جائز نه دې خو د ضرورت د وجې نه جائز دې. لاکن المتحقق ههنا الاول دون الثانی، والمجوزهوالثانی دون الاول، کما فی الدرالمختار: ولا تخرجان منه الاان تخرج اویتهدم المنزل اوتخاف انهدامه اوتلف مالها اولا تجد کراء البیت ونحو ذلك من الضرورات (هامش ردالمحتار ۲: ۸۵۴) (۱). وهوالموفق

## د خاوند او مور پلار د کور نه علاوه په بل ځای کې عدت تیرول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید د لور وادهٔ د عمر سره وشو بیا هغه طلاق مغلظه ورکړو زید هغه جینئ بکر ته حواله کړه، او د هغې په کور کې ئې شپه تیره کړه د زید حکم شرعا څه دې؟ او د بکر څه

(۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۷۴ فصل فی الحداد)

حکم دې چا چې د عدت په ورځو کې یوه زنانه ساتلې ده؟ او بکر هغې سره نکاح کول غواړي؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمود الهی خضرو اټک...۲۱ جولائی ۱۹۷۹ء

**الجواب:** که د بکر وغیره سره ئې د خلوت صحیحه نوبت متیقن یا مظنون نه وي نو د مور په کور او د بکر په کور کې څه خاص فرق نشته. اصل حکم خو د خاوند په کور کې د عدت تیرولو دې، د عوارض د وجې نه دې اصل لره متروک کول ګران دی. کما لا یخفی علی من نظر الی حدیث فاطمة (۱) وعبارات الفقهاء فی باب العدة (۲). وهوالموفق

## دوران عدت کې د پنشن د وصولولو دپاره تلل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما خاوند وفات شوې دې زه هره میاشت خپل متعلقه دفتر ته ځم او د دې وصولۍ نه بغیر کورنی اخراجات نه پوره کیږي، د غریبۍ ژوند تیروم، آیا زه د پنشن د وصولولو دپاره بهر وتلې شم یا نه؟ بعض خلق د وتلو وائی او بعض د نه وتلو، صحیح مسئله څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: نامعلوم ........ لاهور ملتان روډ...... ۲۵ جنوری ۱۹۸۴ء

---

(۱) عن عروة ان عائشة انکرت ذلک علی فاطمة وزاد ابن ابی الزناد عن هشام عن ابیه عابت عائشة اشد العیب وقالت ان فاطمة کانت فی مکان وحش فخیف علی ناحیتها فلذلک ارخص لها النبی ﷺ. (صحیح البخاری ۲:۸۰۲ باب المطلقة اذا خشی علیها فی مسکن زوجها الخ کتاب الطلاق)

(۲) قال العلامة ابن نجیم: قوله وتعتد ان فی بیت وجبت فیه الا ان تخرج او ینهدم ای معتدة الطلاق والموت تعتد ان فی المنزل المضافة الیهما بالسکنی وقت الطلاق والموت ولا یخرجان منه الا لضرورة لما تلونا من الآیة الخ.
(البحر الرائق ۴:۱۵۴ فصل فی الحداد)

**الجواب:** که د پنشن د وصولۍ دپاره ستاسو تلل ضروري وي او د بل په ذریعه دا کار نه مکمل کیږي او د وخت تیرولو د مشکلاتو ښکار یئ نو د مجبورۍ د وجې نه تاسو په قدر د ضرورت د کور نه وتلې شئ، بیا فورا واپس راتلل ضروري دي، فی الدرالمختار ۵۳۶ جلد ۳ وتعتدان فی بیت وجبت فیه ولا تخرجان منه الا ان تخرج اوینهدم المنزل اوتخاف انهدامه اوتلف مالها اولاتجد کراء البیت ونحو ذلك من الضرورات فتخرج لاقرب موضع الیه(۱) .وهوالموفق

## د معتده د نفقې انتظام نه کیدو او عصمت د وجې نه بل ځای ته منتقل کیدې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو ځوان وادۀ کولو سره شپږ میاشتې پس په یو جنګ کې شهید شو د هغه ځوان درې وروڼه هم دي، اوس به د هغه شهید ښځه عدت چېرته تیروی د خاوند په کور کې که د مور او پلار په کور کښ؟ هغه زنانه د عدت پرواه نه کول سره د مور او پلار کور ته تیښته اختیار کړه، بغیر د اجازت نه دا کار جائز دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: قاضي خلیل الرحمن دوبیان صوابي

**الجواب:** په دې کونډه باندې عدت تیرول ضروري دي او د خاوند د کور نه به بل کور ته نه منتقل کیږي؟ لمافی الهدایة ۴۰۸ وعلی المعتدة ان تعتد فی المنزل الذی یضاف الیها بالسکنیٰ حال وقوع الفرقة والموت... وان کان نصیبها من دار المیت لایکفیها فاخرجها الورثة من نصیبهم انتقلت(۲) وبمعناه فی سائر کتب الفروع، د دې عبارت نه دا هم معلومه شوه چې که د هغه زنانه د سکونت حصه د هغه دپاره ناکافي وي او نور وارثان د بهادرۍ نه کار نه اخلي نو د هغه دپاره بل کور ته منتقل کیدل جائز دي، هم دغه شان په دې کونډې باندې د

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۶۷۴: ۲ فصل فی الحداد)

۲) (هدایة علی صدر فتح القدیر ۱۶۶: ۴ قبیل باب ثبوت النسب)

**نوټ**: په ایام عدت کې بغیر دضرورت نه د کورنه وتل حرام دی په کوم کې چې طلاق ورکړې شوې وی،کذا فی ردالمحتار(۱)والهندیة (۲)والبحر(۳)وهوالموفق

## په حالت د سفر کې د عدت وفات مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی سره د کار (مزدوری) دوران کې د هغه سره ښځه او بچی هم د وطن نه بهر د ملازمت (مزدوری) په ځای کې اوسیدل، دې دوران کې خاوند مړ شو آیا په دې زنانه باندې هم عدت واجب دې؟ د سفر معامله ده که د دې ځای نه بدل شی نو بیا به عدت پاتې وی یا نه؟ آیا دا ښځه د خپل خاوند سره په بل ځای کې د پردې سره اوسیدې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: ماسټر غلام نبی ټیکسلا .... ۱۷ دسمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب**: په دې کونډه باندې عدت واجب دې او د هغې دپاره د دې کور نه

---

۱) قال العلامة الحصكفی : ولا تخرج معتدة رجعی وبان بأی فرقة كانت علی مافی الظهيرية ولو مختلعة علی نفقة عدتها فی الاصح اختيار او علی السكنیٰ فيلزمها ان تكتری بيت الزوج معراج لو حرة مكلفة من بيتها اصلا لا ليلا ولا نهارا ولاالی صحن دار فيها منازل لغيره ولو باذنه لانه حق الله تعالیٰ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۷۳ قبيل مطلب الحق ان علی المفتی ان ينظر فی خصوص الوقائع الخ)

۲) وفی الهندية : علی المعتدة ان تعتد فی المنزل الذی يضاف اليها بالسكنیٰ حال وقوع الفرقة والموت كذا فی الكافی لو كانت زائرة اهلها او كانت فی غيربيتها لامرحين وقوع الطلاق انتقلت الی بيت سكناها بلاتأخير وكذا فی عدة الوفاة كذا فی غاية البيان.
(فتاویٰ عالمگيرية ۱:۵۳۵ الباب الرابع عشر فی الحداد)

۳) (البحر الرائق ۴:۱۵۴ فصل فی الحداد)

انتقال کول جائز نه دی، کما فی تنقیح الفتاوی ۱:۵۷ وتعتدان ای معتدة طلاق وموت فی بیت وجبت فیه ولا یخرجان منه الا ان تخرج اوینهدم المنزل او تخافا انهدامه او تلف مالها اولا تجد کراء البیت ونحو ذلك من الضرورات (۱).
وهوالموفق

## معتده به د خاوند په کور کې اوسېږي خو د خلوت نه به ځان ساتي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل اوس هغه زنانه د دې خاوند نه حامله ده او دې زنانه لره په نکاح کې د اخستلو خواهش لری، پس د حمل د وجې نه د بل سړی سره لا نکاح نه شی کولې نو آیا دا زنانه د حمل په ورځو کې د اول خاوند په کور کې اوسیدې شی یا نه؟ چې د حمل نه پس حلاله وکړې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: میاں اشراف الله اکوړه خټک.....۳۰ جولائی ۱۹۷۷

**الجواب:** د دې معتده دپاره د خاوند په کور کې اوسیدل جائز بلکې ضروری دی خو د دې فسق وفجور په زمانه کې دې د خلوت نه ځان ساتي.
کما فی شرح التنویر: ولهما ان یسکنا بعد الثلاث فی بیت واحد اذا لم یلتقیا التقاء الازواج ولم یکن فیه خوف فتنة وفیه عن المجتبیٰ الافضل الحیلولة بستر ولو فاسقا فبامرأة (هامش ردالمحتار ۲:۸۵۵) (۲). وهوالموفق

## د مطلقه مغلظه د خاوند په کور کې د اوسیدو او د شفې د لاس د تیار کړی ثوی پخلی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د ګواهانو په موجودګئ کې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل او ښځه ئې حامله هم ده

---

۱) (تنقیح الفتاوی الحامدیة ۱:۵۷ باب العدة)
۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۷۵ قبیل فصل فی ثبوت النسب)

اوس دا سړي د خپلو بچو په فالنه باندې مجبور دې آیا دا د مطلقه ښځې په کور کې اوسیدې شی؟ آیا دا خاوند د هغه ښځې د لاس تیار کړې پخلې خوړلې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد عارف گھوئی سری ........ ۳ جولائی ۱۹۷۸ء**

**الجواب:** که دا مخکې ذکر شوی ښځه خاوند بوډاګان او مامون وی نو په یو کور کې د هغوی اوسیدل جائز دی او د هغه سړی دپاره د دې زنانه د لاس پخ کړې حلال دې خو آزادی او خلوت حرام دې

**کما فی شرح التنویر:** وسئل شیخ الاسلام عن زوجین افترقا ولکل منهما ستون سنة وبینهما اولاد تتعذر علیهما مفارقتهم فیسکنان فی بیتهم ولا یجتمان فی فراش ولا یلتقیان التقاء الازواج هل لهما ذلك قال نعم واقره المصنف (هامش ردالمحتار ۲:۸۵۵)(۱)۔وهوالموفق

## مطلقه مغلظه په کور کې د خادمې په حیثیت سره ساتل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې خاوند خپلې ښځې ته طلاق مغلظه ورکړې دې د عدت د تیریدلو نه پس زنانه سره د راوتلو نه راوځی او خاوند ته وائی چې ما دې په طور د خادمې وساتی، آیا خاوند دا ښځه د خادمې په طور ساتلې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: عبدالغفور واه کینټ ........ ۲ جمادی الثانیة ۱۳۹۱ھ**

**الجواب:** که د خلوت او آزادئ نه په امن وی نو د نوکرې په حیثیت سره ساتلو کې څه باک نشته، **کما فی شرح التنویر:** وسئل شیخ الاسلام عن زوجین افترقا ولکل منهما ستون سنة وبینهما اولاد تتعذر علیهما مفارقتهم فیسکنان فی بیتهم

---

۱ ) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۷۵ ۶ قبیل فصل فی ثبوت النسب فصل فی الحداد)

ولا یجتمعان فی فراش ولا یلتقیان التقاء الازواج هل لهما ذلك قال نعم واقره المصنف۔(هامش ردالمحتار ۲ : ۸۵۵)(۱)۔وهوالموفق

## د عدت دوران کې خرچه ورکول د خاوند ذمه داري ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپله ښځه طلاق ثلاثه مغلظه ورکولو سره فارغه کړه، آیا د عدت دوران د دې مطلقه د اخراجاتو ذمه دار خاوند دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** اسلم گل اسلام آباد........ ۱۹۷۳/ ۳/ ۲۳

**الجواب:** د عدت دوران د معتده خوراک او جامه او د استوګنې اخراجات د خاوند په ذمه واجب دی، که خاوند انکار کوی نو معتده د حاکم په ذریعه دا حقوق وصولولې شی.

وفی الهندیة: المعتدة عن الطلاق تستحق النفقة والسکنیٰ کان الطلاق رجعیاً او بائناً اوثلاثاً حاملاً کانت المرأة اولم تکن کذافی قاضی خان(۲)۔وهوالموفق

## د مبانه زنانه د حق مهر او دوران عدت کې د نفقې مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ما خپلې ښځې ته صرف یو طلاق ورکړی دې، الفاظ دا وو : ته په ما باندې طلاقه ئې! اګر چې د طلاق ورکولو په وخت زما د هیڅ قسم طلاق ورکولو ارده نه وه، تقریبا پنځه کاله تیر شو چې ما د هغې سره د ازدواجی ژوند تعلقات بند کړی دی ځکه چې هغې به ما سره هر وخت جګړې کولې، اوس ما د دویم وادهٔ اراده کړې ده چونکې نن صبا د عائلی قوانین د وجې نه دویم وادهٔ منع دې، بهرحال ما د

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۷۵ قبیل فصل فی ثبوت النسب فصل فی الحداد)

۲) (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۵۷ الفصل الثالث فی نفقة المعتدة)

دویم وادهٔ دپاره فیس داخل کړو اوس ماته د دغه ښځې د طرف نه قانونی خطره پیدا شوه په دې وجه ما په عدالت کې فرضی شهادت پیش کولو سره زنانه لره مطلقه ظاهرولو سره د دویم وادهٔ اجازت اخستلو سره وادهٔ کړې دې، گواهانو هم دا گواهی قائمه کړه چې مونږ ته د معتبرو ذرائع نه معلومه شوې ده چې دې سړی د دې تاریخ نه مخکې خپلې ښځې ته طلاق ورکړې دې، حال دا چې دا ټوله فرضی کارروائی ده، اوس حاکم په ما باندې مبلغ سل روپۍ حق مهر او یو نیم سل روپۍ د عدت خرچه مقرر کړې ده ما د دواړه قسم پیسو داخلولو نه انکار کړې دې او د شریعت کولو درخواست مې کړې دې چې که واقعی ذکر شوې زنانه مطلقه وی نو حق مهر به ادا کړم، کنه نو واپس به رجوع وکړم، ځکه چې ما د هغې نه وروستو د طلاق هیڅ اقرار نه دې کړې او دا کارروائی ټوله فرضی وه ددې لپاره چې د قانونی جرم نه بچ شم اوس د حق مهر او د عدت د خرچې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرحیم نوره وردی، ۱۸ اگست ۱۹۶۶

**الجواب:** چونکې طلاق صریح د ارادې نه بغیر هم واقع کیږی لهذا دا ښځه طلاقه شوې ده (۱) او د عدت تیریدلو نه پس مبانه شوې ده (۲) او په تاسو باندې ټول مهر ورکول ضروری دی. (۳) او چونکې د عدت د زمانې نه مخکې

---

۱) قال العلامة طاهر الانصاری: وطلاق اللاعب والهازل وطلاق الرجل الذی اراد ان یتکلم فسبق لسانه بالطلاق فالطلاق واقع۔
(خلاصة الفتاوی ۲:۷۵ کتاب الطلاق)

۲) قال العلامة ابن عابدین: والرجعی لا یزیل الملک الا بعدمضی العدة۔
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۵۷۶ باب الرجعة)

۳) وفی الهندیة: والمهر یتأکد باحد معان ثلاثة الدخول والخلوة الصحیحة وموت احد الزوجین سواء کان مسمی او مهر المثل حتی لا یسقط منه شئ بعدذلک الا بالابراء۔
(فتاوی عالمگیریة ۱:۳۰۳ الفصل الثانی فیما یتأکد به المهر والمتعة)

ختم شوې دې لهذا فی الحال په تاسو باندې د عدت نفقه ورکول ضروري نه دی بیشکه د بعض فقهاء کرامو په نزد د عدت نفقه کومه چې زنانه برداشت کړه د خاوند نه به وصولولې شي (ماخوذ از ردالمحتار ودرالمختار)(۱) وهوالموفق

## په وضع د حمل سره عدت ختمیږي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه مطلقه زنانه وه چې هغه حامله هم وه خپل خاوند یې هغې سره جماع وکړه او صباله هغه حمل پریوتلو آیا عدت پوره شو؟ بینواتوجروا

المستفتي: محبوب الرحمن شاه...... ۹ اپریل ۱۹۷۵

**الجواب:** په وضع د حمل سره عدت ختم شو (ماخوذ از ردالمحتار)(۲) وهوالموفق

## د مطلقه مغلظه په وضع حمل سره عدت ختمیږي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه منکوحه

---

۱) قال العلامة الشامي المكنى بابن عابدين: (قوله ولا تسقط النفقة الخ) اى اذا مضت مدةالعدة ولم تقبضها فلها اخذها لو مفروضة اى او مصطلحا عليها لكن لو مستدانة بامر القاضي فلا كلام والافقيه خلاف اختار الحلواني انها تسقط ايضا واشار السرخسي الى انها تسقط وفى الذخيرة وغيرها انه الصحيح قال فى البحر وعليه فلا بد من اصلاح المتون فانهم صرحوا بان النفقة تجب بالقضاء او الرضا وتصير دينا وهنا لا تصير دينا الا اذالم تنقض العدة لكن فى النهر ان اطلاق المتون يشهد لما اختاره الحلواني قلت وظاهر الفتح اختياره حيث اقتصر عليه. (ردالمحتار هامش الدالمختار ۲:۷۲۷ قبيل مطلب فى نفقة المطلقة باب النفقة)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله وضع حملها) اى بلا تقدير بمدة سواء ولدت بعد الطلاق اوالموت بيوم او اقل جوهرة والمراد به الحمل الذى استبان بعض خلقه او كله... واذا اسقطت سقطا ان استبان بعض خلقه انقضت به العدة لانه ولد والا فلا. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۶۵۶ بعيد مطلب فى عدة الموت)

مطلقه مغلظه په عدت کې وه، او خاوند هغې سره مجامعت او کوروالی وکړو تردې چې د بار بار مجامعت او کوروالي له امله هغه ښځه حامله شوه او وضع د حمل ئې شو، آیا عدت تیر شوی دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: فضل معبود تنګی..... ۹ ستمبر ۱۹۷۴ء**

**الجواب:** عدت تیر شوی دی.

كما في الهندية ١: ٥٥٤ طلق امرأته ثلثا وكتم طلاقها عن الناس فلما حاضت حيضتين وطئها فحبلت ثم اقر بطلاقها كان لها النفقة مالم تضع الولد لان عدتها انما تنقضي بوضع الحمل كذا في الفتاوى الكبرى (١)۔ وهوالموفق

## په وضع د حمل سره عدت ختمیږی او دویمه نکاح جائز کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د طلاق ثلاثه په ذریعه خپله ښځه رخصت کړه، په ګواهانو کې د محلې مولوی صاحب او یو سپین ږیري شامل وو، د طلاق نه دیرش ورځې پس مولوی صاحب د هغې زنانه نکاح د بکر سره وکړه او د خپل نوی خاوند سره ئې ژوند تیرول شروع کړل، آیا دا نکاح شرعا جائز ده، که نه وی نو د دې مولوی صاحب دپاره څه تعزیر دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد اشرف خان**

**الجواب:** ممکنه ده چې دې مطلقه د حمل اسقاط کړې وی او د حامله عدت په وضع د حمل سره ختمیږی. قال الله تعالیٰ: واولات الاحمال اجلهن ان يضعن حملهن (٢) وفي ردالمحتار ٢: ٨٣١ واذا اسقطت سقطا ان استبان بعض خلقه انقضت به العدة لانه ولد والافلا (٣)۔ وهوالموفق

---

١ ﴾ (فتاوی عالمگیریة ١: ٥٣٢ قبیل الباب الرابع عشر فی الحداد)

٢ ﴾ (سورة الطلاق آیت: ۴: پاره: ۲۸ رکوع: ۱)

٣ ﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ٢: ٦٥٦ بعيد مطلب فى عدة الموت)

## د عدت موده درې حیضه تېرول دي اګرچې په دې باندې دوه کاله تېر شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوې زنانه ته طلاق ورکړې شو هغه یو داسې زنانه ده چې هغې ته پنځه میاشتې پس حیض راځي نو آیا د هغې دپاره دومره اوږده موده تېرول ضروري دي او که فورا نکاح وکړې شي؟ بینواتوجروا

المستفتي: نور محمد صاحب

**الجواب:** په دې زنانه باندې درې حیضه تېرول ضروري دي اګر چې دوه کاله موده تېره شي. لما في الدر المختار: الشابة الممتدة بالطهر بأن حاضت ثم امتد طهرها فتعتد بالحيض الى ان تبلغ سن الاياس (۱). وهوالموفق.

## د عدت کم از کم موده شپیته ورځې ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زنانه ته په طلاق ملاویدو باندې کم ازکم څومره موده عدت تېرول راځي د دې نه مو خبر کړئ بینواتوجروا

المستفتي: محمد رفیق قریشي اسلام آباد

**الجواب:** که دا معتده حامله نه وي نو کم ازکم شپیتهٔ ورځې عدت به تېروي. کما في شرح التنوير: قالت مضت عدتي والمدة تحتمله وكذبها الزوج قبل قولها مع حلفها والا تحتمله المدة لا لان الامين انما يصدق فيما لا يخالفه الظاهر ثم لو بالشهور فالمقدر المذكور ولو بالحيض فاقلها لحرة ستون يوما(۲) (۳) وهوالموفق

---

۱) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۵۳ قبيل مطلب في عدة الصغيرة المراهقة)

۲) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۶۵ قبيل مطلب في الدخول في النكاح الاول دخول الخ)

۳) وقال العلامة ابن عابدين: (قوله ستون يوما) فيجعل كانه طلقها في الطهر بعد الوطء ويؤخذ لها اقل الطهر خمسة عشر لانه لا غاية لاكثره... [بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

## د صاحبینو په نزد د عدت کم از کم موده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوې زنانه ته درې طلاقه ورکړې شو د هغه زنانه عام عادت ایام حیض اووۀ ورځو پورې دې او د طهر موده ئې اوویشت ورځې ده اوس هغه زنانه یوه میاشت پس دویمه نکاح وکړی، آیا په دومره موده کې د یوې زنانه حیض پوره کیدو سره شرعا د عدت موده مکمل کیدې شی؟ آیا په دې مسئله کې د زنانه قول قابل قبول دې چې هغه وائی چې په ما باندې درې حیضه تیر شوې دی؟ که په دې موده کې یعنی ۵۳ ورځې عدت پوره کیدو نه مخکې چې کوم امام مسجد د هغه زنانه سره نکاح وکړی آیا د هغه اقتداء صحیح ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: صوفی محمد حلیم دینه جهلم ..... ۱۹۷۵ء | ۸ | ۲۴

**الجواب:** چونکې د صاحبین په نزد په یو کم شلویښت ورځو کې عدت ختمیدلې شی(۱) لهذا انکاح لوستونکی وغیره د تعزیر لائق نه دی. وهوالموفق

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] واوسط الحیض خمسة لان اجتماع اقلهما نادر فثلاثة اطهار بخمسة واربعین وثلاث حیض بخمسة عشر فصارت ستین وهذا علی تخریج محمد لقول الامام، وعلی تخریج الحسن له یجعل کانه طلقهافی آخر الطهر احترازا عن تطویل العدة علیها ویؤخذ لها اقل الطهر واکثر الحیض لیعتد لا فطهر ان بثلاثین یوما وثلاث حیض بثلاثین ایضا وعندهما اقل مدة تصدق فیها الحرة تسعة وثلاثون یوما ثلاث حیض بتسعة ایام وطهر ان بثلاثین افاده ط.

(ردالمحتار هامش شرح التنویر ۶۶۵: ۲ باب العدة)

۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله ستون یوما) فیجعل کانه طلقها فی الطهر بعد الوطء ویؤخذ لها اقل الطهر خمسة عشر لانه لا غایة لاکثره... واوسط الحیض خمسة لان اجتماع اقلهما نادر فثلاثة اطهار بخمسة واربعین وثلاث حیض بخمسة عشر فصارت ستین وهذا علی تخریج محمد لقول...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د عدت درې حیض په اتویشت ورځو کې نه پوره کیږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړو، پوره اتویشت ورځې پس د هغې نکاح په بل ځای کې وکړې شوه، آیا په شریعت کې داسې څه حواله هم موجود ده چې عدت صرف اتویشت ورځې وی؟ بینوا توجروا

**المستفتي:** محمد اشرف باسیان راولپنډی...... ۲۶ رجب ۱۳۹۰هـ

**الجواب:** زمونږ په نزد د طلاق او خلع یو حکم دې یعنی درې حیض وغیره کوم چې په اتویشت ورځو کې نه شي پوره کیدې، بیشکه د بعض ائمه رحمهم الله په نزد د خلع حکم یو حیض دې نو د هغوی په نزد عدت (یعنی استبراء) په اتویشت ورځو کې پوره کیدې شي. (۱) وهوالموفق

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] الامام وعلی تخریج الحسن له یجعل کانه طلقها فی آخر الطهر احترازا عن تطویل العدة علیها ویؤخذلها اقل الطهر واکثر الحیض لیعتد لافطهر ان بثلاثین یوما وثلاث حیض بثلاثین ایضا وعندهما اقل مدة تصدق فیها الحرة تسعة وثلاثون یوما ثلاث حیض بتسعة ایام وطهر ان بثلاثین افاده ط۔ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۶۵ قبیل مطلب الدخول فی النکاح الاول دخول فی الثانی)

(۱) وفی المنهاج: (قوله ان تعتد بحیضة) وفی روایة النسائی بزیادة الواحدة اختلفوا فی ان الخلع طلاق او فسخ، فقال احمد هو فسخ وعدتها حیضة واحدة وروی عنه ان عدتها کعدة المطلقة، وروی عن الشافعی انه فسخ ولکن عدتها عدة المطلقة، وقال ابوحنیفة ومالک والشافعی فی روایة انها طلاق بائن وعدتها عدة الطلاق، استدل احمد بحدیث الباب، واحتج الجمهور بما رواه الدارقطنی فی سننه عن ابن عباس ان النبی ﷺ جعل الخلع تطلیقة بائنة وبما رواه ابن ابی شیبة وابوداؤد فی مراسیله وعبد الرزاق عن سعید بن المسیب مرسلا ان النبی ﷺ ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## چې د کومې زنانه خاوند وفات شي هغه د عدت نه پس د خپلو بچو سره هر ځای کې اوسیدې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې وفات شو او دوه بچي او یوه کونډه ترې پاتې شوه، اوس دا ښځه د عدت نه پس د خپلو بچو سره د خپلو ورونړو سره اوسیږی او د خاوند د وارثانو سره ئې صلاح مشوره نه ده کړې د دې شرعی حکم څه دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد ابراهیم مهاجر افغانستان .... ۸ ستمبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** دا کونډه صاحب اختیار ده، که هر ځای غواړی اوسیدې شي او بهر حال د دې کونډې ورونړو یا د خاوند ورونړو ته دا اختیار نشته چې هغه خرڅه کړی دا ښکاره ظلم دې او دا وراثت جاهلیت دې. (۱) وهوالموفق

...بقیه ازحاشیه گذشته] جعل الخلع تطليقة وبما رواه مالک عن عثمان انها تطليقة، وبما رواه ابن ابی شيبة عن علی وعن ابن مسعود رضی الله عنهم، وبالجملة ان المختلعة مطلقة والمطلقات يتربصن بانفسهن ثلاثة قروء، والجواب عن حديث الباب ان معناه ان تعتد بحيض لا بالاشهر كالمتوفى عنها زوجها ورواية النسائی بتصريح الوحدة محمولة على فهم الراوی، وبالجملة ليس مع الخصم حديث صريح فی كونها فسخا بخلاف الجمهور كما عرفت.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴:۳۱۰ باب ماجاء فی الخلع)

۱) قال العلامة عماد الدين ابن كثير : (قال الله تعالى: يايها الذين آمنوا لا يحل لكم ان ترثوا النساء كرهاً) قال كانوا اذا مات الرجل كان اولياؤه احق بامرأته ان شاء بعضهم تزوجها وان شاؤوا زوجوها وان شاؤوا لم يزوجوها فهم احق بها من اهلها فنزلت هذه الآية فی ذلک هكذا رواه البخاری وابوداؤد والنسائی الخ...

وقال زيد بن اسلم فی الآية: كان اهل يثرب اذا مات الرجل منهم فی الجاهلية ورث امرأته من يرث ماله و كان يعضلها حتى يرثها ...[بقيه حاشيه برصفحه آئنده

...بقيه ازحاشيه گذشته] او يزوجها من اراد وكان اهل تهامة يسيئ الرجل صحبة المرأة حتى يطلقها ويشترط عليها ان لا تنكح الا من اراد حتى تفتدى منه ببعض ما اعطاها فنهى الله المؤمنين عن ذلك رواه ابن ابى حاتم۔

(تفسير ابن كثير ۲:۲۱۵ سورة النساء آيت: ۱۹)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

(ششم جلد)

# باب فی التحلیل

.........

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

## فتاویٰ فریدیہ

# باب فی التحلیل

قال اللہ تبارک وتعالٰی:

فَإِنْ طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُ مِنْ بَعْدُ حَتّٰى تَنْكِحَ زَوْجًا غَيْرَهٗ ط

(سورۃ البقرۃ........۲۳۰)

........

# باب فی التحلیل

## حدیث "لعن الله المحلل والمحلل له" په کراهت محمول دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې حدیث ﴿ لعن الله المحلّل والمحلّل له ﴾ څه مطلب دې او حال دا چې زمونږ د احنافو فتوی د تحلیل په جواز باندې ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد اکرام الدین وارئ ضلع دیر ... ۳۰ اګست ۱۹۷۵ء

**الجواب:** د دې حدیث مطلب دا دې چې سره د کراهیت نه دویمه نکاح جائز ده، وهذا محمول علی ان اللعن محمول علی کراهته عند الاشتراط اواخذ الاجرة. وتحل للثانی لانه علیه الصلاة والسلام سماه محللاً وهو المثبت للحل (۱)، والتفصیل فی المطولات فلیراجعه (۲). وهوالموفق

---

۱ ﴾ قال العلامة الموصلي: فان تزوجها بشرط التحليل كره وحلت للاول وقال ابويوسف النكاح فاسد لانه كالمؤقت، ولا تحل للاول لفساده، وقال محمد هو جائز لشروط الجواز ولا تحل للاول لانه عجل ما اخره الشرع فيعاقب بالمنع كقتل المورث، ولابى حنيفة قوله عليه السلام لعن الله المحلل والمحلل له ومراده النكاح بشرط التحليل فيكره للحديث وتحل للثانى لانه عليه الصلاة والسلام سماه محللا وهو المثبت للحل، او نقول وحد الدخول فى نكاح صحيح لان النكاح لا يفسد بالشرط فتحل للاول، ولو تزوجها بقصد التحليل ولم يشرطه حلت للاول بالاجماع. (الاختيار لتعليل المختار ۲:۱۹۳ باب الرجعة)

۲ ﴾ وفى المنهاج: (قوله لعن رسول الله ﷺ المحلل والمحلل له) اعلم ان نكاح الزوج الثانى على ثلاثة اوجه، الاول: نكاح رغبة بلا قصد التحليل وبلا اشتراطه وهو جائز بلا كراهة فبالدخول فيه يحصل التحليل، والثانى: النكاح بقصد التحليل بلا اشتراطه فى العقد وهو جائز عندنا وعند الشافعي خلافا لمالك واحمد فانهما قالا انه لايحلها للاول، وروى عن ابى حنيفة وابى يوسف ومحمد ايضا، والثالث: النكاح ... [بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

## د درې طلاقو نه پس بغير د حلاله نه خلاصې نشته

## او په دوه کې پس د عدت نه د نکاح تجديد کافی دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې زيد په يو وخت خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل او طلاق ئې د حمل په حالت کې ورکړو، د حمل د وضع کولو نه څلويښت ورځې پس ئې خپله ښځه د مور پلار کره وليږله او د څلورو مياشتو تيريدلو نه پس ئې خپل مينځ کې تصفيه وکړه، مسئله مدرسه تبليغ اسلام ګولړه ته راوليږلې شوه، جواب دا ملاؤ شو چې که د طلاق اظهار نه وی شوې نو دوباره دې نکاح وکړې شی او که د طلاق اظهار شوې وی نو حلاله دې وکړې شی پس طلاق ورکونکی د خپل حقيقی ورور سره

---

...بقيه ازحاشيه گذشته] باشتراط التحليل فی العقد وهو فاسد عند الشافعی وروی ذلک عن ابی يوسف ايضا، وقال ابوحنيفة هو نکاح صحيح فان طلقها بعد الدخول حلت للاول۔
وظاهر حديث الباب يقتضی التحريم والفساد ويؤيده ما اخرجه ابن ماجة باسناد حسن ان النبی ﷺ سماه التيس المستعار، وکذا ما اخرج ابن ابی شيبة عن عمربن الخطاب رضی الله عنه انه قال لا اوتی بمحلل ولا محلل له الا رجمتهما، وظاهر اطلاق القرآن يقتضی صحة النکاح والتحليل ، قال الله تبارک وتعالیٰ: فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجا غيره، وهو يعم النکاح بقصد التحليل وبشرطه، وکذا اشارة حديث الباب يقتضی صحة النکاح والتحليل ، لان النبی ﷺ سماه محلا، ويؤيده ان عمر رضی الله تعالیٰ عنه قال للمحلل الزم امرأتک ، رواه الشافعی والبيهقی کما فی کنز العمال، وکذا روی ابن جرير فی تهذيب الآثار ان عمر رضی الله عنه امضی نکاح المحلل۔
والجواب : عن حديث الباب وحديث ابن ماجة انه محمول ان اللعن محمول علی کراهته عند الاشتراط اواخذ الاجرة، واما اذا قصد التحليل لا يکره وکان ماجورا لقصد الاصلاح لا سيما اذا کانت لهما صحبة قديمة لا يرضيان بالفراق، والجواب عن اثر عمر انه معارض باثره الآخر فيحمل علی التغليظ او علی ما اذا وقت الليلة وغيرها۔
(منهاج السنن شرح ترمذی ۴:۲۷۰، ۲۷۱ باب ماجاء فی المحلل والمحلل له)

حلاله وکړه او پس د حلالې نه ئې د مذکوره ورور نه طلاق واخستلو، آیا د لیکل شوې حالاتو د لاندې دا دوباره نکاح صحیح کیدې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: علی گوهر جان ایبټ آباد... ۱۲ ستمبر ۱۹۷۴ء**

**الجواب:** که دې خاوند درې طلاقه ورکړې وی و بهر حال بغیر د حلاله نه بله لاره نشته، او که دوه طلاقه ئې ورکړې وی نو په عدت ختمیدو سره به تجدید د نکاح ضروری او کافی وی، د حلالې ضرورت نشته، **والمسئلة من الواضحات فلاحاجة الى نقل العبارات(۱) وهوالموفق**

## د کراهیت باوجود حلاله ثابته ده او مطلق مامون وی نو د هغه کور ته راتلې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مطلقه ښځې دوباره په نکاح کې د اخستلو دپاره د حلالې په خاطر خاوند دا وعده واخلی چې د مباشرت نه پس به طلاق ورکړی چې پس د عدت نه د سابقه خاوند سره نکاح وکړې شی، آیا داسې کول صحیح دی، بله دا چې سابقه خاوند مطلقه زنانه په خپل کور کې د ماشوم د پیو ورکولو دپاره د څه مودې پورې ساتلې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: سید اسماعیل مرزا اټک... ۱۷ اگست ۱۹۸۳ء**

**الجواب:** ۱: سره د کراهیت نه به حلاله ثابته وی (شامیه)(۲) ۲: که دا خاوند

---

۱) وفی الهندیة: اذا کان الطلاق بائنا دون الثلاث فله ان یتزوجها فی العدة وبعد انقضاء ها وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها کذا فی الهدایة. (فتاوی عالمگیریة ۱:۴۷۲ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

۲) قال العلامة الحصکفی: وکره التزوج للثانی تحریما لحدیث لعن المحلل والمحلل له بشرط التحلیل کتزوجتک علی ان احللک وان حلت للاول...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

مامون وی نو دې کور ته تلې راتلې شی (۱) وهوالموفق

## د همبسترئ نه بغیر صرف په نکاح سره حلاله نه کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید خپلې نکاح کړې ښځې ته طلاق ثلاثه ورکړل، چې د هغې د وجې نه هغه دوه درې کاله غیر آباد وه وروستو ئې د یو سړی سره د حلالې په غرض نکاح وکړه خو د همبسترئ نه بغیر ئې په بله ورځ طلاق اخستلو سره د مخکې خاوند سره د نکاح عقد وکړو، آیا د هم بسترئ نه بغیر د حلالې شرط پوره شو که پوره شوې وی نو عدت لازمی وو یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اکرم خان کوهاله مری ۱۷ اگست ۱۹۷۲ء

**الجواب:** د صحبت نه بغیر حلاله نامنظور ده، لحدیث: حتی تذوقی عسیلته، الحدیث (۲) وفی الدر المختار: لاینکح مطلقة من نکاح صحیح نافذ کما سنحققه

---

...بقیه از حاشیه گذشته] لصحة النکاح وبطلان الشرط.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۸۶ باب الرجعة)

۱) قال العلامة الحصکفی: وفی المجتبیٰ الافضل الحیلولة بستر ولو فاسقا فبامرأة قال ولهما ان یسکنا بعد الثلاث فی بیت واحد اذا لم یلتقیا التقاء الازواج ولم یکن فیه خوف فتنة انتهیٰ. (الدرالمختار علی هامش الشامیة ۲:۶۷۵ فصل فی الحداد)

۲) عن عائشة قالت: جاء ت امرأة رفاعة القرظی الی رسول الله ﷺ وعنده ابوبکر وخالد بن سعید بن العاص علی الباب ینتظر ان یؤذن له علی رسول الله ﷺ فقالت: یا رسول الله! انی کنت عند رفاعة فطلقنی فبت طلاقی، قال اتریدین ان ترجعی الی رفاعة، لا حتی یذوق عسیلتک وتذوقی عسیلته، فنادیٰ خالد بن سعید ابابکر: الا تریٰ ما تجهر به هذه عند رسول الله ﷺ. (رواه السنة واحمد والبیهقی). (سنن الدارمی ۲:۲۱۵ باب مایحل المرأة لزوجها الذی طلقها فبت طلاقها)

بها ای بالثلاث حتی یطاها غیره الخ(هامش رد المحتار۷۳۹/۲)(۱)وهو الموفق

## په حلاله کې بغیر د صحبت او جماع نه

## د هغه د لور سره د محلل د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید او عمرو دواړه د ترۀ ځامن دی په تعلقات خرابیدلو باندې زید خپلې ښځې ته طلاق ورکړو، څو ورځې پس ئې بیا صلح وشوه نو زید خپله ښځه عمر ته د دوه درې ورځو دپاره په نکاح ورکړه، خو د رشته دارئ د وجې نه عمر سره جماع او صحبت ونکړو او طلاق ئې ورکړو، اوس د زید یوه لور ده کومه چې د مذکوره زنانه نه پیدا شوې ده، عمرو ته ئې په نکاح کې ورکول غواړی آیا د عمرو دپاره د دې منکوحه زنانه د لور سره نکاح جائز ده؟ او حال دا چې عمر د زید د ښځې سره جماع او صحبت نه دی کړې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالقهار مری ایبټ آباد

**الجواب:** که زید خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړې وی نو عمرو سره د نکاح نه پس صحبت او جماع ضروری ده. (لحدیث مالک) (۲) او بغیر د جماع نه د هغوی دپاره دا زنانه حرامه ده (۳) او د عمرو دپاره د دې زنانه د لور سره

---

۱) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۵۸۳: ۲ بعید مطلب فی العقد علی المبانة)

۲) عن عائشة رضی الله عنها قالت: طلق رجل امرأته ثلاثا فتزوجها رجل، ثم طلقها قبل ان یدخل بها، فاراد زوجها الاول ان یتزوجها فسئل رسول الله ﷺ عن ذلک، فقال: لا حتی یذوق الآخر من عسیلتها ما ذاق الاول متفق علیه واللفظ لمسلم. (بلوغ المرام ۳۳۴ کتاب النکاح)

۳) قال العلامة الموصلی: والمبانة بالثلاث لا تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم تبین منه لقوله تعالی: ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

نکاح جائز ده که جماع او مس نه وی شوي، صرح به فی الدر المختار باب المحرمات(۱) والمهر(۲) وهوالموفق

## د باقاعده حلالې کولو نه پس نکاح ثانی جائز کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته طلاق ورکړو مطلقه په خپل کور کې ناسته وه او د یو سړي سره ئې هم نکاح ونکړه، اوس یې خاوند خاموش دې چې د دې زنانه سره دویمه نکاح

...بقیه ازحاشیه گذشته] (فان طلقها) یعنی الثالثة، (فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجا غیره) والنکاح المطلق فی الشرع ینصرف الی الصحیح حتی لو دخل بها فی نکاح فاسد لا تحل للاول وقوله حتی تنکح یقتضی الدخول لما ذکرنا ان النکاح الشرعی هو الوطء ولقوله، زوجا، ونکاح الزوج لا یکون الا بالوطء ویدل علیه الحدیث المشهور وهو ما روی فی الصحیح ''ان عائشة بنت عبد الرحمن بن عتیک القرظی کانت تحت ابن عمها رفاعة بن وهب فطلقها ثلاثا، فجاء ت الی النبی ﷺ فقالت: یا رسول الله انی کنت تحت رفاعة فطلقنی فبت طلاقی فتزوجت عبد الرحمن بن الزبیر وانما معه مثل هدبة الثوب، فتبسم ﷺ وقال: اتریدین ان ترجعی الی رفاعة؟ قالت: نعم فقال: حتی یذوق عسیلتک وتذوقی عسیلته'' (رواه البخاری وابوداؤد والنسائی وابن ماجة ومالک احمد) وسواء دخل بها فی حیض او نفاس او احرام لحصول الدخول۔ (الاختیار لتعلیل المختار ۲:۱۹۳ باب الرجعة)

۱) قال العلامة الحصکفی: وحرم بالمصاهرة بنت زوجته الموطوئة وام زوجته وجداتها مطلقا بمجرد العقد الصحیح وان لم توطأ الزوجة لما تقرر ان وطء الامهات یحرم البنات ونکاح البنات یحرم الأمهات، قال ابن عابدین: واحترز بالموطوئة عن غیرها فلا تحرم بنتها بمجرد العقد وفی ح عن الهندیة ان الخلوة بالزوجة لا تقوم مقام الوطء فی تحریم بنتها الخ۔ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۰۲ فصل فی المحرمات)

۲) قال العلامة ابن عابدین: (قوله وحرمة البنات) ای لم یقیموا الخلوة مقام الوطء فی ذلک فلوخلا بزوجته بدون وطء ولا مس بشهوة لم تحرم علیه بناتها بخلاف الوطء والکلام فی الخلوة الصحیحة کما صرح به فی التبیین والفتح وغیرهما الخ۔ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۷۱ بعید مطلب فی احکام الخلوة باب المهر)

وکړي، د دې دپاره هغه دا طریقه اختیاروي چې د دې زنانه نکاح د بل سړي سره وشي هغه یوه شپه هغې سره صحبت وکړ او په بله ورځ یې طلاق ورکړ، د عدت د پوره کیدو نه پس د هغه سړي سره (یعنی سابقه خاوند سره) دویمه نکاح وکړي او د دویم سړي سره اول دا مقرر کړې شوه چې د نکاح نه پس یوه شپه د استعمالولو نه وروسته په دویمه ورځ طلاق ورکړي په دې طریقې سره د شریعت ټولې تقاضې پوره کیږي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي: حاجي رشید الدین واه کینټ**

**الجواب:** د پورته ذکر شوي صورت نه سره د کراهت نه حلاله کیږي او باقاعده د خاوند سابق سره نکاح جائز کیږي. (شامي ۷۴۳/۲)(۱) **وهوالموفق**

## صرف نکاح بغیر د جماع نه د تحلیل دپاره کافي نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړي خپلې ښځې ته طلاق مغلظه ورکړې دې د عدت د ختمیدو نه پس ئې د خاوند ثاني سره نکاح وکړه، آیا بغیر د خلوت صحیحه نه د دویم خاوند نه طلاق اخستلو سره عدت تیرولو باندې د خاوند اول سره نکاح کولې شي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي: مولانا محمد یوسف غربي بانډه مردان... ۲۵ اگست ۱۹۷۹ء**

**الجواب:** د تحلیل دپاره د خاوند ثاني دخول ضروري دې، صرف نکاح یا خلوت صحیحه ناکافي دې، هم دا د ائمه اربعه مسلک دې. **ومتمسكهم الحديث**

---

۱) قال العلامة الحصكفي: وكره التزوج للثاني تحريما لحديث لعن المحلل والمحلل له بشرط التحليل كتزوجتك على ان احللك وان حلت للاول لصحة النكاح وبطلان الشرط فلا يجبر على الطلاق كما حققه الكمال.
(الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲:۵۸۶ باب الرجعة)

المشهور: لا حتی یذوق عسیلتك وتذوق عسیلته (رواه البخاری)(١) وصرح به ردالمحتار(٢) والهندیة(٣) والبحروغیرهم(٤)۔ وهوالموفق

## د حمل په حالت کې د تحلیل د پاره دویمه نکاح کالعدم دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه مطلقه په غرض د حلالې د حمل په حالت کې نکاح وکړې، او د حمل په باره کې ئې چاته هم نه وو ویلی، پنځه میاشتې پس ئې ماشوم پیدا شو. آیا دا زنانه اوس د اول خاوند سره نکاح کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید اکبر خان بالا گړهئ مردان... ۱۶ مارچ ۱۹۷۴ء

**الجواب:** که دا حامله اقرار کوی چې د دویمې نکاح په وخت کې حامله وه نو ماشوم به د خاوند اول نه ثابت النسب وی.(٥) او نکاح ثانی او تحلیل به

---

١) (الصحیح البخاری ۲:۷۹۱ کتاب الطلاق)

٢) قال العلامة الحصکفی: والایلاج فی محل البکارة یحلها والموت عنها لا ... یشترط ان یکون الایلاج موجبا للغسل وهو التقاء الختانین بلا حائل یمنع الحرارة وکونه عن قوة نفسة الخ۔ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۵۸۵ باب الرجعة)

٣) وفی الهندیة: لم تحل له حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ...ویشترط ان یکون الایلاج موجبا للغسل وهو التقاء الختانین هکذا فی العینی شرح الکنز۔ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة ومایتصل به)

٤) قال العلامة ابن نجیم: والموت لا یقوم مقام الدخول فی حق التحلیل۔ (البحر الرائق ۴:۵۶ کتاب الطلاق)

٥) وفی الهندیة: واذا تزوج الرجل امرأة فجاء ت بالولد لاقل من ستة اشهر منذ تزوجها لم یثبت نسبه وان جاء ت به لستة اشهر فصاعدا یثبت نسبه منه اعترف به الزوج او سکت فان جحد الولادة تثبت بشهادة ...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

کالعدم وی. لعدم صحة النکاح فی العدة(۱) وهوالموفق

## په زنا سره حلاله نه شی کیدې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مطلقه مغلظه که د غیر محرم سره بغیر د نکاح نه جماع وکړی نو آیا دا به د حلاله قائم مقام وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حبیب الرحمن کوهاټ... ۱۷ ربیع الثانی ۱٤۰۳ھ

**الجواب:** په زنا سره حلاله نه شی کیدې. (۲) وهوالموفق

## بغیر د حلاله نه د مطلقه مغلظه د دوباره نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته زبانی او تحریری درې طلاقه ورکړې اوس یو مولوی صاحب بغیر د حلالې نه دهغې سره نکاح کوي آیا دا صحیح ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد یوسف ترهتی مظفر آباد کشمیر... ۸ ربیع الثانی ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** د ائمه اربعه په نزد په درې طلاقو ورکولو سره ښځه مطلقه مغلظه

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] امرأة واحدة تشهد بالولادة کذا فی الهدایة.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۳٦ الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

(۱) وفی الهندیة: لا یجوز للرجل ان یتزوج زوجة غیره وکذلک المعتدة سواء کانت العدة عن طلاق او وفاة او دخول فی نکاح فاسد او شبهة نکاح کذا فی البدائع.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۸۰ القسم السادس المحرمات التی یتعلق بها حق الغیر)

(۲) وفی الهندیة: واذا وطئها انسان بالزنا او بشبهة لا تحل لزوجها لعدم النکاح.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:٤۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

کرخی خلافاً لابن تیمیة وابن القیم والحجة علیهما ما رواه عبد الرزاق عن عبادة مرفوعاً وعن عمروعثمان وابن مسعودوابن عباس وابی هریرة وعبد الله بن عمرو بن العاص موقوفاً وحدیث جعلها واحدة محمول علی ارادة التاکید فافهم(۱)

---

۱) وفی المنهاج : اعلم ان الائمة الاربعة اتفقوا علی وقوع الثلاث جملة سواء کان بلفظ واحد مثل انت طالق ثلاثا او کان بثلاث الفاظ مثل انت طالق انت طالق انت طالق، فاذا کان بلفظ واحد فلا فرق فیه بین المدخول بها وغیر المدخول بها واذا کان بثلاث الفا ظ فهو مختص بالمدخول بها الا اذا کرر الالفاظ واراد التاکید دون الاستیناف اولم ینو شیئا من الاستیناف اوالتاکید فتقع واحدة، وما نسب الی مالک انه قال بوقوع الواحدة بقوله انت طالق ثلاثا فی روایة فیرده ماذکره عبد الرحمن بن القاسم فی المدونة الکبری، ومذهب الجمهور هوالمروی عن عمروعثمان وعلی وابن عباس وابن عمرو ابن مسعود وعبد الله بن عمرو بن العاص وابی هریرة ومغیرة بن شعبة وعمران بن حصین رضی الله تعالیٰ عنهم کما فی مصنف عبد الرزاق وزادالمعاد وغیره واذا لو حظت الروایات والآثار فیعلم منها ان ابن عباس ایضا وافق جمهور الصحابة وذهب الی ان البکر یعنی غیر المدخول بها اذا طلقت بثلاث الفاظ تجعل واحدة... ومال ابن القیم ومتبعوه الی ان الثلاث تجعل واحدة مطلقا سواء کان بلفظ واحد او بثلاث الفاظ وسواء کانت الزوجة مدخولا بها او غیر المدخول بها وخالف السلف والائمة الاربعة... والجواب عن حدیث ابن عباس انهم تعارفوا التاکید اذا طلقوها بثلاث الفاظ فی عهد النبی ﷺ وعهد ابی بکر واول عهد عمر رضی الله عنهما فتحصل البینونة بعد مدة مدیدة ثم تفرقوا، بعضهم یقصدون التاکید والبعض الاخرون یقصدون الاستیناف ویستعجلون البینونة فی آخر عهده فحکم بوقوع الثلاث الخ.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴:۳۰۲ باب ماجاء فی الرجل طلق امرأته البتة)

پس په صورت مسئوله کې ناکافي دي (۱) او دا مولوي صاحب قابل تعزیر دې په دې شرط که هغه قصدا دا کار کړې وي. وهوالموفق

## د حلالې دپاره د نابالغ سره نکاح د تحلیل لپاره

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړي خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړې دي، اوس د ښځې کورنۍ والا وايي چې دا طلاق د غصې په حالت کې وو په دې وجه واقع نه دې، صرف د نکاح تجدید کافي دې، او حال دا چې مولوي صاحب فرمائي چې طلاق مغلظه واقع شوې دې، په دې وجه د دې خاوند دپاره دا جائز نه ده سوا د نکاح ثاني یعنی تحلیل نه، خو هغوی د نکاح ثاني دپاره تیار نه دي اوس که بالفرض دا نکاح ثاني د یو نابالغ ماشوم سره کولو باندې د هغه نه طلاق واخلي نو په دې صورت کې به د خاوند اول سره بیا نکاح ثاني صحیح وي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نور محمد وهاڑی بورے والا .... ۱۴ رمضان المبارک ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د درې طلاقو د ورکولو په صورت کې بغیر د حلالې نه خلاصې نشته لقوله تعالیٰ: فان طلقها فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجا غیره (الآیة) (۲) وقال علیه الصلوٰة والسلام: حتی تذوقی عسیلته (الحدیث) (۳).

**نوټ:** د نابالغ طلاق نامنظور وي (۴) وهوالموفق

---

۱) وفی الهندیة: وان کان الطلاق ثلاثا فی الحرة وثنتین فی الامة لم تحل حتی تنکح زوجا غیره نکاحا صحیحا ویدخل بها ثم یطلقها او یموت عنها کذا فی الهدایة۔
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

۲) (سورة البقرة آیت ۲۳۰)

۳) (صحیح البخاری ۲:۷۹۱ کتاب الطلاق)

۴) وفی الهندیة: ولا یقع طلاق الصبی وان کان (بقیه حاشیه) یعقل والمجنون والنائم الخ۔
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۳۵۳ فصل فیمن یقع طلاقه... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## په نابالغ باندې د حلاله کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو خاوند خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل مولویانو ورته وویل چې حلاله ضروری ده هغوی د دې ښځې نکاح د دیارلسو کالو یو هلک سره وتړله. لس دولس ورځې پس د هغه هلك نه طلاق واخستل شو او پس د عدت د تکمیل نه زوړ خاوند سره نکاح وکړې شوه، اوس سوال دا دې چې آیا د دیارلسو کالو ماشوم سره نکاح صحیح ده یا نه؟ او آیا هغه د بلوغ نه مخکې د طلاق اختیار لری؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: راجه محمود احمد... اسلام آباد... ۸ اگست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** تاسو معلومات وکړئ چې دا دیارلس کلن هلک بالغ وو یا نابالغ،

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] وفیمن لا یقع طلاقه)

په دې صورت کې که نابالغ سره حلاله اوکړې شی، نو نفس حلاله جائز ده لیکن په دې صورت کې ددې نابالغ طلاق نه واقع کیږی، پس که چېرې دا نابالغ مراهق وی اود نکاح او جماع نه پس وفات شی نود عدت نه پس به رومبی خاوند سره دویمه نکاح جائز وی، لیکن د طلاق ورکولو دپاره به (د نابالغ) د بالغ کیدو پورې صبر کوی

قال العلامة الکاسانی: وسواء کان الزوج الثانی بالغا او صبیا یجامع فجامعها او مجنونا فجامعها لقوله تعالیٰ حتی تنکح زوجا غیره من غیر فصل بین زوج وزوج ولان الصبی والمجنون یتعلق به احکام النکاح من المهر والتحریم کوطی البالغ العاقل.

(بدائع الصنائع ۳:۱۸۹ فصل فی ان یکون النکاح الثانی صحیحا)

اوپه فتاویٰ عالمگیری کې دی: وفی الانفع الصبی المراهق فی التحلیل کالبالغ اذا جامعها قبل البلوغ وطلقها بعد البلوغ لان الطلاق منه قبل البلوغ غیر واقع کذا فی التتارخانیة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به) (ازمرتب)

که دا معلومه شوه چې دا هلک بالغ وو د هغه احتلام یا انزال کیدو (۱) نو معامله صحیح او حلاله شوې ده (۲) او که نابالغ وی نو خپله نکاح نه شی کولې، ایجاب او قبول نه شی کولې، او که بل سړې د هغه دپاره ایجاب او قبول وکړی نو نکاح صحیح ده. (۳) خو د بلوغ نه مخکې طلاق نه شی ورکولې (۴) وهوالموفق

## په حلاله کولو باندې پیسې اخستل او رشوت د صحت حلاله دپاره ضرر نه ورکوی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د پنځلس زره روپو په شرط حلاله وکړی. یا په بل صورت د شرط نه مخکې نکاح وکړی او بیا لس زره روپۍ اوغواړی چې که رقم دې راکړو خو صحیح ده کنه نو طلاق نه ورکوم، آیا دا پیسې د محلل دپاره جائز دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** حافظ مختار احمد حقانی کوهاټ... ۱۸ رجب ۱۴۰۵ھ

---

۱) قال العلامة الحصکفی: بلوغ الغلام بالاحتلام والاحبال والانزال والاصل هو الانزال... فان لم یوجد فیهما شیئ فحتی یتم لکل منهما خمس عشرة سنة به یفتی... وادنی مدته له اثنتا عشرة سنة ولها تسع سنین هو المختار کما فی احکام الصغار.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۱۰۷ فصل بلوغ الغلام بالاحتلام)

۲) وفی الهندیة: وفی الانفع الصبی المراهق فی التحلیل کالبالغ اذا جامعها قبل البلوغ وطلقها بعد البلوغ، لان الطلاق منه قبل البلوغ غیر واقع کذا فی التتارخانیة، فسر المراهق فی الجامع الصغیر فقال غلام لم یبلغ ومثله یجامع جامع امرأته وجب الغسل علیها واحلها للزوج الاول ومعنی هذا الکلام ان تتحر ک آلته ویشتهی کذا فی الهدایة.
(فتاوی عالمگیریة ۱:۴۷۳ فصل فیما تحل به المطلقة وما یتصل به)

۳) قال العلامة الحصکفی: وینعقد بایجاب وقبول وضعا للمضی کزوجت نفسی او بنتی او موکلتی منک ویقول الآخر تزوجت (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۸۵ کتاب النکاح)

۴) وفی الهندیة: ولا یقع طلاق الصبی وان کان یعقل.
(فتاوی عالمگیریة ۱:۳۵۳ فصل فی من یقع طلاقه ومن لا یقع)

**الجواب:** دا روپۍ رشوت دي (۱) خو د حلالې د صحت دپاره ضرري نه دي لصحة النكاح عنده (۲) وهوالموفق

## د طلاق ثلاثه نه پس بغیر د تحلیل نه د ښځې د ساتلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته طلاقه ثلاثه ورکړل هغه وخت د هغه د لور عمر درې میاشتې وو، څلور میاشتې پس د کلي سپین روبي (مشران) هغه ته د جرګې په شکل کې راغلل چې تفصیل معلوم شي. هغه په تفصیل سره د طلاق دا نقل واورولو "ما فلانی د فلاني خوی خپلې ښځې ته طلاق ثلاثه ورکړل او اقرار ئې وکړو چې د عدت تیریدلو نه پس هغه بله نکاح کولې شي که کوی او که نه کوی د هغه مرضی" د طلاق نه پس یعنی څلور میاشتې پس هلک دوباره د څه کسانو (کوم چې رشته دار وو) په وینا د خپل طرف نه د دویمې نکاح مجلس منعقد کړو او د نکاح اعلان ئې وکړو، مقامی علماء کرامو د دویمې نکاح د ناجائز کیدو فتوی ورکړه، خو هغوی کلک ولاړ وو مونږ هغوی سره تعلق پرېښودلو. اوس د قرآن او سنت په رڼا کې آیا دا نکاح جائز ده؟ او دا څنګه منع کیدلې شي؟ بله دا چې صرف قطع تعلق کافی دې او که بله هم څه لاره شته؟ او که دا کبیره

---

۱) قال العلامة ابن حجر الهيتمي : والرشوة في الحكم يتوصل بها الراشي الى حكم الحاكم ثم المتوصل اليه بالرشوة ان كان حكما بحق او توقفا عن الحكم بباطل فسبب تسمية ما يبذل لاجله رشوة وتحريمه انه به يستمد العدل ويخرجه من الحاكم ... وحيث حرم الاخذ حرم البذل الا اذا كان على ان يحكم بالحق فيحرم الاخذ دون البذل الخ-
(ايضاح الاحكام لما يأخذه العمال والحكام ۱۱۴ الفصل الثاني في الرشوة وفيه طرفان)

۲) وفي الهندية : وان كان الطلاق ثلاثا لم تحل له حتى تنكح زوجا غيره نكاحا صحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها-
(فتاوی عالمگیریة ۱: ۴۷۳ فصل فيما تحل به المطلقة وما يتصل به)

ګناه وی نو آیا دا ګناه کونکې قتل کړې شي او که صرف بائیکاټ کافی دې.

بینواتوجروا

المستفتی: سید عبدالحکیم عاجز ... عباسیه الکویت ... ۲۸ ذی الحجة ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د طلاق ثلاثه مغلظه د وقوع نه پس بغیر د تحلیل نه دویمه نکاح کول د مذاهب اربعه په نزد ګناه ده او ناجائز او کالعدم ده، که عدت تیر شوې وی یا نه وی تیر شوې. (۱) په دې ښځه باندې هم دا لازم دی چې دې خاوند ته په جماع باندې قدرت ورنکړی، د خاوند نه دې وتښتي یا دې بل څۀ مناسب تجویز وکړی خو د وسلې او قتل نه دې ځان ساتی. (عالمګیری) (۲) وهوالموفق

## د طلاق ثلاثه نه پس ښځې لره په کور کې د ساتلو او د هغوی د معاونینو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپلې ښځې ته درې طلاقه د ګواهانو په مخکې لیکلو سره د رجسټرۍ په ذریعه ولیږلو، بیا ئې د پولیس په کومك سره دوباره دا ښځه د هغې د پلار نه وتختوله، آیا د درې طلاقو نه پس په زبردستۍ دا ښځه ځان سره ساتلې شی؟ هم دغه شان د دې حمایت کونکی خلق چا چې په دې تختولو کې تعاون کړې دې هغوی سره نورو مسلمانانو لره څه سلوك کول پکار دی، ترڅو چې هغوی

---

(۱) قال العلامة الحصكفي: الا اذا طلقها ثلاثا وطلبت التفريق فانه يفرق بينهما اجماعا كما لو خالعها ثم اقام معها من غير عقد او تزوج كتابية فى عدة مسلم او تزوجها قبل زوج آخر وقد طلقها ثلاثا فانه فى هذه الثلاثة يفرق من غير مرافعة بحر عن المحيط. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۴۲۰ باب نكاح الكافر)

(۲) وفى الهندية: وكذلک ان سمعت انه طلقها ثلاثا وجحد الزوج ذلک وحلف فردها عليه القاضى لم يسعها المقام معه وينبغى لها ان تفتدى بمالها او تهرب منه الخ.
(فتاوىٰ عالمگيرية ۵:۳۱۳ قبيل الباب الثانى فى العمل بغالب الرأى)

د دې حرکت نه توبه نه وی کړې؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام دین معرفت محمد عبدالله (شهید)

خطیب اسلام آباد... ۲۸ دسمبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت په دې خاوند باندې دا اوله زنانه مطلقه مغلظه شوې ده، لقوله تعالی: فان طلقها فلا تحل له من بعد حتی تنکح زوجا غیره (۱) او بغیر د تحلیل (حلاله) نه خلاصې نشته، پس دې خاوند او د هغه په کومك کونکو باندې د حرام کار کولو د وجې نه توبه لازم ده او د اصرار په صورت کې په اهل اسلام باندې ضروری ده چې دا زنانه د هغه نه جدا کړی (۲) او دې خاوند او د هغه د کومك کونکو سره ترک موالات (بائیکاټ) وکړی. (۳) وهوالموفق

...

---

۱) (سورة البقرة: ۲۳۰)

۲) قال العلامة الحصکفی: الا اذا طلقها ثلاثا وطلبت التفریق فانه یفرق بینهما اجماعا کما لو خالعها ثم اقام معها من غیر عقد او تزوج کتابیة فی عدة مسلم او تزوجها قبل زوج آخر وقد طلقها ثلاثا فانه فی هذه الثلاثة یفرق من غیر مرافعة بحر عن المحیط. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۲۰ باب نکاح الکافر)

۳) قال العلامة النووی: واعلم ان فی حدیث کعب هذا رضی الله عنه فوائد کثیرة... الحادیة عشرة استحباب هجران اهل البدع والمعاصی الظاهرة وترک السلام علیهم ومقاطعتهم تحقیر الهم زجراً.

(شرح النووی علی مسلم ۲:۳۶۳ باب حدیث توبة کعب بن مالک)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

(ششم جلد)

# باب ثبوت النسب

........

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاوی فریدیہ

# باب ثبوت النسب

قال رسول اللہ صلی اللہ علیہ وسلم:

اَلوَلَدُ لِلفِراش

وَلِلعاھِرِ الحجر.

(رواہ ابوداؤد)

.........

# باب ثبوت النسب

## د شپږو میاشتو نه په کمه موده کې پیدا کیدونکی ماشوم ثابت النسب نه وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید خپلې ښځې ته طلاق ورکولو سره فارغه کړه د طلاق نه اته میاشتې پس هندې د خالد سره نکاح وکړه، خالد سره د نکاح نه څلور میاشتې او څلیرشت ورځې پس د هندې نه یو ماشوم پیدا شو، خالد د هنده نه دې باره کې پوښتنه وکړه، نو هنده زبانی او تحریری اقرار کوي چې دا ماشوم د فلانی سړی دې یعنی د غیر نه دې اوس به دا ماشوم ولد الزنا وی او که د زید یا خالد طرف ته به منسوب وی؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: مولوی عبدالحکیم کهیوال جهلم

**الجواب:** دا هلک د خالد ځوی نه شی کیدې. لان اقل مدة الحمل ستة اشهر (۱) او د زانی هم نه شی کیدې. (لان النسب لایثبت من الزنا قال رسول الله صلی الله علیه وسلم الولد للفراش وللعاهر الحجر) (۲) پس که د طلاق په وخت زنانه حامله وه نو نسب به ئې د زید نه ثابت وی، لان المعتدة فراش له،

---

(۱) قال العلامة المودود الموصلی: اقل مدة الحمل ستة اشهر لما روی ان رجلا تزوج امرأة فجاء ت بولد لستة اشهر فهم عثمان برجمها فقال ابن عباس: لوخاصمتکم بکتاب الله لخصمتکم، فان الله تعالیٰ یقول: وحمله وفصاله ثلاثون شهرا، وقال: والوالدات یرضعن اولادهن حولین کاملین، فبقی لمدة الحمل ستة شهر.

(الاختیار لتعلیل المختار ۲:۲۲۷ فصل فی اقل مدة الحمل واکثرها)

(۲) عن ابی هریرة رضی الله عنه یرفعه قال الولد للفراش وللعاهر الحجر، رواه الستة واحمد فی المسند والبیهقی- (سنن الدارمی ۲:۲۰۳ باب الولد للفراش کتاب النکاح)

او که بیماری ئې راتله نو دا ماشوم به صرف مور ته منسوب کولې شی (۱)

وهوالموفق

## شپږ میاشتې پس پیدا کیدونکی ماشوم نه انکار کول په صریح غلطئ باندې اصرار کول دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یوې زنانه باندې حیض راغلو، او دهغې نه اتلس ورځې پس د هغې خاوند کور ته راغلو، او درې میاشتې چوتی تیرولو نه پس دوباره قطر ته لاړو، تقریبا شپږ میاشتې او څلور ورځې تیریدلو نه پس د غوا په دیکې سره د ښځې ماشوم پیدا شو کوم چې په قد کې بالکل وړوکې او کمزورې وو، خو ژوندې بچ کیدو سره صحت یاب شو، اوس خاوند خپلې ښځې ته لیکلې دی چې د دنیا په میډیکل تاریخ هم دا نه منی چې په دومره موده کې ماشوم پیدا کیدې شی، چونکې زنانه پاکه او باحیاء ده خو خاوند د هغه ماشوم نه انکار کوی او وائی چې زه خپلې ښځې په دهوکه کې ساتلې یم اوس دا ماشوم د هغوی ترمینځه د جدایئ سبب جوړیږی آیا په دومره موده کې ماشوم ژوندې پاتې کیدې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: قاضی محمد سجاول خان پیروټ ایبټ آباد

**الجواب:** چې کله د نکاح نه شپږ میاشتې پس ماشوم پیدا شی نو دا ماشوم د

---

(۱) وفی الهندیة: واذا تزوجت المعتدة بزوج آخر ثم جاء ت بولد ان جاء ت به لاقل من سنتین منذ طلقها الاول او مات ولاقل من ستة اشهر منذ تزوجها الثانی فالولد للاول وان جاء ت به لاکثر من سنتین منذ طلقها الاول او مات ولستة اشهر فصاعدا منذ تزوجها الثانی فهو للثانی والنکاح جائز وان جاء ت به لاکثر من سنتین منذ طلقها الاول او مات ولاقل من ستة اشهر منذتزوجها الثانی لم یکن للاول ولا للثانی... ومهما امکن اخالة النسب الی الفراش الصحیح کان اولیٰ وان لم یمکن اثباته منه وامکن اثباته من الثانی فالنسب [illegible] الخ. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۳۸ الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

خاوند ثابت النسب وی او چې کله د جماع نه شپږ میاشتې پیدا شی نو د هغه په ثابت النسب کیدو کې هیڅ شک نشته. (۱) دا خاوند بنکاره په غلطئ اصرار کوی. وهوالموفق

## اووه ماشتې وروسته پیدا شوی ماشوم ثابت النسب وي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د ښځې سره د جماع نه پس زما په کور کې د اووۀ میاشتو نه پس ماشوم پیدا شو، د پیدائش نه پس پنځلس ورځو پورې مور او ځوی زمونږ په کور کې وو او زمونږ هیڅ شک او شبهه نه وه خو بعض خپلوانو زه مجبوره کړم او ویې ویل چې دا هلک ستا نه دې ښځه هم د هر قسم یقین پیدا کولو او قسم کولو دپاره تیاره شوه، خو ما هغې ته درې طلاقه ورکړل او هغه ماشوم مې هم خان سره بوتلو د هغه هلک څۀ حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: صالح خان پېی نوښهر ....۷ رجب ۱٤۰٦هـ

**الجواب:** دا ماشوم د طلاق ورکونکی ځوی او وارث دې څکه چې دا ماشوم پوره موده کې پیدا شوې دې (۲) او مور ئې لعان هم نه دې کړې، بغیر د لعان

---

۱) قال العلامة المرغيناني: ومن قال ان تزوجت فلانة فهى طالق فتزوجها فولدت ولدا لستة اشهر من يوم تزوجها فهو ابنه وعليه المهر، اما النسب فلانها فراشه لانها لما جاء ت بالولد لستة اشهر من وقت النكاح فقد جاء ت به لاقل منها (وبعد صفحة) واقل مدة الحمل ستة اشهر لقوله تعالىٰ وحمله وفصاله ثلثون شهرا ثم قال وفصاله فى عامين فبقى للحمل ستة اشهر۔

(هداية ۲:۴۰۸،۴۱۲ باب ثبوت النسب)

۲) قال العلامة الحصكفى: اكثر مدة الحمل سنتان... واقلها ستة اشهر اجماعا فيثبت نسب ولد معتدة الرجعى ولو بالاشهر لا يأسها بدائع۔

(الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۷۶ فصل فى ثبوت النسب)

نه د ماشوم نفی نامنظور او کالعدم کیږی (۱) والمسئلة من الواضحات فلا حاجة الی نقل العبارات. وهوالموفق

## د اغوا شوي زنانه د بچي نسب او د ماشوم د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه وادۀ شوې ښځه یو بل سړی سره اوسیدله د هغه سړی نه د هغې ناجائزه ماشومه پیدا شوه، او د اصلی خاوند په باره کې هغه زنانه په عدالت کې بیان ورکړو چې دا سړې زما خاوند نه دې او زه چې چا سره اوسیږم، هغه زما خاوند دې اوس دا جینۍ ځوانه شوه خو د هغې کوېژدن مسترد کولې شی ځکه چې دا ناجائز ماشومه ده، آیا د هغې نکاح شرعا جائز ده، او دا به چاته منسوب کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد حسن پشاور......۵ اګست ۱۹۷۹ء

**الجواب:** د حدیث ﴿الولد للفراش وللعاهر الحجر﴾(۲) په وجه باندې دا جینۍ د اول خاوند لور ده که اغوا کونکی دې زنانه سره عقد نکاح کړې وی نو سره د کالعدم کیدو به د دې اغواء کونکی نه د دې ماشوم نسب ثابت وی (۳) د دې جینۍ نکاح د څلورو وارو امامانو په نزد صحیح ده. وهوالموفق

---

۱) قال العلامة المرغینانی: ولو کان القذف بنفی الولد نفی القاضی نسبه والحقه بامه وصورة اللعان ان یأمر الحاکم الرجل فیقول اشهد بالله انی لمن الصادقین فیما رمیتک به من نفی الولد وکذا فی جانب المرأة ولو قذفها بالزنی ونفی الولد ذکر فی اللعان الامرین ثم ینفی القاضی نسب الولد ویلحقه بامه. (هدایه ۲:۳۹۷ باب اللعان)

۲) (سنن الترمذی ۱:۱۳۸ باب ماجاء ان الولد للفراش ابواب الرضاع)

۳) وفی الهندیة: (بعد عبارة طویلة) لان نکاح الثانی فاسد ومهما امکن احالة النسب الی الفراش الصحیح کان اولی وان لم یمکن اثباته منه وامکن اثباته من الثانی فالنسب یثبت من الثانی... لان النکاح الثانی وان کان فاسدا لکن لما تعذر... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## صرف په بې ثبوته الزام باندې د نسب نفی نه شي کیدې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی واده کولو نه يو کال پس سعودی عرب ته لاړو بيا د ښځې يو ماشوم پيدا شو خو له بده مرغه چا دا ښځه مجبوره کړه چې ته دا ووايه دا ماشوم زما د پلندر نه دی، حال دا چې د هغه زنانه پلندر هم په سعودی عرب کې دې نو آيا شرعا په دې خبرې سره دا پلندر مجرم ثابتیدلې شي؟ او د ماشوم څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: عبدالرشيد بازار شهيدان مردان ..... ۳ جمادی الثانية ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** صرف الزام بغير د ثبوت نه يو بې اثر اقدام دې په دې سره نه ملزم مجرم ثابتدلې شي او نه ماشوم حرامی کيدلې شي، نسب او نکاح په خپل حال برقرار دی. (۱) وهوالموفق

## د ولد الزنا نسبت به د مور طرف ته کولې شي او د مور وارث به وي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د لاندې ليکلې شوې مسائلو په باره کې چې ۱: د ولد الزنا احکام مجموعی طور په کوم کتاب کې موجود دی؟ ۲: هندة منکوحة الغير تښتيدلو سره د زيد سره اوسيدله زيد دا د ښځې په طور استعمال کړه او دوه ماشومان ئې پيدا شو اوس دا ماشومان د زيد وارثان دی يا نه؟ که دا ماشومان بالغ کيدو سره نکاح کول غواړی که د دوی نه يوه جينئ وی نو په وخت د نکاح به د دې نسبت چاته وی، يعنی د ثبوت نسب په باره کې ستاسو څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: فضل مولا پير خيل بابوزئ مردان ..... ۱۹ جولائی ۱۹۷۲ء

---

بقيه ازحاشيه گذشته] اثبات النسب من النكاح الصحيح فاثباته من الفاسد اولى من الحمل على الزنا هكذا فی البدائع-(فتاوی عالمگيرية ۱:۵۳۸ الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

۱) قال رسول الله ﷺ الولد للفراش وللعاهر الحجر، رواه ابوداؤد.
(مشکواة المصابيح ۱:۲۸۷ باب اللعان الفصل الاول)

**الجواب:** ۱: (لم اجدها مجتمعة فما عندی من الکتب). ۲: که هغه دویم سړی بغیر د عقد نکاح نه جماع وکړي نو دا ماشومان حرامیان دی (۱) دا ماشومان نه د هغه سړی نه میراث حاصلولي شی او نه دا سړي د هغوی وارث جوړیدي شی خو د هغه زنانه وارث کیدي شی او دا زنانه او د دي زنانه بچی د هغوی وارثان کیدي شی (۲) لحدیث الولد للفراش وللعاهر الحجر (۳) وصرح به الفقهاء فی باب ثبوت النسب (۳) د مور طرف ته به ئي نسبت کولي شی مثل ولد الملاعنة (۴). وهوالموفق

## مطلقه مغلظه لره د کینودلو په صورت کي د پیدا شوی اولاد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دي مسئلي په باره کي چي یو سړی د شهادت په ذریعه وویل چي که زه په فلانی ځای کي رشته ورکړم نو په ما

---

۱) وفی الهندیة: اذا زنی رجل بامرأة فجاء ت بولد فادعاه الزانی لم یثبت نسبه منه واما المرأة فیثبت نسبه منها۔ (فتاویٰ عالمگیریة ۱۲۷:۱ الفصل الثامن فی دعوة الولد من الزنا وما فی حکمه)

۲) وفی الهندیة: ولو زنی بامرأة فحملت ثم تزوجها فولدت ان جاء ت به لستة اشهر فصاعدا ثبت نسبه وان جاء ت به لاقل من ستة اشهر لم یثبت نسبه الا ان یدعیه ولم یقل انه من الزنا اما ان قال انه منی من الزنا فلا یثبت نسبه ولا یرث منه کذا فی الینابیع۔
(فتاویٰ عالمگیریة ۵۴۰:۱ الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

۳) (مشکواة المصابیح ۲۸۷:۱ باب اللعان الفصل الاول)

۴) قال العلامة المرغینانی: ولو قذفها بالزنی ونفی الولد ذکر فی اللعان الامرین ثم ینفی القاضی نسب الولد ویلحقه بامه لما روی ان النبی علیه السلام نفی ولد امرأة هلال بن امیة عن هلال والحقه بها ولان المقصود من هذا اللعان نفی الولد فیوفر علیه مقصوده فیتضمنه القضاء بالتفریق وعن ابی یوسف ان القاضی یفرق ویقول قد الزمته امه واخرجته من نسب الاب لانه ینفک عنه فلابد من ذکره (هدایة ۳۹۷:۲ باب اللعان

باندې په ښځه طلاق ثلاثه وی، د دې قسم اوچتولو نه پس هغه هم په هغه ځای کې رشته ورکړه د دې نه پس ئې مطلقه ښځه خان سره کړه او دې دوران کې د هغې دوه ماشومان پیدا شو، کال دوه کاله پس هغه بیا ښځې ته طلاق ثلاثه ورکولو سره هغه د کور نه ویستله. او د هغه ښځې دا بچی تر اوسه پورې د پلار سره دی د هغوی څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد بشیر عباسی مظفر آباد...... ۲۴ فروری ۱۹۶۹ء

**الجواب:** په شرط د صدق دا هلکان د هغه سړی خامن نه دی. لعدم النکاح وعدته. (۱) وهوالموفق

## د کوېژدن نه پس د جماع نه د پیدا شوی اولاد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید کوېژدن په شهادت د څلورو ګواهانو شوې وه چې د هغې دوه کاله شوې وو د جینۍ خلقو د دواړو د خوانۍ باوجود د وادهٔ په کولو کې تاخیر وکړو، په دې موده کې زید

---

(۱) چونکې په دې صورت کې عدت هم تیرشوې دې او د نکاح تجدید ئې په نکاح باطل اوفاسد کې، هم نه دې کړې، لهذا دا بچی به ثابت النسب نه وی. یدل علیه ما قال العلامة الحصکفی: وعدة المنکوحة نکاحا فاسداً فلا عدة فی باطل وکذا موقوف قبل الاجازة اختیار لکن الصواب ثبوت العدة والنسب- (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۶۵۹ مطلب عدة المنکوحة فاسدا والموطوأة بشبهة)

دغه شان د دوباره نکاح نه پس د ثبوت النسب قول په هندیه کې هم شته پس که چېرې نکاح اونه شوه اګرچه فاسده یا باطله وی نودا بچی به ثابت النسب نه وی، وفی الهندیة: لو طلقها ثلاثا ثم تزوجها قبل ان تنکح زوجا غیره فجاء ت منه بولد ولا یعلمان بفساد النکاح فالنسب ثابت وان کانا یعلمان بفساد النکاح یثبت النسب ایضا عند ابی حنیفة کذا فی التتارخانیة ناقلا عن تجنیس الناصری- (فتاوی عالمګیریة ۱:۵۴۰ قبیل الباب السادس عشر فی الحضانة)...(ازمرتب)

خپلې کوېژدن کړې جینۍ ته تلو راتلو او بدفعلی ئې هم کوله، اوس د وادۀ نه پس دشپږو میاشتو نه مخکې د پیدا کیدونکی اولاد څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: صوفی محمد رمضان نصیر اباد... ۱۳ مارچ ۱۹۷۶ء

**الجواب**: واضحه دې وی چې د جینۍ او هلک د خپلوانو ترمینځه که د ګواهانو په مخکې باقاعده ایجاب او قبول شوې وی نو دا به نکاح وی اګر چې خطبه یا نکاح خوان نه وی، لهذا دا اولاد به حلالی وی، او که د کوېژدن په وخت کې ایجاب او قبول نه وی شوې (صرف د نکاح وعده شوې وی) نو دا دویم به د وادۀ په وخت عقد د نکاح وی او په زنا سره د حاملې شوې نکاح صحیح ده او او په داسې صورت کې جماع کول هم جائز دی او اولاد به هم حلالی وی. **کما فی الهندیة ۱: ۵۶۱ ولو زنی بامرأة فحملت ثم تزوجها فولدت ان جاءت به لستة اشهر فصاعدا ثبت نسبه وان جاءت به لاقل من ستة اشهر لم یثبت نسبه الاان یدعیه**(۱) خلاصه دا چې دا ماشوم به ثابت النسب وی او دا نکاح صحیح ده. **وهوالموفق**

## د وادۀ نه څلور میاشتې پس د پیدا کیدونکی ماشوم نسب

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی څلور میاشتې او پنځلس ورځې پس ماشومه پیدا شوه آیا د هغې نسب به د دې نکاح والاسره ثابتیږی اوحال داچې داسړې اقرارکوی چې داغلطی زمانه شوې آیا هغه اولنۍ نکاح په خپل حال ده او که دویمه نکاح به کوی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: قاضی حبیب الله ایبټ آباد..... ۱۰ رمضان ۱۴۰۵ هجری

**الجواب**: که د هغه سړی نکاح د وادۀ نه دوه میاشتې یا د هغې نه زیاته موده مخکې شوې وی نو دا جینۍ به د هغه نه ثابت النسب او د هغه لور وي او که

(۱) (فتاوی عالمگیریة ۱: ۵۴۰ قبیل الباب السادس عشر فی الحضانة)

نکاح ئې د دې نه مخکې نه وی شوې نو که دا خاوند ووائی چې دا زما نه دې نو په دې صورت کې هم ثابت النسب ده او د هغه لور ده، او که ووائی چې ما د هغې سره زنا کړې ده نو ثابت النسب نه ده او دا نکاح بهر حال صحیح ده که دا عمل د هغه نه شوې وی یا د بل زانی نه، **والمسئلة الاولی مسطور فی الهندیة ۵٤۰/۱ (۱) وهوالموفق**

## د دوه کالو نه د غائب خاوند د ښځې د حمل مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د کاروبار په سلسله کې د دوه کالو نه بهر وو او ښځه ئې په خپل کور باندې پاتې شوې ده د ښځې په خیته په دې ورځو کې حمل ظاهر شو کوم چې د دوه کالو نه پس پیدا شو او دوه کاله پس زید کور ته راغې چې کله وضع د حمل وشوه نو دا خبره مشهوره شوه چې دا ماشوم د زید نه دې، اوس شرعا د دې څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم ........ ۱۰ فروری ۱۹۷٤ء

**الجواب:** د شریعت د اصولو په رڼا کې به دا حمل د زید نه ثابت وی دا ماشوم به حرامی نه وی، لان اکثرمدة الحمل سنتان کماصرحوابه (۲) **وهوالموفق**

## د ښځې د کنځلو په طور د خاوند نه د اولاد نفی کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د خپلې یوې

---

۱) وفی الهندیة: ولو زنی بامرأة فحملت ثم تزوجها فولدت ان جاء ت به لستة اشهر فصاعدا ثبت نسبه وان جاء ت به لاقل من ستة اشهر لم یثبت نسبه الا ان یدعیه ولم یقل انه من الزنا اما ان قال انه من الزنا فلا یثبت نسبه ولا یرث منه.

(فتاوی عالمگیریة ۱:۵٤۰ الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب)

۲) قال العلامة المرغینانی: واکثر مدة الحمل سنتان لقول عائشة رضی الله عنها الولد لا یبقی فی البطن اکثر من سنتین ولو بظل مغزل- (هدایة ۲:٤۱۲ باب ثبوت النسب)

ښځې په موجود ګئ کې چې د هغې پنځه ماشومانې او دوه ماشومان وو، دویم وادهٔ وکړو چې د هغې اوس یو ماشوم دې. زید د دواړو ښځو او اولاد سره مساوی سلوک کوی خو هر چې د مال او ځاروو تعلق دې هغه ئې د اولې ښځې او اولاد په تحویل کې دی، هغه ښځې په مزه مزه خپل اولاد لره د دې خاوند خلاف د بدلې اخستلو په جذبه باندې راوچتول شروع کړل چې هغوی په آسانئ سره په ټول جائیداد باندې قابض شی ځو ورځې مخکې واقعه ده چې اولې ښځې د خاوند سره جګړه وکړه او وې ویل چې زما اولاد ستا د نطفې نه نه دی پیدا شوی بلکې د غیر نه دی او حرامیان دی او د زنا پیدائش دې او ډیره بې عزتی ئې ورله وکړه په دې صورت کې د دې زنانه اولاد د هغه سړی وارثان کیدې شی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: محمد روشن خان ... باسیان کوهاله .... ۱۷ اګست ۱۹۷۲ء**

**الجواب:** دا اوله ښځه ئې باقاعده ښځه ده. **لعدم تحقق القواطع،** او دا ټول په ټول اولاد د دې سړی وارثان دی او د هغه د منکوحه نه پیدا شوې دی (۱) د دې سړی په انکار یا د بل چاپه انکار سره وراثت ته هیڅ نقصان نه شی رسیدلې. (۲) **وهوالموفق**

...

---

(۱) وفی الهندية : قال اصحابنا لثبوت النسب ثلاث مراتب الاولى النكاح الصحيح وما هو فى معناه من النكاح الفاسد والحكم فيه انه يثبت النسب من غير دعوة ولا ينتفى بمجرد النفى وانما ينتفى باللعان فان كانا ممن لا لعان بينهما لا ينتفى نسب الولد كذا فى المحيط.
(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۵۳۶ الباب الخامس عشر فى ثبوت النسب)

(۲) قال العلامة الموصلى : ويستحق الارث برحم ونكاح وولاء اما الرحم والنكاح فبالكتاب والاجماع واما الولاء فلما ياتى ان شاء الله تعالىٰ.
(الاختيار لتعليل المختار ۲:۵۵۵ كتاب الفرائض)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوٰی فریدیه

(شپږم جلد)

# فصل فی العزل وضبط التولید

.........

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوی فریدیه

# فصل فی العزل وضبط التولید

عن جابر رضی الله تعالی عنه:

قال كنا نعزل والقرآن ينزل.

(متفق علیه)

........

# فصل فی العزل وضبط التولید

## د ځلورو میاشتو نه مخکې د حمل ساقط کول او د حمل د مانع دوایانو استعمالول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د اولاد بندول (منصوبه بندی) دپاره علاج کول څنګه دی د بعض زنانو په استقرار حمل باندې دوه درې میاشتې تیرې شی یعنی د علوق توقع وی هغه وخت د اسقاط حمل دوایانې استعمالول څنګه دی؟ ۲: که د چا اولاد زیات وی خو د زنانه صحت کمزورې وی او د زیات اولاد په پیدائش سره د صحت خرابیدلو خطره وی نو آیا دا شرعا جائز ده؟ او د عزل طریقه څه ده، آیا د هغه دپاره عزل جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: c/o مولانا سلطان محمود
ناظم اعلیٰ دار العلوم حقانیة ... ۱۲ ربیع الثانی ۱۴۰۳ هجری

**الجواب:** ۱: د ځلورو میاشتو تیریدلو نه مخکې اسقاط حمل جائز دې چې کله په مصلحت یا د خاوند په اجازت (عند الحاجت) باندې مبنی وی. (۱)
۲: په دې صورتونو کې ضبط تولید (۲) په عزل سره (یعنی د انزال په وخت اله

---

۱) وفی الهندیة: امرأة مرضعة ظهر بها حبل وانقطع لبنها وتخاف علی ولدها الهلاک ولیس لابی هذا الولد سعة حتی یستأجر الظئر یباح لها ان تعالج فی استنزال الدم ما دام نطفة او مضغة او علقة لم یخلق له عضو وخلقه لایستبین الا بعد مأة وعشرین یوما اربعون نطفة واربعون علقة واربعون مضغة کذا فی خزانة المفتیین وهکذا فی فتاویٰ قاضی خان.
(فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۵۶ الباب الثامن عشر فی التداوی والمعالجات وفیه العزل واسقاط الولد)

۲) وفی الهندیة: رجل عزل عن امرأته بغیر اذنها لما یخاف من الولد السوء فی هذا الزمان فظاهر جواب الکتاب ان لا یسعه وذکر هنا یسعه لسوء هذا الزمان کذا فی الکبریٰ وله منع امرأته من العزل کذا فی الوجیز للکردری.
(فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۵۶ قبیل الباب التاسع عشر فی الختان والخصاء الخ)

د فرج نه بهر انزال کولو سره، یا په پوکنۍ یا دوایۍ استعمالولو سره جائز دي.

(۱) خو اپریشن کول قابل اعتراض دی. (۲) وهوالموفق

---

۱) وفی المنهاج: العزل هو ان یجامع فاذا قارب الانزال نزع وانزل خارج الفرج وهو مباح خلاف الاولی ... واعلم ان المعالجة لضبط الولادة باكل الحبوب واستعمال آلات الانسداد لیست بممنوعة اذا كانت بمشاورة الزوجین عند الحاجة كالمرض والضعف والمعاشرة الخبیثة وغیرها دون الاملاق.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۲۸۳:۴ باب ماجاء فی العزل)

۲) د دې آپریشن نه مراد د رحم ختمول دی چې په هغې سره دائمی طریقې سره قوت تولید فوت شی او د توالد او تناسل اهلیت ختم شی کوم چې د مصالح او شریعت بالكل خلاف ده.

قال الامام ولی الله الدهلوی: وقال رسول الله ﷺ: تزوجوا الولود الودود فانی مكاثربكم الامم، اقول: تواد الزوجین به تتم المصلحة المنزلیة، وكثرة النسل بها تتم المصلحة المدنیة والملیة، وود المرأة لزوجها دال علی صحة مزاجها وقوة طبیعتها مانع لها من ان یطمع بصرها الی غیره باعث علی تجملها بالامتشاط وغیر ذلک الخ. (حجة الله البالغة ۱۲۳:۲ ابواب تدبیر المنزل)

هم دغه شان دا د رحم ختمول د خصی کولو مترادف دی او فقهاء کرامو د انسان خصی کولو ته بالاتفاق حرام ویلې دی. وفي الهندية: خصاء بني ادم حرام بالاتفاق (عالمگیریة: ۳۵۷/۵) که څوک دا اعتراض وکړی چې په رحم ختمولو او خصی کولو کې فرق دې چې په رحم ختمولو کې صرف قوت تولید ختمیږی نه اشتهاء او لذت او قوت جماع او په اختصاء کې خو دا دواړه طاقتونه ختمیږی، نو مونږ دا وایو چې کله دواړه څیزونه په اختصاء کې ختمیږی نو ګویا دا دوه مستقل جرمونه دی په خصی کیدو کې یو د رحم ختمولو ارتکاب کولې شی، د دې نه علاوه الله پاک د دې بیان داسې بیان فرمائیلې دې چې د هغې نه خپله واضحه ده چې مقصود صرف قضاء شهوت نه دې بلکې د اولاد ډیروالې او اولاد پیدا کول دی.

...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## د ضرورت په وخت اسقاط د حمل د څلورو میاشتو نه مخکې جائز دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یوې زنانه حمل د زنا نه راشي بیا دا زنانه په طبیب یا ډاکټر سره اسقاط د حمل وکړي چې دا زنانه په خپل قوم یا کورنۍ کې رسوا نه شي نو د الله پاک په نزد به دا ډاکټر یا طبیب ماخوذ وي؟ بینواتوجروا

**المستفتي: حکیم فرخ سیر صالح خانه نوشهره**

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] حیث قال الله تبارک وتعالیٰ: (نساؤکم حرث لکم) ای مواضع حرث لکم وهذا مجاز شبهن بالمحارث تشبیها لما یلقی فی ارحامهن من النطف التی منها النسل بالذور والولد بالنبات ووقع قوله (نساء کم حرث لکم) بیانا وتوضیحا لقوله: (فاتوهن من حیث امرکم الله) ای ان المأتی الذی امرکم الله به هو مکان الحرث لا مکان الفرث تنبیها علی ان المطلوب الاصلی فی الاتیان هو طلب النسل لا قضاء الشهوة فلا تأتوهن الامن المأتی الذی نیط به هذا المطلوب. (تفسیر النسفی ۱۲۴:۱ البقرة: ۲۲۳)

د دې نه علاوه د رحم ختمول په تغیر فی خلق الله کې داخل دي.

قال النسفی: (ولآمرنهم فلیغیرن خلق الله) ای بفقء عین الحامی واعفائه عن الرکوب او بالخصاء وهو محظور فی بنی آدم او بالوشم او بنفی الانساب واستلحاقها او بتغییر الشیب بالسواد او بالتخنث (انتهی بحذف یسیر. (تفسیر مدارک ۲۸۳:۱ النساء: ۱۱۹)

هم دغه شان دا د فساد فی الارض د قسمونو نه دي. قال الله تبارک وتعالیٰ واذا تولیٰ سعی فی الارض لیفسد فیها ویهلک الحرث والنسل والله لا یحب الفساد، (البقرة: ۲۰۶)

د دې نه علاوه دې د هیئة کبار العلماء سعودی عربیه د یو مجلس فیصله هم وکتلې شي: واما ما یفعله الاطباء فی هذا الزمان من قطع بعض العروق لابطال قوة التولید مع بقاء قوة الجماع لتحدید النسل فلا شک فی تحریمه فلا یقاس علی العزل قطعا فان بینهما فرقا کبیرا، فالعزل سبب ظنی واما قطع العرق فسبب قطعی لمنع الحمل ولا یبقی للجانی خیار بعد ذلک فی وجود الولد. (وهذا قرار رقم ۴۲ بتاریخ ۱۳/۴/۱۳۹۶ھ).

(التعلیق للبسام السلفی علی بلوغ المرام ۳۴۴ باب عشرة النساء)...(ازمرتب)

**الجواب:** د ضرورت په وجه اسقاط د حمل جائز دي چې لکه نفخ روح یعنی د څلور میاشتو نه مخکې وی. (۱) وهوالموفق

## د مانع حمل دوایانو د استعمال حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بعض زنانه د حمل نه مانع دوایانې استعمالوی چې په هغې سره حمل نه پاتې کیږی، آیا دا دوایانې استعمالول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: انوارالحق متعلم حقانیه

**الجواب:** دا دوایانې که په مصلحت یا د خاوند په اجازت باندې مبنی وی نو د هغې استعمال مباح دې، قیاساً علی العزل (۲) خو مستقل ضبط تولید (آپریشن سره) قابل اعتراض دې. وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (وجاز لعذر) كالمرضعة اذا ظهر بها الحبل وانقطع لبنها وليس لابى الصبى ما يستأجر به الظئر ويخاف هلاک الولد قالوا يباح لها ان تعالج فى استنزال الدم ما دام الحمل مضغة او علقة ولم يخلق له عضو وقدروا تلک المدة بمأة وعشرين يوما وجاز لانه ليس بآدمى وفيه صيانة الآدمى خانية.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۳۰۵ قبيل كتاب احياء الموات)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (تنبيه) اخذ فى النهر من هذا ومما قدمه الشارح عن الخانية والكمال انه يجوز لها سدفم رحمها كما تفعله النساء مخالفا لما بحثه فى البحر من انه ينبغى ان يكون حراما بغير اذن الزوج قياسا على عزله بغير اذنها قلت لكن فى البزازية ان له منع امرأته عن العزل، نعم النظر الى فساد الزمان يفيد الجواز من الجانبين فما فى البحر مبنى على ما هو اصل المذهب وما فى النهر على ما قاله المشايخ والله الموفق.
(ردالمحتار هامش الد[illegible] ۲:۴۰۲ بعيد [illegible]كم اسقاط الحمل)

## د مړ شوي ماشوم اسقاط جائز دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د يوې زنانه حمل راغلو يعنی حيض ئې بند شو بيا يوه، دوه يا درې مياشتې پس ئې په خيټه کې حمل ورک شوې دې او زنانه ته تکليف هم دې نو آيا په دې صورت کې د اسقاط حمل دوائی استعمالول جائز دی يا نه؟ **بينواتوجروا**.

**المستفتی:** مولانا عبدالرحمن حقانی ۲۸ جون ۱۹۷۲ء

**الجواب:** که د قرائن نه د جنين مړ کيدل معلوم شی نو د دوايئ په ذريعه د دې اسقاط او غورځول جائز دي. **وهونظيراسقاطه قبل الحياة(۱) وهوالموفق**

## د ضرورت د وجې نه د جزوي ضبط توليد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د يو سړی شپږ اووه بچی دی د هغوی مور غواړی چې د توالد او نورو اولادونو پيدا کيدو دا سلسله بنده کړی ځکه چې د اولاد د تربيت پالنې د کثرت د وجې نه ترې مونځونه قضاء کيږی او نور فرائض هم نو که د دين د وجې نه د سد توالد دوائی استعمال کړې شی نو د شريعت په رڼا کې به جائز وی يا نه؟ دويم دا چې د يو سړي څلور ماشومان دی، د هغوی مور معتوه الحال ده د اولاد پالنه په ښه طريقې سره نه شی کولې، بد مزاجه هم ده چې د دوه درې مياشتو بچی هم وهی په دې صورت کې د سد توالد څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالله پير سباق........ ۲۰ جنوری ۱۹۷۵ء

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله ويكره ان تسقى لاسقاط حملها وجاز لعذر) كالمرضعة اذا ظهر بها الحبل وانقطع لبنها وليس لابى الصبى ما يستأجر به الظئر ويخاف هلاک الولد قالوا يباح لها ان تعالج فى استنزال الدم ما دام الحمل مضغة او علقة ولم يخلق له عضو وقدروا تلک المدة بماة وعشرين يوما وجاز لانه ليس بآدمى وفيه صيانة الآدمى خانية. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۳۰۵ قبيل كتاب احياء الموات)

**الجواب**: داسې جزوي طريقې سره ضبط توليد منع نه دې(۱) لعدم افضاءه الی فتح باب الزنا ولعدم كونه خشية الاملاق فلايكون فوق العزل (۲) وهوالموفق

## د انجکشن په ذریعه د شنډې ښځې د حملدار کولو مسئله

**سوال**: څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د افزائش نسل دپاره يو انجکشن دې که هغه شنډه زنانه ولګوي او د هغې اولاد وشي نو هغه به حرامي وي که حلالي؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا عبدالرؤف لوند خوړ مردان...... ۲۸ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب**: زنانه سوا د خپل خاوند نه د نورو خلکو مني په خپل فرج کې نه شي داخلولې.(۳) او د داخليدو په صورت کې به دا ماشوم صرف دې زنانه ته منسوب وي که غير منکوحه وي.(۴) په داسې طريقې د توالد سره زنا عام

---

۱) وفي المنهاج: اعلم ان المعالجة لضبط الولادة بأكل الحبوب واستعمال آلات الانسداد ليست بممنوعة اذا كانت بمشاورة الزوجين عند الحاجة كالمرض والضعف والمعاشرة الخبيثة وغيرها دون الاملاق- (منهاج السنن شرح ترمذی ۲۸۳: ۴ باب ماجاء في العزل)

۲) قال العلامة ابن نجيم: لان العزل جائز عن امة نفسه بغير اذنها والاذن في العزل عن الحرة لها ولا يباح بغيره لانه حقها، وفي الخانية ذكر في الكتاب انه لا يباح بغير اذنها وقالوا في زماننا يباح لسوء الزمان الخ- (البحر الرائق ۳:۳۰۰ باب نكاح الرقيق)

۳) وعن رويفع بن ثابت رضي الله عنه عن النبي ﷺ قال: لا يحل لامرئ يومن بالله واليوم الآخر ان يسق ماء ه زرع غيره اخرجه ابوداؤد والترمذي وصححه ابن حبان- (رواه ابوداؤد (۲۱۵۸) والترمذي (۱۱۳۱) وابن حبان (۱۱: ۴۸۵۰) والبزار والبيهقي (۷:۴۴۹) واحمد (۴:۱۰۸) وقال الترمذي هذا حديث حسن)

۴) په فتوی کې ذکر شوې صورت د غيرمنکوحه ښځې دې، وفي الهندية: اذا زنی رجل بامرأة فجاء ت بولد فادعاه الزاني لم يثبت نسبه منه واما المرأة فيثبت نسبه منها- (فتاوی عالمگيرية ۴:۱۲۷ الفصل الثامن في دعوة الولد من الزنا وما في حكمه)...

...[بقيه حاشيه برصفحه آئنده

کیږي خکه چې زنانه به زنا کوي او چې کله ماشوم زاوړي نو د انجکشن رشتوی سرټیفکیټ به حاصلوی. وهوالموفق

[...بقیه ازحاشیه گذشته]

او که چېرې دا ښځه منکوحه وه نو اګرچې په ذکرشوې طریقه کې د اولاد حصول حرام او د اسلامی اصولو خلاف دی خود نکاح په وجه به نسب ددې خاوند نه ثابت وی کما فی الهندیة: قال اصحابنا لثبوت النسب ثلاث مراتب الاولیٰ النکاح الصحیح وما هو فی معناه من النکاح الفاسد والحکم فیه انه یثبت النسب من غیر دعوة ولا ینتفی بمجرد النفی وانما ینتفی باللعان فان کانا ممن لا لعان بینهما لا ینتفی نسب الولد کذا فی المحیط. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۵۳۶ الباب الخامس عشر فی ثبوت النسب) اوپه حدیث کې دی، عن ابی هریرة رضی الله عنه یرفعه قال الولد للفراش وللعاهر الحجر (رواه الستة واحمد فی المسند والبیهقی وسنن الدارمی)

وفی المنهاج: نقل ابن الاعرابی ان الفراش عند العرب یعبر به عن الزوج وعن المرأة والاکثر اطلاقه علی المرأة وفی القاموس الفراش زوجة الرجل، وقال ابن الهمام فی فتح القدیر معنی الفراش کون المرأة مقصودا من وطیها الولد، اما ظاهرا کما فی ام الولد فانه اذا اعترف به ظهر قصده الی ذلک، او وضعا کالمنکوحة یثبت نسب ما تأتی به ولا ینتفی بنفیه الا باللعان وولد ام الولد وان ثبت نسبه بلا دعوة ینتفی بمجرد نفیه.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴:۲۹۵ باب ماجاء ان الولد للفراش)

البته که د خاوند ماده منویه حاصله کړی او دهغې سره څه دوایاني ملاوکړی اود ښځې په مبیضه کې ئې داخله کړی نوپه دې صورت کې څه شرعی مانع نشته.

کما فی الهندیة: رجل عالج جاریته فیما دون الفرج فانزل فاخذت الجاریة ماء ه فی شیئ فاستدخلته فی فرجها فعلقت عند ابی حنیفة ان الولد ولده وتصیر الجاریة ام ولد له کذا فی قاضی خان.

(فتاویٰ عالمگیریة ۴:۱۱۴ الباب الرابع عشر فی دعوی النسب). ...ازمرتب

## عزل کول مباح خلاف اولی دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د عزل شرعی حیثیت څه دې بعض ورته جائز او بعض ورته مکروه وائی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۲۸ مارچ ۱۹۹۱ء

**الجواب:** عزل مباح خلاف اولی دې، که د ښځې په اجازت سره وی (۱) وهوالموفق

---

۱) وفی المنهاج: العزل هو ان یجامع فاذا قارب الانزال نزع وانزل خارج الفرج وهو مباح خلاف الاولیٰ، (قوله لم یفعل ذلک احدکم) انکر علیه انکارا خفیفا، وفی روایة: ما علیکم ان لا تفعلوا ومعناها الاباحة، لا رفع الاثم کما فی حدیث عائشة فلا جناح علیه ان لا یطوف بهما، معناه اباحة السعی وهی امر خاص، وقوله لا جناح علیه ان یطوف بهما معناه رفع الاثم، ورفع الاثم یعم المفروض والواجب والسنة والمباح وکذا یؤید الاباحة روایة جابر رضی الله تعالیٰ عنه کنا نعزل والقرآن ینزل وفی روایة لمسلم فبلغ ذلک نبی الله ﷺ فلم ینهنا، (قوله زعمت الیهود انه الموؤدة الصغری) الوء دا الحقیقی هو اعدام الولد الموجود، والعزل هو الامتناع عن الولادة، والامر الجامع بینهما هو الحرمان من الولد، (قوله کذبت الیهود) لان زعمهم ان العزل سبب للحرمان من الولد زعم باطل، فان قیل: روی مسلم واحمد انه علیه الصلوٰة والسلام قال ان العزل الوء د الخفی، وفیه موافقة لزعم الیهود، واجیب عنه: بان العزل وء دنظرا الی قصد العازل، ولیس بوء د نظر ا الی نفس الامر، لان الله اذا اراد ان یخلقه لم یمنعه شیئ او یقال ان العزل وء د اذا لوحظ انه سبب عادی لحرمان الولد ولیس بوء د اذا لوحظ انه غیر موثر فی الحرمان، او یقال انه علیه الصلوٰة والسلام وافق اولا باهل الکتاب ثم خالفهم بعد نزول الوحی۔
(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴:۲۸۳ باب ماجاء فی العزل)

## د جماع په وخت غباره (کوپړئ) استعمالول مباح خلاف اولی دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بعض خلق د جماع په وخت (ساتهی) کوپړئ استعمالوی آیا داسې کول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید انور شاه پشاور شهر...... ۲۳ مارچ ۱۹۹۳ء

**الجواب:** دا جائز خلاف اولی دې

وحکمه حکم العزل، فی الدر المختار: ویعزل عن الحرة بأذنها لکن فی الخانیة انه یباح فی زماننا لفساده قال الکمال فلیعتبر عذرا مسقطا لاذنها(۱).

**نوټ:** د ښځې نه اجازت اخستل پکار دی. وهوالموفق

(۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۴۱۲ مطلب فی حکم العزل)

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوی فریدیه

(شپږم جلد)

# باب النفقات

.........

بسم اللہ الرحمن الرحیم

فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

فتاوی فریدیہ

# باب النفقات

قال رسول اللہ ﷺ:

اذا اعطی اللہ احدکم خیراً

فلیبدأ بنفسہ واھل بیتہ.

(رواہ مسلم)

........

# باب النّفقات

## د منکوحه ناوادهٔ کړې زنانه د نفقې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یوې زنانه نکاح شوې ده او تر اوسه پورې ئې لاوادهٔ نه دې شوې او په وادهٔ کې د تاخیر نه کار اخلي آیا د هغې نفقه په خاوند باندې لازم ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد شیر جهانګیره.....۱۲ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې منکوحه نا وادهٔ کړې ښځه کومه چې د خاوند د مطالبې باوجود د وادهٔ او رخصتۍ دپاره تیاره نه وی نو ...عه د نفقې مستحقه نه ده. کمافی الهندیة ۱: ۵۴۶ فان کان الزوج قد طالبها بالنقلة فان لم تمتنع عن الانتقال الی بیت الزوج فلها النفقة فاما اذا امتنعت عن الانتقال فان کان الامتناع بحق بان امتنعت لتستوفی مهرها فلها النفقة واما اذا کان الامتناع بغیر حق بان کان اوفاها المهر او کان المهر موجلا او وهبته منه فلا نفقة لها کذا فی المحیط(۱)۔ وهوالموفق

## د ناشزه (بد چلنده) زنانه نفقه په خاوند باندې واجب نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه زنانه خفه کیدو سره د پلار کره لاړه بیا پرې خو کرته جرګې وشوې خو د بار بار راغوښتلو باوجود د خاوند کور ته رانغله. آیا د مور پلار په کور دا زنانه د

۱) (فتاوی عالمگیریة ۱: ۵۴۵ الباب السابع عشر فی النفقات الفصل الاول)

نفقې مطالبه کولې شي؟ بینواتوجروا

المستفتي: ثمر خطاب...... مانسهره

**الجواب:** د مور پلار کور ته بغیر د څه وجې نه تلل او د راغوښتلو باوجود چې کومه زنانه دخاوند کورته نه راځي هغه ناشزه ده، دداسې ناشزه (نافرماني) زنانه نفقه په خاوند باندې واجب نه ده ترڅو چې د خاوند کور ته رانشي وفي الهداية (۴۱۳ جلددوم) وان نشزت فلا نفقة لها حتی تعود الی منزله لان فوت الاحتباس منها واذاعادت جاء الاحتباس فتجب النفقة(۱)۔ وهوالموفق

## د بیمارۍ ښځې د مور پلار په کور کې علاج او د خاوند نه د خرچې مطالبه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړي ښځه بیماره شوه، حتی الوسع علاج ئې ورله وکړو خو په دې وخت کې جینۍ مورپلار خپل کور ته بوتله د علاج معالجې نه پس اوس د خاوند نه نفقه غواړي او حال دا چې د خاوند د اجازت نه بغیر تلې وه آیا دا نفقه او د علاج رقم په خاوند باندې لازم دي؟ بینواتوجروا

المستفتي: نعمت الله... اسلام پور سیدو شریف سوات... ۸ جون ۱۹۸۶ء

**الجواب:** که د دې ښځې د مجبورۍ د وجې نه مور پلار خپل کور ته بوتلې وی نو د نفقې مستحقه ده خو د دوایې بهر حال مستحقه نه ده، کما في رد المحتار ۸۹۳/۲(۲) خو د اخلاقو په باب کې ورکول مناسب دي. وهوالموفق

---

۱) (هداية ۲:۴۱۶ باب النفقة)

۲) قال العلامة الحصكفي: مرضت عند الزوج فانتقلت لدار ابيها ان لم يمكن نقلها بمحفة ونحوها فلها النفقة والا لا كما لا يلزمه مداواتها، قال ابن عابدين: ای اتيانه لها بدواء المرض ولا اجرة الطبيب ولا الفصد ولا الحجامة هندية. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۷۰۱ باب النفقة)

## د کوېږدن نه پس د مور او پلار په کور باندې د اوسېدونکې ښځې د نفقې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د کوېږدن نه پس تر دوه کالو پورې جینۍ د مور او پلار په کور باندې پاتې شوې ده او بیا په دې حالت کې مطلقه هم شوه، آیا د دې دوه کلونو خرچه په خاوند باندې واجب ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: جمشید استاذ ټوپي صوابي...۶ | ۷ | ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** که دا جینۍ د وادهٔ او رخصتۍ نه انکاری نه وه نو دا جینۍ د خرچې اخستلو مستحقه ده کنه نو نه به وی (مأخوذازشامی ۸۸۹/۲) (۱) وهوالموفق

## د ښځې د علاج معالجې او تجهيز او تكفين خرچه په چا باندې ده؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ګواهانو ګواهی ورکړه چې د فلانی نکاح د فلانۍ سره شوې ده او حال دا چې خاوند بالکل انکار کوی چې نه ما نکاح کړې ده او نه مې نکاح کول غوښتل، اوس د ښځې

---

۱) قال العلامة ابن عابدين : وفى الهندية عن الذخيرة ولو كان النكاح صحيحا من حيث الظاهر ففرض لها القاضى النفقة واخذتها شهرا ثم ظهر فساد النكاح بان شهدوا انها اخته رضاعا وفرق بينهما رجع عليها بما اخذت ولو انفق بلا فرض القاضى لم يرجع بشيئ (وبعد صفحة) (قوله ولو هى فى بيت ابيها) تعميم لقوله فتجب للزوجة وهذا ظاهر الرواية فتجب النفقة من حين العقد الصحيح وان لم تنتقل الى منزل الزوج اذا لم يطلبها وقال بعض المتأخرين لا تجب مالم تزف الى منزله وهو رواية عن ابى يوسف واختاره القدورى وليس الفتوىٰ عليه وتمامه فى الفتح. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۹۹،۷۰۱ باب النفقة)

وفى الهندية : الكبيرة اذا طلبت النفقة وهى لم تزف الى بيت الزوج فلها ذلك اذا لم يطالبها الزوج بالنقلة ومن مشائخ بلخ رحمهم الله تعالىٰ من قال لا تستحقها اذ لم تزف الى بيته والفتوىٰ على الاول كذا فى الفتاوىٰ الغياثية.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۵۴۵ الفصل الاول فى نفقة الزوجة)

وروړ وائی چې دا خاوند د وادۀ نه پس بمبئ ته تښتيدلې وو، د هغه ښځه يعنی زما خور بيماره شوه ما ئې علاج معالجه وکړه د کفن دفن خرچ مې برداشت کړو، اوس دې خاوند ماته هغه خرچه ادا کړی او حال دا چې خاوند بالکال انکار کوی په دې صورت کې څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: مولانا مفتی بدر منير مهتمم دار العلوم مدنيه اماندره سوات ۲۵ | ۱۲ | ۱۹۸۵ء**

**الجواب:** په شرط د ثبوت نکاح، په دې ناکح باندې صرف د تکفين او تجهيز رقم واجب دې (۱) نه د معالجې او رسمونو. **(فليراجع الى ردالمحتار ۲/ ۸۹۳)** (۲) **وهوالموفق**

## د ښځې نفقه په خاوند او د غير قادر على الکسب اولاد نفقه په پلار باندې ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ۱: ښځه بوډئ شی او اولاد ئې هم وی خو خاوند ئې د خرچ خوراک حق ادا کوی، د هغې څه حکم دې؟ ۲: خاوند خپله ښځه اولاد ته حواله کوی حال دا چې اولاد د هغې اهل نه دې؟ ۳: خاوند سره ئې ښۀ ډير دولت دې خو د ښځې حصه نه ادا کوی؟

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: اعلم ان الواجب عليه (ای الزوج) تكفينها وتجهيزها الشرعيان من كفن السنة اوالكفاية وحنوط واجرة غسل وحمل ودفن دون ما ابتدع فی زماننا من مهللين وقراء و مغنين وطعام ثلاثة ايام ونحو ذلک ومن فعل ذلک بدون رضا بقية الورثة البالغين يضمنه فی ماله۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۳۹ مطلب فی کفن الزوجة علی الزوج)

۲) قال العلامة الحصکفی: لا تفرض على غائب باقامة الزوجة بينة على النكاح او النسب ولا تفرض ايضا ان لم يخلف مالا فاقامت بينة ليفرض عليه ويأمرها بالاستدانة ولا يقضى به لانه قضاء على الغائب وقال زفر يقضى بها ای النفقة لا بالنكاح- وقال ابن عابدين: (النفقة بانواعها) من الطعام والكسوة والسكنى ولم ارمن ذكر هنا اجرة الطبيب وثمن الادوية وانما ذكروا عدم الوجوب للزوجة-(الدرالمختار مع ردالمحتار ۷۲۵،۷۲۸ :۲ مطلب فی نفقة المطلقة

۴: د ښځې دماغی توازن ئې خراب شوې دې آیا په خاوند باندې خرچ خوراک لازم نه دې؟ ۵: خاوند د تیرو پنځویشتو کالو نه د ښځې حقوق غصب کولو سره نورو ته ورکوی؟ ۲: ښځه ئې وږې او بربنده ده خاوند ئې مزې کوی د دې څه حکم دې؟ ۷: که د اولاد والده خدمت کوی نو آیا خاوند د خپلې ښځې حقوق غصب کولې شی؟ ۸: په دې دواړو باندې د جادو کونکی او د چا په وینا چې پرې شوې دې د هغوی دواړو څه حکم دې؟ ۹: که اولاد د مور د حقوق دپاره عدالت ته رجوع وکړی نو آیا هغوی ته دا حق حاصل دې؟ ۱۰: چې اولاد وږې او په تکلیفونو کې وی والدین مالدار وی په دې صورت کې د طرفین د حقوق څه حکم دې؟ ۱۱: د انصاف دپاره څه اقدام اوچتیدلې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: الطاف حسین رسالپور کینټ .... ۱۹اپریل ۱۹۷۵ء

**الجواب**: کومه ښځه چې مطلقه نه ده هم دغه شان د نابالغ اولاد نفقه په هغه سړې باندې فرض ده دا مستحقین خپل حقوق د حکومت په ذریعه حاصلولې شی. هم دغه شان بغیر د اجازت نه په پټه باندې هم د دې خاوند د مال نه نفقه او جامې وغیره باقاعده اخستلې شی (۱)

بهر حال دا سړې ظالم او مجرم دې بله دا چې جادو کول یا په بل باندې کول حرام قطعی دی او ډیر کرته کفر دې (۲). **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفي : والابوان لو انفقا ما عندهما لغائب من ماله على انفسهما وهو من جنسه اى جنس النفقة لا يضمنان لوجوب نفقة الولاد والزوجية قبل القضاء حتى لو ظفر بجنس حقه فله اخذه ولذا فرضت من مال الغائب بخلاف بقية الاقارب الخ. (الدرالمختار على هامش ردالمختار ۲:۷۴۴ مطلب فى مواضع لا يضمن فيها المنفق اذا قصد الصلاح)

۲) قال العلامة ابن عابدين : وفى حاشية الايضاح لبيرى زاده قال الشمنى تعلمه وتعليمه حرام اقول مقتضى الاطلاق... وللسحر فصول كثيرة فى كتبهم فليس كل ما يسمى سحرا كفرا اذ ليس التكفير به لما يترتب عليه من الضرر بل لما يقع به مما هو كفر كاعتقاد انفراد الكواكب بالربوبية او اهانة قرآن او كلام مكفر ونحو ذلك الخ.
(ردالمختار هامش الدرالمختار ۱:۳۳ مقدمة مطلب السحر انواع)

## د ښځې د مهر او کالو (زیوراتو) او د عدت د ورځو د نفقې مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما د لور نکاح خوشدل نومې هلك سره شوې وه، څه موده پس هغه زما لور زما کور ته راولیږله، زما په کورکې ئې نهه میاشتې تیرې کړې نو ما خپله لور دوباره خپل خاوند کره بوتله، پس هغه خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل، آیا زه ددغه هلك نه د نهه میاشتو نان ونفقه (د خوراك څښاك) خرچه اخستلې شم، ددې نه علاوه ئې چه په عدت کې کومې ورځې تیرې کړې دی د هغې نان ونفقه هم اخستلې شم، ددې نه علاوه مهر او څه زیورات موجود دی هغه دا جینۍ اخستلې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: بمعرفت مولانا گوهر الرحمٰن صاحب تفهیم القرآن.... ۱۹۶۸ء | ۳ | ۱۹

**الجواب:** دا طلاقه شوې جینۍ زیورات او مهر اخستلې شی، لان المهر یکون واجب الاداء بعد الموت او الطلاق کما فی الهندیة ۱: ۳۳۹ (۱) خو (د خاوند) په کور کې د نه اوسیدلو ورځو نفقه نه شی اخستلې. کما فی الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۹۰۶ (۲) او د عدت په ورځو کې که د مور په کور کې اوسیږی یعنی د خاوند په کورکې نه وی نو د نفقې مستحقه نه ده. کالمنکوحة الناشزة. (۳) وهوالموفق

---

(۱) وفی الهندیة: والمهر یتأکد باحد معان ثلاثة الدخول والخلوة الصحیحة وموت احد الزوجین سواء کان مسمی او مهر المثل حتی لا یسقط منه شیئ بعد ذلک الا بالابراء.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۳۰۳ الفصل الثانی فیما یتأکد به المهر والمتعة)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: (قوله والنفقة لا تصیر دینا الخ) ای اذا لم ینفق علیها بان غاب عنها او کان حاضرا فامتنع فلا یطالب بها بل تسقط بمضی المدة الخ.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۷۱۵ مطلب لا تصیر النفقة دینا الا)

(۳) قال العلامة محمد امین الشامی: وفی المجتبیٰ نفقة العدة کنفقة النکاح وفی الذخیرة وتسقط بالنشوز.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۷۲۷ مطلب فی نفقة المطلقة)

## د عدت وفات دوران کښې د کونډې د نفقې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې خاوند وفات شوې دې او ښځه د وفات عدت تیروی د هغه اخراجات به په چا باندې وی بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرحیم توره ورئ هنگو.... ۳ فروری ۱۹۷۸ء

**الجواب:** د خاوند د مال نه ښځه د وراثت حق اخستلې شی، او د وفات د عدت خرچه د خاوند د مال نه واجب نه ده.

**وفی الهداية (۲:۴۲۳) ولا نفقة للمتوفی عنها زوجها... ولان النفقة تجب شيئاً فشيئاً ولا ملك له بعد الموت فلا يمكن ايجابها في ملك الورثة(۱).**

که خاوند په وراثت کښې څه نه وی پریښودلې او نه ښځې سره څه وی نو بیا په محارم باندې باقاعده نفقه لازم ده. (۲) **وهوالموفق**

## په عنین (نامرد) باندې خرچه واجب ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې یو سړی واده کړې وو خو هغه نامرد وو وروستو په دواړو کښې جدائی راغله، اوس ئې خاوند مطالبه کوی چې ما سره د تیرو کړې شوې ورځو نفقه دې ماته واپس راکړې شی چې په دې ورځو کښې ما هیڅ جماع وغیره نه ده کړې، آیا د دې زنانه د پاره دا نفقه واپس کول ضروری دی؟ **بينواتوجرو**

**المستفتی:** شاه سعید خان......رسالپور نوشهره

---

۱) (هداية ۴۲۲:۲ باب النفقة)

۲) وفى الهندية: والنفقة لكل ذى رحم محرم اذا كان صغيرا فقيرا او كانت امرأة بالغة فقيرة او كان ذكراً فقيرا زمنا او اعمىٰ ويجب ذلک على قدر الميراث ويجبر عليه كذا فى الهداية (فتاوىٰ عالمگيرية ۵۶۵:۱ الباب الخامس فى نفقة ذوى الارحام)

**الجواب:** واضحه دې وی چې د نکاح د وجې نه دا زنانه د هغه سړی دپاره محبوس وه په دې وجه د هغه ورخو خرچه په خاوند باندې لازم وه اګر چې په وطی باندې قادر نه وو،

وفی الدر المختار ۸۹۰/۲، فتجب للزوجة بنکاح صحیح علی زوجها لانها جزاء الاحتباس وکل محبوس المنفعة غیره یلزمه نفقته(۱) وهوالموفق.

## د خاوند نه د جهیز سامان، مهر، د علاج خرچه او د نفقه اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ما خپله لور خپل وراره ته په نکاح ورکړه، هغه بالکل صحت منده وه او د خاوند نه ئې دوه درې ماشومان پیدا شوې دی، د نکاح نه څلور پنځه کاله پس هغې ته دماغی بیماری پیښه شوې ده، د دوه درې کالو مودې پورې متواتر ما په خپل کور کې د هغې پالنه وکړه څکه چې د وادهٔ نه څلور پنځه کاله پس چې کله هغه خاوند د کور نه ویستله نو هغه زما کور ته راغله، بیا د هغې یو هلک چې د خاوند په کور کې پیدا شوی وو زما په کور کې مې لور بیماریدلو سره فوت شو د هغه تجهیز او تکفین هرڅه ما وکړل د هغه د وفات په وخت ئې نه خاوند او نه نور رشته دار زما کور ته راغلل، په خپل کور کې ما د خپلې لور علاج وکړو او په خوراک څښاک او جامو باندې مې تقریبا څلور پنځه سوه روپۍ خرچه کړې ده، هم دغه شان د خاوند د بدې راویې د وجې نه د هغې دماغ زیات خطرناک ثابت شو، ما به هغه د خاوند کور ته بوتله خو هغه به نه پریښودله ما د دې وجې نه د هرڅه بوج په خپل ځان باندې واچولو چې هغه زما خپل وراره دې، تقریبا لس دولس ورځې وشوې چې هغوی لیکلې طلاق نامه راولیږله او حال دا چې د دې نه مخکې ئې مونږ ته هیڅ خبر نه وو راکړې، اوس سوال دا دې چې دا څومره موده زما په کور باندې پاتې شوې ده زه د دې خرچ د شریعت په رڼا کې وصولولې شم یا نه؟ بله دا چې زما د کور نه چې کوم

---

(۱) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۶۹۹:۲ باب النفقة)

سامان دې سره د خاوند کور ته نلې دې هغه وصولولې شم که نه؟ بل هغه د درې څلورو کالو خرچ خوراک کوم چې زما په کور کې هغې کړې دې هغه ترې وصولولې شم او که نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** دوران گل شیدو نوبهر ........ ۱۱ جمادی الثانی ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** د پلار د کور نه چې ئې څومره سامان وړلې دې هغه زنانه ئې واپس اخستلې شی، ځکه چې دا نه د سخې مملوک دې او نه د خاوند (**والدليل عليه العرف**) (۱) او پلار ئې د دوایئ رقم نه شی وصولولې (شامی ۲: ۸۸۹/۲). (۲) او پلار چې کوم خرچ کړې دې هغه هم په خاوند باندې لازم دې (شامی ۲/ ۹۰۶) (۳) بیشکه مهر اخستلې شی. (۴) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: ان ما ذكروه فى مسئلة الجهاز انما هو فيما اذا كان النزاع من الاب اما لو مات فادعت ورثته فلا خلاف فى كون الجهاز للبنت لما فى الولوالجية جهزا بنته ثم مات فطلب بقية الورثة القسمة فان كان الاب اشترىٰ لها فى صغرها او فى كبرها وسلم لها فى صحته فهو لها خاصة... ويدل عليه ما مر من قول المصنف والشارح ليس له الاسترداد منها ولا لورثته بعده وانما الكلام فى سماع دعوى العارية بعد الشراء اوالتسليم والمعتمد البناء على العرف كما علمت.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۹۸ مطلب، فى دعوى الاب ان الجهاز عارية)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله كما لا يلزمه مداواتها) اى اتيانه لها بدواء المرض ولا اجرة الطبيب ولا الفصد ولا الحجامة هندية عن السراج والظاهر ان منها ما تستعمله النفساء مما يزيل الكلف ونحوه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۷۰۲ باب النفقة)

۳) قال العلامة ابن عابدين: (قوله والنفقة لا تصير دينا الخ) اى اذا لم ينفق عليها بان غاب عنها او كان حاضرا فامتنع فلا يطالب بها بل تسقط بمضى المدة الخ.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۷۱۵ مطلب لا تصير النفقة دينا الا بالقضاء اوالرضاء)

۴) قال العلامة الحصكفى: ويتأكد عند وطء او خلوة صحت من الزوج او موت احدهما الخ. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۳۵۸ باب المهر)

## محتاج پلار د ځامنو د مالونو نه ضروریات اخستلې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی څلور ځامن دی چې په هغې کې یو ایم ایس سی او حاجی دې، دویم کارخانه دار او حاجی دې او باقی دوه د کاروبار او زرګونو روپو مالکان دی، خو د هغوی پلار غریب، نادار، محتاج، بوډا، کمزورې او ضعیف دې، هم دغه شان حاجی، عالم او نیک نام دې دا اولاد پلار ته په سپک نظر ګوری خرچه وغیره هم نه ورکوی او حال دا چې پلار ئې د ډوډئ د ټکړې محتاج دې، آیا د دې نافرمان اولاد څه عمل قبول دې؟ مونځ، روژه او حج د هغوی صحیح کیدې سی؟ آیا په شریعت محمد ﷺ کې داسې پلار د هغوی د اولاد خلاف د نان او نفقه دعوی په عدالت کې کولې شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حاجی رحمان ګل حافظ آباد ګجرانواله ... ۱۹ مارچ ۱۹۸۹ء

**الجواب:** عقوق الوالدین د حدیث په بناء فسق او لویه ګناه ده. (۱) خو محبط اعمال نه ده (۲) اودا محتاج پلار بهرحال دهغوی د مالونونه دضرورت په قدر اخستلې شی که دا اولاد رضا وی او که نه وی، د حدیث په وجه **(انت ومالك لابيك)** (۳) خودحاکم په ذریعه خرچ مقررکول زیات آسان دی (۴) **وهوالموفق**

---

۱) عن عبد الله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ الكبائر الاشراک بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس رواه البخاری.
(مشكواة المصابيح ۱۷:۱ باب الكبائر وعلامات النفاق)

۲) قال العلامة التفتازانی : واهل الكبائر من المؤمنين لا يخلدون فی النار وان ماتوا من غير توبة ... مع ما سبق من الادلة القاطعة الدالة على ان العبد لا يخرج بالمعصية عن الايمان. (شرح العقائد النسفية ۱۱۷ واهل الكبائر)

۳) (رواه ابن ماجة والطبرانی كما فی الاختيار لتعليل المختار ۲۴۲:۲)

۴) قال العلامة الحصكفی :النفقة لاصوله ولواب امه الفقراء ... بالسوية ... والمعتبر فيه القرب والجزئية ... لا يعتبر الارث ... الا لمرجح ... [بقيه حاشيه برصفحه آئنده

## بوډا مور پلار ته د نفقې نه ورکولو او د هغوی

## د بې عزتۍ کونکو سره دې ترک موالات وکړې شي

**سوال:** څه فرمائی علما دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی مور پلار اتیا پنځه اتیاکالوته رسیدلې دی هغه هغوی ته خوراک اوخرچه نه ورکوی بلکې د دې په ځای بې عزتی یې کوی د هغوی بچی هم نیا نیکهٔ ته کنځلې کوی او دا سړې نې اوری دې سړی ته به مونږ شرعا څه سزا ورکړو؟ بینواتوجروا

المستفتی: علی محمد سالکران مری ........۳۰ اگست ۱۹۷۵ء

**الجواب:** د مقامی باثر کسانو دپاره ضروری دی چې د دې سړی سره ترک موالات (کاروبار پریښودل) او معاشرتی بائیکاټ وکړی چې توبه ګار او پښیمان شی (۱) وهوالموفق

## د نابالغ اولاد نفقه په پلار باندې واجب ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی ښځې ته

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] کوالد وولد فعلی ولد لترجحه بانت ومالک لابیک قال ابن عابدین : ای بهذا الحدیث الذی رواه عن النبی ﷺ جماعة من الصحابة کما فی الفتح وهو مؤول للقطع الخ- (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۷۳۸،۷۳۹ مطلب ضابط فی خصر احکام نفقة الاصول والفروع)

۱) قال العلامة علاء الدین الطرابلسی : والتعزیر لا یختص بفعل معین ولا قول معین فقد عزر رسول الله ﷺ بالهجر وذلک فی حق الثلاثة الذین ذکرهم الله تعالیٰ فی القرآن العظیم فهجروا خمسین یوما لا یکلمهم احد، وقصتهم مشهورة فی الصحاح... فمنها امر عمر رضی الله عنه بهجر ضبیع الذی کان یسأل عن الذاریات وغیرها ویأمر الناس بالتفقه فی المشکلات من القرآن، فضربه ضربا وجیعا ونفاه الی البصرة اوالکوفة وامر بهجره فکان لا یکلمه احد حتی تاب وکتب عامل البلد الی عمر بن الخطاب رضی الله عنه یخبره بتوبته فاذن للناس فی کلامه- (معین الحکام ۱۹۵ فصل التعزیر)

طلاق ورکړې دې د دې ښځې نه ئې دوه لوڼې او یو ځوی دې او د مور سره اوسیږي د هغوی خرچ وغیره په مورباندې لازم دې اوکه په پلارباندې؟ بینواتوجروا

المستفتی: صلاح الدین حضرو اٹک

**الجواب:** که د دې ماشومانو خپل ملکیتي مال نه وي نو د هغه نفقه په پلار باندې واجب ده، که دا ماشومان پلار سره وي او که ځوی سره،

وفی الهندیة (۱: ۵۶۰) نفقة الاولاد الصغار علی الاب لا یشارکه فیها احد کذا فی الجوهرة النیرة (وبعد اسطر) انما یجب علی الاب اذا لم یکن للصغیر مال واما اذا کان له مال فتکون مؤنة الرضاع من مال الصغیر(۱). وهوالموفق

## د ښځې او بچو خرچه په خاوند باندې لازمه او د نورو احسان وي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د ولادت دوران د ماشوم د پیدا کیدو کومه خرچه وغیره راځي د هغې ادا کول د خاوند په ذمه لازم دي او که د ښځې د مور پلار په ذمه؟ زمونږ په نزد دا عموما د ښځې مور او پلار برداشت کوي؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی کبیر خان مانسهره گل آباد... ۲۳ مارچ ۱۹۸٤ء

**الجواب:** دا خرچه د خاوند په ذمه لازم ده (۲) او که نور خلق ئې ادا کړي نو احسان دې، وفی الهدایة (۲: ۴۲۴) ونفقة الاولاد الصغار علی الاب لا یشارکه فیها

---

۱) (فتاوی عالمگیریة: ۱:۵۶۰ الفصل الرابع فی نفقة الاولاد)

۲) په در مختار کې دی: واجرة القابلة علی من استاجرها من زوجة او خاوند ولو جاءت بلا استیجار قیل علیه وقیل علیها. (در مختار ۷۰۵/۲، باب النفقة) یعنی د دایي أجرت (مزدوری) په هغه چا دې چا چې راغوښتلې وي او که بغیر د راغوښتلو نه راغلو نو بعض وائی چې په سړي باندې دی او د بعض په نزد په زنانه باندې، او وجه د اختلاف علامه شامی رحمه الله قیاس په ذو وجهین... [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

احد کما لا یشارکه فی نفقة الزوجة لقوله تعالیٰ وعلی المولود له رزقهن والمولود له هو الاب (۱)۔ وهو الموفق

## د ورونو نه د واده د خرچې اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې باره کې چې د صادق درې بچیان بالغ وو په یو کنال کې رهائشی جائیداد کې درې واړه د خپل پلار سره شریک زراعت کولو پلار د دوه ځامنو نکاح او واده وکړو او د خپل خان نه ئې جدا کړل او یو ځوی د پلار سره وو او د هغوی واده هم وشو. څه موده پس ئې پلار وفات شو، اوس چې کوم ورونه بیل شوې وو په خپله حصه ځمکه کې ئې کور جوړول غوښتل، خو وړوکې ورور ئې وائی چې زما په واده چې کومه خرچه شوې ده د هغې حصه ماته راکړه کنه نو زه به کور جوړیدو ته نه پریږدم، آیا په دې دواړو ورونو باندې د هغه د واده دپاره څه ورکول واجب دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلطان حسین سودهیر صوابۍ... ۲۵ صفر ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا ورور د واده د خرچې په مطالبه کې په غلطۍ باندې دې که هغه د خپلې ګټې نه خرچه کړې وی یا د پلار د مال نه. **وهو الموفق**

---

بقیه از حاشیه گذشته] باندې کړې دې. حیث قال: عبارة البحر عن الخلاصة فلقائل ان یقول علیه لانه مؤنة الجماع ولقائل ان یقول علیها کاجرة الطبیب وکذا ذکر غیره ومقتضاه انه قیاس ذووجهین لم یجزم أحد من المشائخ باحدهما خلاف ما یفهمه کلام الشارح ویظهر لی ترجیح الاول لان نفع القابلة معظمة یعود الی الولد فیکون علی ابیه تامل (شامیة ۲:۷۰۵)

زمونږ شیخ مفتی صاحب دامت برکاتهم فرمائی چې د مؤنت جماع او أجرت (مزدوری) طبیب په ځای د هغه بچی پیدا کیدلو لره ترجیح ده چې په مسئله د ولادت کې اصل دا ولد دې او د ولد نفقه د پلار په ذمه ده لهذا د علامه شامی قول چې (ویظهر لي ترجیح الاول لان نفع القابلة معظمة یعود الي الولد) راجح او معقول دې (ازمرتب)

۱) (هدایة ۲:۴۲۳ فصل ونفقة الاولاد باب النفقة)

## په شریکو ورونو کې د ناواده کړی ورونو د مهر مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید نهه ځامن دی او د هغه د دوه ځامنو دپاره د جائیداد نه (خرچ اخستلو سره) ودونه وکړل او درې ځامنو په خپله ګټه ودونه وکړل او باقی څلور ځامن بغیر د وادهٔ نه پاتې شوې دی، کوم چې اوس تول یوځائې اوسیږی او یوځائې خوراک څښاک کوی، اوس سوال دا دې چې آیا په زید باندې یا په وادهٔ کړې ځامنو باندې لازم دی چې هغوی د ناوادهٔ کړی ځامنو وادهٔ وکړی؟ او آیا ضروری ده چې د هغوی د ښځو دپاره چې کوم مهر مقرر کړې شوې وو د هغوی د ښځو دپاره هم هغه مهرونه مقرر کړې شی او که هر څه ئې ورکړل او هغه ئې منظور کړل نو صحیح به وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا حاجی محمد حقانی مدرسه نظامیه میران شاه.....۱ ستمبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** د پلار دپاره د یو خوی وادهٔ کول هم ضروری نه دی، نکاح او وادهٔ په هر سړی باندې بذات خود کله سنت وی او کله واجب (۱) او د پلار هغوی سره د احسان کولو نه دا نه لازمیږی چې هغوی دنورو ورونو سره لازمی او جبری طریقو سره احسان وکړی هم دغه شان پلار هم یو خوی ته د مهر حصه ورکولو باندې نه شی مجبورولې. (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصکفی : ویکون واجبا عند التوقان فان تیقن الزنا الا به فرض نهایة وهذا ان ملک المهر والنفقة والا فلا اثم بترکه بدائع ویکون سنة مؤکدة فی الاصح فیأثم بترکه الخ۔

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲۸۲:۲ کتاب النکاح)

۲) وفی الهندیة : ولا یجب علی الاب نفقة الذکور الکبار الا ان یکون الولد عاجزا عن الکسب لزمانة او مرض الخ۔

(فتاویٰ عالمگیریة ۵۶۳:۱ الفصل الرابع فی نفقة الاولاد)

## د وادهٔ د خرڅې د وعدې پوره کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د یوې کونډې سره وادهٔ وکړو، چې د هغه بالغ هلکان او جینکۍ وې. د زید هم د مخکې ښځې نه اولاد وو. زید بلې ښځې ته وویل چې ته د خپلې لور نکاح زما د خوی سره په دې شرط باندې وکړه چې دا هلک به ستا د لور د وادهٔ د خرڅې ذمه دار وی، اوس ګواهان هم وائی چې داسې شوې وو، اوس د کونډې خوی د خپل پلندر د خوی نه د وادهٔ خرڅه غواړی. سوال دا دې چې د دې قسم شرطونو په نکاح کې څه اعتبار شته که دا د شروط فاسده نه دی؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: مولانا مفتی بدر منیر دار العلوم مدنیه امانډره سوات ... ۱۲ دسمبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** دا شرط وعده دې او وعده هم د رسم او رواج ده د مهر او نفقې نه ده، او داسې وعده پوره کول نه واجب دی او نه عادت دې (۱)

کما فی الحموی ۳۰۸ واما من عزم علی الوفاء ثم بداله فلم یف فهذا لم یوجد منه صورة نفاق کما فی الاحیاء من حدیث طویل عند ابی داؤد والترمذی الخ، قلت لاسیما اذا کان الامتناع لاجل کونه رسما قبیحا۔ وهو الموفق

---

۱) قال الملا علی قاری: قال النووی: اجمعوا علی ان من وعد انسانا شیئا لیس بمنهی عنه فینبغی ان یفی بوعده وهل ذلک واجب او مستحب؟ فیه خلاف، ذهب الشافعی وابوحنیفة والجمهور الی انه مستحب الخ۔
(مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۸:۶۲۷ آخر باب المزاح)

بسم الله الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

(شپږم جلد)

# كتاب الأيمان

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

## فتاوٰی فریدیه

# كتاب الأيمان

قال رسول الله ﷺ:

من حلف بغیر الله

فقد أشرك.

(رواه الترمذی)

.........

# كتاب الأيمان

## په دروغه قسم کونکی فاسق دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په دروغه باندې قسم کړې دې چې ما دا څمکه نه ده خرڅه کړې حال دا چې هغه خرڅه کړې وی نو د دې دروغژن قسم څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد سعید اټک...... ۲۶ اکتوبر ۱۹۷۸ء

**الجواب:** که دې سړی یقینا په دروغه قسم کړې وی نو دا سړې فاسق دې، ﴿لحدیث الکبائر الاشراك بالله﴾ الحدیث (۱) او د هغې نه یو په دروغه قسم هم دې وهوالموفق.

## په دروغه قسم کونکی فاسق او مردود الشهادة دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دوه کسانو ترمینځه جګړه وشوه او مقدمه شروع وه په دې مقدمه کې دوه کسان په طور د ګواه په عدالت کې پیش شو او د الله پاک په خپل ځان ګواه کولو سره ئې قسمونه وکړل، او د کلی ټولو عوامو ته معلومه ده چې دې دواړو په دروغه قسمونه وخوړل، د دوی شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عثمان غنی سکنه زروبی متعلم حقانیه ... ۲۱ ربیع الثانی ۱٤۰۲ھ

---

(۱) عن عبد الله بن عمرو قال قال رسول الله ﷺ الکبائر الاشراک بالله وعقوق الوالدین وقتل النفس والیمین الغموس رواه البخاری وفی روایة انس وشهادة الزور بدل الیمین الغموس، متفق علیه.

(مشکواة المصابیح ۱۷:۱ باب الکبائر وعلامات النفاق)

**الجواب**: که دې دوه کسانو قصدا د شرعی اباحت بغیر په دروغه قسمونه وخوړل نو دا دواړه فاسق او فاجر او مردود الشهادة دی

قال الله تبارك وتعالیٰ: واجتنبوا قول الزور (الآية) (١) وقال رسول الله ﷺ عدلت شهادة الزور بالاشراك بالله. (رواه ابوداؤد والترمذی وابن ماجة) (٢) وقال علیه السلام: الکبائر الاشراك بالله ... والیمین الغموس. (رواه البخاری) (٣). وهو الموفق

## قصدا په دروغه باندې قسمونه خوړونکو سره د تعلقاتو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کوم انسان قصدا په دروغه قسمونه خوری او په دې باندې بار بار اصرار کونکی هم وی هغه سره تعلقات ساتل څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: علی محمد اعوان میانوالی.... ۲۹ جولائی ۱۹۸٦

**الجواب**: داسې سړې فاسق او فاجر دې (٤) دوی سره د فاسقانو په شان رویه ساتل ضروری دی. (٥) وهو الموفق

---

١) (سورة الحج آيت: ٣٠، پاره: ١٧)

٢) (مشكواة ٣٢٨: ٢ وابوداؤد ٥٠٦: ٢ وابن ماجة ١٧١ والترمذی ٥٦: ٢)

٣) (صحیح البخاری ٩٨٧: ٢ باب الیمین الغموس)

٤) عن عبد الله بن عمرو رضی الله عنهما قال: جاء اعرابی الی النبی ﷺ، فقال: یا رسول الله، ما الکبائر؟ فذکر الحدیث وفیه الیمین الغموس، وفیه قلت: وما الیمین الغموس؟ قال: التی یقتطع بها مال امرئ مسلم هو فیها کاذب، اخرجه مسلم.
(بلوغ المرام ٤٥٩ رقم حدیث ١٢٨٤ کتاب الایمان والنذور)

٥) قال العلامة الشامی: ذکر صاحب الملتقط یکره للمشهور المقتدی به الاختلاط برجل من اهل الباطل والشر الا بقدر الضرورة لانه یعظم امره... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د لفظ عهد استعمال یمین دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ما د تمیرګرې تلو متعلق دا وعده وکړه چې بیا به دې ځای ته نه راځم که راغلم نو یا الله زما روح ستا ده، اوس تیمرګرې ته تلې شم یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** پائنده ګل بجلی ګهر مردان ....... ۱٤ ربیع الثانی ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** که تاسو د عهد لفظ استعمال کړې وی نو تاسو به تیمرګرې ته د تلو نه پس کفاره ورکوئ کنه نو په تاسو باندې تیمرګرې ته تلو کې هیڅ کفاره نشته، **کما فی الهدایة ۴۵۰/۲ وکذا قول وعهد الله ومیثاقه (۱) وبمعناه فی جمیع کتب الفقه (۲) وهوالموفق**

## په عهد او وعده کې فرق او عهد په معنی د قسم مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د رشته دارو نه خفه شو چې زما د الله پاک سره وعده ده چې زه به بیا د هغوی طرف ته نه راځم، اوس د بعض مجبورو د وجې نه هغه رشته دارو کره تلل غواړی، د هغه دپاره څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** پروفیسر محمد منظور اقبال قریشی هاړی هزاره

---

بقیه ازحاشیه گذشته] بین الناس... ولو کان رجل لا یعرف یداریه لیدفع الظلم عن نفسه من غیر اثم فلا بأس به.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۲۷۵ فصل فی البیع کتاب الحظر)

۱ هدایه ۲:۴۵۹ باب ما یکون یمینا ومالا یکون یمینا)

۲ ﴾ وفی الهندیة: ولو قال وعهد الله او قال وذمة الله یکون یمینا... او قال علیه عهد او علیه عهد الله ان لا یفعل کذا... یکون یمینا.

(فتاوی عالمگیریة ۲:۵۳ الباب الثانی فی ما یکون یمینا ومالا یکون)

**الجواب:** واضحه دې وی چې په عربۍ ژبه کې د عهد او وعدې حقیقت بیل بیل دې. الاول هوالمواثقة بين الاثنين وايفاءه فرض، والثانى اخبارعن ايصال الخيرفى المستقبل وايفائه سنة (١) او فقهاء کرامو د عهد لفظ د الفاظ یمین نه شمار کړې دی. كمافى الهداية ٤٦٠ (٢) والهندية ٥٩/٢ (٣)، وردالمحتار ٧٣/٣ (٤)، او د وعدې لفظ به د یمین نه نۀ شی شمار کولې، خو په پښتو او اردو کې د وعدې لفظ د عهد په ځای په کثرت سره استعمالیږی پس د هغه سړی دپاره ضروری ده چې دې طرف ته لاړ شی او کفاره (یمین) ادا کړی قال رسول الله ﷺ: ﴿ وَإِذَا حَلَفْتَ عَلَى يَمِينٍ فَرَأَيْتَ غَيْرَهَا خَيْرًا مِنْهَا فَكَفِّرْعَنْ يَمِينِكَ وَائْتِ الَّذِى هُوَخَيْرٌ﴾ متفق عليه، مشكاة ٢٩٦/٢ (٥) وهوالموفق

---

١) قال العلامة نصير الدين الغورغشتوى: الوعد الاخبار بايصال الخير فى المستقبل... وذهب الجمهور منهم ابو حنيفة والشافعى الى انه يستحب الوفاء بالوعد استحبابا مؤكداً... والعهد هو الموافقة بين الاثنين كعقد المسلمين مع اهل الذمة... والوفاء بالعهد فرض ونقضه غدر الخ.
(حاشية غورغشتوية على المشكوٰة ١٨ : ١ باب الكبائر وعلامات النفاق)

٢) قال العلامة المرغينانى : وكذا قوله وعهد الله وميثاقه لان العهد يمين.
(هداية ٤٥٩ : ٢ باب مايكون يمينا ومالايكون)

٣) وفى الهندية : ولو قال وعهدالله او قال وذمة الله يكون يمين.
(فتاوىٰ عالمگيرية ٥٣ : ٢ الباب الثانى فيما يكون يمينا ومالا فلا)

٤) قال العلامة ابن عابدين : (قوله وعهد الله) لقوله تعالىٰ: واوفوا بعهد الله اذا عاهدتم ولا تنقضوا الايمان الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٥٨ : ٣ بعيد مطلب تتعد الكفارة الخ)

٥) (مشكوٰة المصابيح ٢٩٦ : ٢ باب الايمان والنذور)

## يمين غموس کبيره دي او د ارشاد الطالبين د عبارت تاويل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې اخوند درویزه بابا په خپل کتاب ارشاد الطالبين کې په بحث د رد کفر کې ليکلې دی چې که يو سړې د قبلې طرف ته مخ کولو سره درې کرته د الله پاک په نوم باندې قسم وخوری چې فلانې سړې قسم وخوری چې فلانې سړې داسې دې. که يو سړې واقعې داسې وی کنه نو قسم خوړونکې سړې د دې درې قسمونو د وجې نه کافر کيږی، په دې سلسله کې شرعی مسئله څه ده؟ **بينواتوجروا**

**الجواب:** په فقه کې يمين غموس د کبائرو نه شمار کړې شوې دې نه د موجبات کفر نه (۱) لهذا د اخوند درویزه رحمه الله قول به په تغليظ او تشديد باندې محمول وی او واجب التاويل دې. **وهوالموفق**

## د حل او حرمت متعلق په مسائلو کې د صلح د پاره په دروغه قسم خوړل حرام دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د طلاق په باره کې يو فتوی طلب کړې شوې وه، يو فتوی د دار العلوم کراچئ نه هم راغلې وه کومه چې ستاسو په خدمت کې ارسال کولې شی، په دې سلسله کې ما د يو ګواه نه تپوس وکړو چې ته دا ځنګه وائې چې طلاق ورکونکې د غصې د وجې نه بېهوش وو، آيا تاسو به قسم وخورئ؟ په دې باندې ګواه وويل چې صوفی صاحب تاسو ته معلومه نه ده چې په صلح صفايئ کې دروغ ويل جائز دی او د فساد د دفع کولو د پاره که يو سړې په دروغه قسم هم وکړی نو هغه ګناه نه ده،

---

۱) قال العلامة الحصكفي : غموس تغمسه فى الاثم ثم النار وهى كبيرة مطلقا، قال العلامة ابن عابدين : مطلقا اى اقتطع بها حق مسلم اولا، وهذا رد على قول البحر ينبغى ان تكون كبيرة اذا اقتطع بها مال مسلم او آذاه وصغيرة ان لم يترتب عليها مفسدة فقد نازعه فى النهر بانه مخالف لاطلاق حديث البخارى الكبائر الاشراك بالله وعقوق الوالدين وقتل النفس واليمين الغموس- (الدرالمختار مع ردالمجتار ۲:۵۱ قبيل مطلب فى معنى الاثم-

شیخ سعدی رحمه الله فرمائی: دروغ مصلحت امیز به ازراستي فتنه انگیز، ما هغه ته ویل چي آیا تا چېرته د یو مفتی صاحب نه پوښتنه هم کړې ده چي په دې قسم گواهۍ یا دا قسم معامله کې د دروغ گواهۍ گنجائش هم دې او که ستاسو خپل اجتهاد دې؟ اوس هغه غریب سره هم غم پیدا شوي دې، ستاسو د فتوې انتظار به وی چي په دې کیس کې د صلح او صفایۍ او د فع فساد دپاره په دروغه قسم گنجائش شته یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: گل محمد........ ۹ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** محترم المقام السلام علیکم! د دې نه پس دې دا واضحه وی چي د حل او حرمت متعلق په دروغه قسم کول او دروغ ویل حرام دی (۱) په دې سره دا حرام نه حلالیږی او نه بالعکس، خو مظلوم لره دظلم نه د بچ کولو دپاره توریه یعنی ذوالوجهین کلام کول جائز دی، او د جائز اصلاح په وخت هم جائز ده. (۲) کما فی حدیث صحیح (۳) خو په کومه صلح کې چي حرام حلالولي شی نو هغه صلح بذات خود حرام او واجب الاجتناب وی (۴)

**نوټ:** د کراچۍ والا جواب صحیح دې خو هغوی د سکر (بیهوشۍ) حکم

---

۱) عن جابر بن عبد الله یقول: سمعت رسول الله ﷺ: یقول لا یحلف رجل علی یمین آثما عند منبری هذا ولو علی سواکٍ اخضر الا تبوا مقعده من النار، رواه ابوداؤد وابن ماجة والموطأ ومسند احمد. (المنتقی لابن الجارود النیشافوری ۳۴۴ باب ماجاء فی الایمان)

۲) قال العلامة الحصکفی: الکذب مباح لاحیاء حقه ودفع الظلم عن نفسه والمراد التعریض لان عین الکذب حرام قال وهو الحق... وفی الوهبانیة قال وللصلح جاز الکذب او دفع ظالم- (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۳۰۳ فصل فی البیع الحظر والاباحة)

۳) قال رسول الله ﷺ: لیس الکذاب الذی یصلح بین الناس فینمی خیرا او یقول خیرا- (صحیح البخاری ۱:۳۷۱ باب لیس الکاذب الذی یصلح بین الناس)

۴) قال رسول الله ﷺ: الصلح جائز بین المسلمین الا صلحاً حرم حلالاً او احل حراماً. (ابن ماجة ۲:۱۷۰ باب الصلح قبیل ابواب الشهادات)

لیکلې دې د مدهوش تفصیل ئې نه دې لیکلې زمونږ په جواب کې د مدهوش تفصیل موجود دې. وهوالموفق

## چا ته د ووټ ورکولو قسم خوړل بیا خپله الیکشن کې حصه واخلی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید قرآن کریم له مخې ته کیښودلو او د الله پاک قسم کولو سره ئې حلفا وویل چې مونږ به ووټ چوهدری کونسلر ته ورکوو او د پخولو دپاره ئې درې کرته قسم وکړو، د دې مضبوط قول و قرار او قسم باوجود په دهوکې سره خپله په الیکشن کې اودریدلو سره چیئرمین منتخب شو، آیا په دې صورت کې دا زید د الله پاک د کلام د توهین مرتکب نه شو؟ آیا دا سړې فاسق کیدو سره د عوامو د نمائندګئ اهل دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: چوهدری دوست محمد کونسلر راول ډیم اسلام آباد... ۱۹ اګست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت بغیر د څه مصلحت او بغیر د اذن شرعی (۱) دا اقدام منافقانه اقدام دې. لحدیث البخاری (۲) وهوالموفق

## په قسم کې نیابت نه جاری کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د ځمکې په باره کې قسم وخوړلو او دا الفاظ ئې وویل چې دا زما په ما او زما په اولاد باندې خوړل حرام دی، د دې سړی دپاره څه حکم دې چې هغه د دې ځمکې نه

---

(۱) عن عبد الرحمن بن سمرة رضی الله عنه قال: قال رسول الله ﷺ: واذا حلفت علی یمین فرأیت غیرها خیراً منها فکفر عن یمینک وآت الذی هو خیر، متفق علیه وفی لفظ البخاری: فأت الذی هو خیر وکفر عن یمینک، رواه البخاری ۶۶۲۲ ومسلم الایمان ۱۹ وابوداؤد ۳۲۷۷.

(۲) عن ابی هریرة قال: قال رسول الله ﷺ: آیة المنافق ثلاث اذا حدث کذب واذا وعد اخلف واذا اؤتمن خان، متفق علیه.
(مشکواة المصابیح ۱:۱۸ باب الکبائر وعلامات النفاق)

خوراک کولې شی یانه؟ او حال دا چې د هغه اولاد بالغ دې نو آیا دا اولاد د خپل پلار د قسم په قید کې شامل دی یا نه؟ یعنی دا اولاد دا ځمکه کرولو سره خوړلې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالرزاق.....۶ مئی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې په قسم کې نیابت نه جاری کیږی، **کما صرحوا فی باب الوکالة بالخصومة**(۱) پس: پلار قسم به د پلار سره مخصوص وی دا حرمت به اولاد ته تجاوز نه کوی پس که پلار دا ځمکه وکرله نو هغه به حانث وی او دقسم کفاره به اداکوی او که اولاد ئې کرونده وکړه نو هیڅ حنث او کفاره به پرې نه لازمیږی. **(لانه حرمها علیهم لانه اقسم علی فعلهم، فافهم)** وهوالموفق

## په قرآن کریم (مصحف) باندې قسم خوړل معتبر دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی بل سړی ته وویل چې په قرآن کریم باندې قسم وکړه چې ته به د فلانی فلانی سره خبرې نه کوې او حال دا چې د دې قسم ورکونکی او فلانی ترمینځه دشمنی وه او د حالف او فلانی ترمینځه هیڅ ناچاقی نه وه، پس هغه په قرآن کریم باندې قسم وکړو خو د هغه په زړه کې وو چې د فلانی سره به خبرې کوی او فی الحال به قسم کوی چې د قسم کونکی د غضب او غصې نه بچ شی.

هغه سړې (مستفتی) ماته راغلو نو ما هغه ته وویل چې: **لا کفارة علیك لوجهین الاول ان الیمین بالقرآن لایکون یمینا فیکون داخلا فی الغموس، فافتی بعض العلماء بالکفارة فنسئل عنکم ان تشرفوا بما هوالمختار والحق عندکم؟ بینواتوجروا**

**المستفتی:** ن.غ.ف.... مدرس منهاج العلوم نریاب.....۸ جون ۱۹۷۵ء

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: وله تحلیف الموکل لا الوکیل لان النیابة لا تجری فی الیمین. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴۶۱:۴ باب الوکالة بالخصومة والقبض)

**الجواب:** لیعلم ان الحلف بالقرآن معتبر کما فی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳ : ۷۰ : قال الکمال لا یخفی ان الحلف بالقرآن الآن متعارف فیکون یمینا(۱) والیمین المسئول عنها یمین منعقدة لانه علی امر مستقبل(۲) نعم هو هزل لاکنه لا یؤثر لقوله علیه السلام ثلاث جدهن جد وهزلهن جد الطلاق والعتاق والیمین(۳)۔ وهوالموفق

## په قرآن کریم باندې قسم کول د متاخرینو په نزد معتبر دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په قرآن کریم باندې قسم کول څنګه دی؟ بعض خلق په دې باندې انکار کوی ددې لپاره شرعی حکم څه دې چې حق واضح او فتنه ختمه شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: قاضی حبیب السلام پیر سباق نوښهر ۱۲ اکتوبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** د متاخرینو په نزد په قرآن کریم باندې قسم کیدې شی کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۳ : ۷۰ لا یقسم بغیر الله تعالیٰ کالنبی والقرآن والکعبة قال الکمال ولا یخفی ان الحلف بالقرآن الآن متعارف

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۵۶ مطلب فی القرآن کتاب الایمان)

۲) قال العلامة القدوری: والیمین المنقدة هی الحلف علی الامر المستقبل ان یفعله اولا یفعله فاذا حنث فی ذلک لزمته الکفارة۔ (اللباب فی شرح الکتاب ۳:۱۰۴ کتاب الایمان)

۳) قال عبد الرزاق المهدی: قال الزیلعی فی نصب الرایة ۳:۲۹۳ کذا ذکره المصنف النکاح والطلاق والیمین، وذکره الغزالی وصاحب الخلاصة: فجعل العتاق عوض الیمین وکلاهما غریب۔ وانما الحدیث: ثلاث جدهن جد وهزلهن جد: النکاح والطلاق والرجعة، هکذا اخرجه اصحاب السنن، ولم یخرجه النسائی اصلاً، اخرجه ابوداؤد ۲۱۹۴، والترمذی ۱۱۸۴، وابن ماجة ۲۰۳۹ والدار قطنی ۳:۲۵۶، ۲۵، والحاکم ۲:۱۹۸۔ (تثبیت اولی الالباب بتخریج احادیث اللباب ۳:۱۰۵ کتاب الایمان)

فیکون یمیناً، انتهی وفی ردالمحتار ونقل فی الهندیة عن المضمرات وقد قیل هذا فی زمانهم اما فی زماننا فیمین وبه ناخذ ونأمر ونعتقد(۱)۔ وهوالموفق

## په قرآن کریم باندې لاس کېښودل قسم نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی په قرآن کریم باندې لاس کېښودلو سره خبره کړې ده، او په ژبې سره قسم وغیره هیڅ نه دی، آیا دا قسم دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: ايم ارشد محمود تحصيل پنډ داد خان

**الجواب:** په قرآن کریم باندې صرف لاس کېښودل قسم نه دې.(۲) وهوالموفق

## په چا باندې د يوې خبرې منلو د پاره د چا په کور کې د قرآن کریم کېښودلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ما د زید نه قسم اخستلې وو چې زه به خپله لور په فلانی ښهر کې نه ورکوم، اوس د دې ښهر يو سړي قرآن کریم راوچت کړو او د زید کور ته ئې راوړلو او ويې ويل چې د

---

۱) (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۵۶ مطلب فی القرآن)

۲) قال العلامة ابن عابدین: (بعد ذکر عبارة العینی) وفیه نظر ظاهر اذالمصحف لیس صفة لله تعالیٰ حتیٰ یعتبر فیه العرف والالکان الحلف بالنبی والکعبة یمینا لانه متعارف... نعم لو قال اقسم بما فی هذا المصحف من کلام الله تعالیٰ ینبغی ان یکون یمیناً.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۵۶ قبیل مطلب تتعدد الکفارة لتعدد الیمین)

وقال الشاه اشرف علی التهانوی: که چېرې قرآن مجید ئې په لاس کې واخستلو یا ئې برې لاس کېښودو څه خبره ئې اوکړه خو قسم ئې اونه کړو نو قسم اونه شو.

(بهشتی زیور ۲۴۷ تیسرا حصه قسم کهانې کا بیان)

خپلې لور رشته مونږ ته راکړه، اوس د دې شرعي حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: مولوی احمد گل بساله مانسهره... ۷ فروری ۱۹۷٦ء

**الجواب:** د زید مرضی ده که غواړی نو په دې بنهر کې دې رشته ورکړی او که غواړی نه دې ورکوی، خو د ورکولو په صورت کې د قسم کفاره ورکول ضروری دی، والمسئلة من الواضحات فلاحاجة الى نقل العبارت.(۱)

**نوټ:** د زید په کور کې د قرآن کریم وړولو یا کیښودلو سره په رشته نه ورکولو سره هیڅ گناه او خطره نشته.(۲) وهوالموفق

**قرآن کریم گواه جوړولو سره که د یو کار نه انکاروکړی نو دا قسم نه دې؟**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې کلام پاک په لاس کې نیولو سره دا ووائی چې دا کلام پاک گواه دې چې زه به بیا فلانې کار نه کوم، یعنی د دې گناه د کار نه د کلام پاک په ذریعه توبه وکړی او بیا څه موده پس هغه د گناه کار د هغه نه بیا وشی نو د دې شرعي حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: ډاکټر ع، ح، د. سیناهال پشاور یونیورسټی.....۲٦ ستمبر ۱۹۸٤ء

**الجواب:** دا عوامی قسم دې د دې نه د خلاف کولو په صورت کې کفاره یا

---

(۱) قال العلامة ابن الساعاتی: ویمین منعقدة ان یحلف علی فعل او ترک فی المستقبل وتجب بالحنث الکفارة ان شاء اعتق رقبة او کسی عشرة مساکین کلا منهم ثوبا شاملا لبدنه فما زاد او ما تجزئ فیه الصلاة او اطعمهم کالفطرة الخ. (مجمع البحرین وملتقی النیرین ۷۱۸ کتاب الایمان)

(۲) وقال الشاه اشرف علی التهانوی: که چېرې قرآن مجید ئې په لاس کې واخستلو یا ئې پرې لاس کیښودو څه خبره ئې اوکړه خو قسم ئې اونه کړو نو قسم اونه شو. (بهشتی زیور ۲٤۷ تیسرا حصه قسم کهانې کا بیان)

کفر نه لازمیږي، خو توبه او استغفار لازم دي. (۱) وهوالموفق

## قرآن کریم لره په سر باندې کېښودلو سره د ځمکې په حدود باندې ګرځېدل قسم نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې پنځویشت کاله وشو چې دوه ډلو خپله ځمکه تقسیم کړې وه، د دومره مودې تیریدلو نه پس یوې ډلې د چا په وینا باندې دوباره د تقسیم مطالبه وکړه چې مونږ ته کمه ځمکه راکړې شوې ده، فریق ثانی کوم چې ضعیف العمر او بوډا دې وویل چې تقسیم صحیح شوې دې کنه نو پټواری راوغواړه او تقسیم وکړه، خو فریق اول د پټواری د خرچ د وجې نه د منصفی تقسیم وویل، خو فریق ثانی انکار وکړو چې منصف رواداری کوی، په دې وخت کې یو دریم سړی چې انتهائی مفسد او چالاک انسان دې فساد او جنګ جګړې جوړول د هغه محبوب کار دې هغه وویل چې تاسو قرآن کریم په سر کیږدئ او تاویدلو سره فیصله وکړئ، خو د دې نه دواړو ډلو انکار وکړو، بیا هغه مفسد وویل چې زه دا کار کولې شم، او قرآن کریم په سر باندې کیښودلو او ګرځیدلو سره ئې ډیره ځمکه د فریق اول په نوم کړه، په دې وخت کې چې د فریق ثانی ځوی د بهر ملازمت (مزدوری) نه کور ته راغلو نو هغه دې ظلم ته کتلو سره دا نوی حدود پامال کړل او سابقه حدود ئې حال کړل په دې باندې هغه مفسد سړی ته علم وشو نو هغه د یو څو دروغژنو ملایانو په یو ځای کولو باندې دا فتوی ورکړه چې نوې حدود ماتونکی دې شپیتۀ مسکینانو ته ډوډې ورکړې هغه د قران کریم توهین کړې دې، او عام خلقو هغه مفسد ته وویل چې د قرآن کریم توهین تا کړې دې چې قرآن کریم دې په سر او ترخ کې نیولې دې او په پردو زمکو باندې ګرځیدلې ئې، اوس سوال دا دې چې د دې کسانو څه حکم دې او په هغوی باندې څه کفاره ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اعظم ساکن چمن کوټ آزاد کشمیر ... ۸ جولائی ۱۹۷۳ء

---

۱) قال العلامة الطحطاوی: قوله اشهد الله لا افعل یستغفر الله ولا کفارة وکذا اشهد ک واشهد ملائکتک لعدم العرف، قوله وکذا اشهد ک الخ ای فانه یستغفر الله تعالیٰ فیه ولا کفارة.(الطحطاوی علی الدرالمختار ۲:۳۳۲ کتاب الایمان)

**الجواب:** قرآن کریم په سر باندې کېښودلو سره کړېدل نه قسم دې او نه شهادت خو یو خبر مؤکد دې چې د هغې منل په فریق ثانی باندې ضروری نه دی. پس په فریق ثانی باندې ملامته ویل او په هغوی باندې کفاره واجب کول بې اصل او بې بنیاده خبرې دی.

## که د فلانئ سره مې نکاح وکړه نود قرآن کریم سره به مې نکاح کړې وي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې ووائی چې که ما د فلانئ جینئ سره نکاح وکړه نو نعوذ بالله ما د قرآن کریم سره نکاح وکړه یو بل سړې بیا وایي چې که ما د رفیعه سره نکاح وکړه نو معاذ الله د ﴿الحمدلله﴾ سره به مې نکاح کړې وي، اوس شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: جاوید ابراهیم پراچه تل... ٤ ربیع الثانی... ۱٤۰۱ھ

**الجواب:** دا دواړه کسان دې توبه او استغفار وکړی او د نکاح او وادهٔ نه پس دې یوه یوه د قسم کفاره ورکړی. لما فی الهندیة ۲/۶۰ ولو قال ان فعل کذا فهو یهودی .... او نحو ذلك مما یکون اعتقاده کفرا فهو یمین استحسانا کذا فی البدائع(۱). وهوالموفق

## د قسم په ارادې سره کلمه طیبه لوستل یمین دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د قسم خوړلو په وخت په قرآن کریم باندې قسم ونکړو بلکې کلمه طیبه لوستلو سره ئې وویل چې ﴿لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ﴾ زه به دوباره دا کار نه کوم، نو آیا په قرآن کریم باندې د لاس کېښودلو نه بغیر کلمه طیبه لوستلو سره قسم کیږی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی سعید الرحمٰن سعید. ملاکنډ ایجنسی... ۷ دسمبر ۱۹۷۵ء

---

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۵٤ الباب الثانی فیما یکون یمینا وما لا یکون یمینا الفصل الاول)

**الجواب:** کوم سړي چې د قسم په اراده سره کلمه ولولی نو دا قسم دی. کما فی الهندیة ۲/۶۱، ولو قال لا اله الا الله لافعلن کذا فلیس بیمین الا ان ینوی یمینا وکذلك سبحن الله والله اکبر کذا فی السراج الوهاج.(۱) وهوالموفق

## د رسول الله ﷺ امتی به نه یم ویل قسم دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی داسې قسم وکړی چې د رسول الله ﷺ امتی به نه یم او د هغې نه پس د هغه هغه کار وشی چې د هغې نوعیت د ګناه دې، د دې قسم کفارې څه مسئله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد انور شاه درګئ ملاکنډ ایجنسی

**الجواب:** چونکې د پیغمبر ﷺ د امتی کیدو نه براءت د ایمان نه انکار دې، لهذا دا الفاظ د قسم دی. او مخالفت (د حانث کیدو) په صورت کې د قسم کفاره ورکول ضروری دی. (ماخوذاز شامی ۳/۵۲) (۲) وهوالموفق

## "که فلانې کار مې ونکړو نو د محمد ﷺ امتی به نه یم" قسم دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړي وویل که فلانئ جامې مې واغوستلې نو زه به د محمد ﷺ امتی نه یم. بیا هغه سړی هغه جامې واغوندي نو آیا دا قسم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرحیم متعلم حقانیة...۲۱ مارچ ۱۹۸۵ء

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲:۵۵ الباب الثانی فیما یکون یمیناً ومالا یکون)

۲) قال العلامة الحصکفی: المصحف والقرآن وکلام الله یمین زاد احمد والنبی ایضا ولو تبرأ من احدها فیمین اجماعاً... وبریٔ من الاسلام او القبلة او صوم رمضان اوالصلاة او من المؤمنین- قال ابن عابدین: (قوله اومن المؤمنین) لان البراء ة منهم تکون لانکار الایمان خانیة- (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۵۶،۵۷ مطلب تتعد الکفارة لتعدد الیمین)

**الجواب:** دا سړي دې د قسم کفاره ورکړي (۱) او دا سړي مسلمان دي کافر شوي نه دې، لان تعليق الكفر بالشرط يمين وسيجئ انه اعتقد الكفر به يكفر الخ كما في شرح التنوير(۲) يعتقدون اليمين دون شئ اخر. وهوالموفق

## ''که ما دا کار وکړو نو زه به کافر يم'' ددې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې که چا قسم وکړو چې که ما دا کار وکړو نو کافر به يم، بيا هغه سړي هغه کار وکړي نو د هغه حکم به څه وی؟ بينواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالحميد خواجه خيل ډاگئ طوطائي بونير ..... ۱۴ مارچ ۱۹۸۸ء

**الجواب:** که دا سړی بې علمه وی او دا عقيده ساتی چې په داسې قسم سره حانث کافر کيږي نو دا سړي به د مخالفت په صورت کې کافر وی، کنه نو کافر به نه وی (عالمگيری) (۳) وهوالموفق

---

۱) وفی الهندية: ولو قال انا بری من النبی والقرآن فانه يكون يمينا كذا فی الكافی. (فتاوی عالمگيرية ۲:۵۳ الباب الثانی فيما يكون يميناً ومالا يكون)

۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۵۷ قبيل مطلب تتعدد الكفارة لتعدد اليمين)

۳) وفی الهندية: ولو قال ان فعل كذا فهو يهودی او نصرانی او مجوسی او بری من الاسلام او كافر... او نحوذلک مما يكون اعتقاده كفرا فهو يمين استحساناً حتی لو فعل ذلک الفعل يلزمه الكفارة وهل يصير كافرا اختلف المشائخ فيه قال شمس الائمة السرخسی والمختار للفتوی انه ان كان عنده انه يكفر متی اتی بهذا الشرط ومع هذا اتی يصير كافرالرضاه بالكفر وكفارته ان يقول لا اله الا الله محمد رسول الله وان كان عنده انه اذا اتی بهذا الشرط لا يصير كافراً لا يكفر.
(فتاوی عالمگيرية ۲:۵۴ الباب الثانی فيما يكون يميناً ومالايكون)

## كه مې بيا دا كار وكړو نو كافر به يم

**سوال:** څه فرمائى علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې يوې زنانه جامې وينځلې هغه ډيره سترې شوه په دې وجه ئې د خولې نه دا الفاظ اوختل كه ما بيا جامې ووينځلې نو زه به كافره يم، اوس د دې الفاظو څه حكم دې؟

بينواتوجروا

المستفتي: شمس الرحمٰن (متعلم حقانية) پشاور..... ۵ محرم ۱۴۰۳ هجرى

**الجواب:** دا د قسم الفاظ دى، لما في الهندية ۲: ۶۵ لوقال ان فعل كذا فهو يهودى او مجوسى او برئ من الاسلام او كافر فهو يمين استحساناً كذا فى البدائع(۱)۔ وهوالموفق

## كه ما په فلانى مسجد كې مونځ وركړو نو زه به كافر يم قسم دې

**سوال:** څه فرمائى علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې يو سړى وويل كه ما په فلانى مسجد كې مونځ وركړو نو زه به كافر يم، بيا هغه هلته مونځ وركړو اوس څه حكم دې؟ بينواتوجروا

المستفتي: عبدالحميد خطيب كرنالوى جيل....... يكم ذيقعده ۱۳۹۶ هـ

**الجواب:** دا سړې به د مونځ وركولو نه پس حانث وى

كما فى الهنديه ۲: ۶۰: ولو قال ان فعل كذا فهو يهودى اونصرانى او مجوسى او برئ من الاسلام او كافر او يعبد من دون الله او يعبد الصليب اونحو ذلك مما يكون اعتقاده كفرا فهو يمين استحساناً كذا فى البدائع حتى لو فعل ذلك الفعل يلزمه الكفارة وهل يصير كافرا اختلف المشائخ فيه قال شمس الائمة السرخسى

---

۱) (فتاوى عالمگيرية ۲:۵۴ الباب الثانى فى مايكون يميناً ومالا يكون يمينا۔ ومثله فى البدائع الصنائع ۳:۱۶ كتاب الايمان)

رحمه الله والمختار للفتوى انه ان كان عنده انه يكفر متى اتى بهذا الشرط ومع هذا اتى يصير كافراً لرضاه بالكفر وكفارته ان يقول لا اله الا الله محمد رسول الله وان كان عنده انه اذا اتى بهذا الشرط لا يصير كافراً لا يكفر(١)۔ قلت: والظاهر من حال العلم العوام هو الثاني، وقلت ايضا الحديث محمول على التغليظ لان مدار الكفر على الانكار وما يقوم مقامه فافهم(٢)۔ وهو الموفق

## که زه کور ته راغلم نو مسلمان به نه يم قسم دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ما په کور کې په څه خبره باندې خفه کيدو سره وويل چې که زه کور ته بيا راغلم نو زه به مسلمان نه يم کافر به يم وغيره، اوس د شريعت په رڼا کې زما دپاره څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: ۱۵ جنوری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا قسم دې، لهذا د حانث کيدو په صورت کې به کفاره ورکوی. **ما في الهندية** ۲/۶۰، ولو قال ان فعل كذا فهو يهودي او نصراني او مجوسي او برء

---

(١) (فتاوى عالمگيرية ۲:۵۴ الباب الثاني فيما يكون يميناً ومالا يكون)

(٢) عن ثابت بن الضحاک قال قال رسول الله ﷺ من حلف بملة غير الاسلام كاذبا فهو كما قال هذا حديث حسن صحيح وقد اختلف اهل العلم فى هذا اذا حلف الرجل بملة سوى الاسلام قال هو يهودى او نصرانى ان فعل كذا وكذا ففعل ذلک الشيئ فقال بعضهم قد اتى عظيماً ولا كفارة عليه وهو قول اهل المدينة وبه يقول مالک بن انس والى هذا القول ذهب ابو عبيد وقال بعض اهل العلم من اصحاب النبى ﷺ والتابعين وغيرهم عليه فى ذلک الكفارة وهو قول سفيان واحمد واسحاق۔
(سنن الترمذى ۱:۱۸۶ ابواب النذور والايمان)

من الاسلام او کافر فهو یمین استحسانا (۱) وهوالموفق

## د شرعی او آسمانی کتابونو نه د بری کیدو قسم خوړل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی غلا کوله څو خله ونیول شو، بالآخر څو کسانو هغه د یوې جرګې مخې ته پیش کړو، هغه د بیا دپاره د د غلا نه توبه وکړه او د جرګې په مخکې ئې وویل چې که ما بیا دا کار وکړو نو زه به د شرعی او آسمانی کتابونو نه بری یم، د دې نه پس دوباره د دې جرم مرتکب شو، اوس د دې قسم کولو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: نور زمان بفه هزاره.... ۳ جولائی ۱۹۷۸ء

**الجواب:** دا د قسم الفاظ دی او حانث شوې دې د قسم کفاره دې ورکړی، وفی الهندیة ۲/۵۷، ولوقال ان فعلت کذا فانا برء من الکتب الاربعة فهو یمین واحدة (۲) وهوالموفق

## که فلانی سره مې خبرې وکړې نو د مور سره به مې زنا کړې وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی وویل چې که د فلانی سره خبرې وکړم نو لکه مور سره چې زنا وکړم، اوس بعض خلق دا سړې فلانی سره په خبرو باندې مجبوروی، نو د خبرو اترو په صورت کې په زید باندې څه کفاره لازم ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید ولی اعظم تورورسک بونیر.... ۱۹ ستمبر ۱۹۷۷ء

**الجواب:** دا د قسم الفاظ نه دی پس دا سړې د دې فلانی سره خبرې کولې شی، هم دغه شان دا الفاظ د ظهار سبب هم نه دی، (لعدم التشبیه) او نه د

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲:۵۴ الباب الثانی فیما یکون یمینا ومالا یکون)
۲) (فتاوی عالمگیریة ۲:۵۷ الباب الثانی فیما یکون یمینا ومالا یکون یمینا)

ایلاء سبب دی. ( لعدم ارادة زوجته فافهم_ وفی الهندیة: لو قال ان فعلت کذا فانا زان او سارق او شارب خمر او کل ربوا فلیس بحالف ۲/۵۵ (۱) وهو الموفق

## که فلانې کار مې وکړو نو ټول حلال څیزونه به په ما باندې حرام وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې ووائی چې که ما فلانې کار وکړو نو ټول حلال څیزونه به په ما باندې حرام وی. اوس د دې قسم نه د وتلو څه طریقه ده؟ اوس دا سړې څه کفاره ورکولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرشید ارشد لاهور.... ۲۹ مئی ۱۹۷۴ء

**الجواب:** که دا سړې د مرګ نه مخکې هغه جائز کار وکړی نو حانث به نه وی او که په ټول ژوند کې ئې هغه کار ونکړې شو نو د ژوند په آخری وخت کې به حانث شی، او وارثان به د قسم کفاره ادا کوی، کنه نو ګناهګار به وی. (۲) هم دغه شان په عرف کې دا لفظ ماکول او مشروب ته یقینا شامل دې خو د جماع متعلق د دې نیت یا عرف معتبر دې که هغه نیت د ایلاء یا طلاق کړې وی نو هغه وخت به پرې د دې حکم مرتب کیږی، هذا اذا کان معروفین بالارادة، والتفصیل فی رد المحتار ۳/۸۹ (۳) وهو الموفق

---

۱ ) (فتاوی عالمگیریة ۵۵ : ۲ الباب الثانی فیما یکون یمینا ومالا یکون یمیناً)

۲ ) قال العلامة الحصکفی : اما المطلقة فحنثه فی آخر حیاته فیوصی بالکفارة بموت الحالف ویکفر عن یمینه بهلاک المحلوف علیه.
(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۶۸ : ۳ قبیل مطلب استعملوا لفظ ینبغی بمعنی یجب)

۳ ) قال العلامة ابن عابدین :قال فی الهدایة ولو قال کل حل علی حرام فهو علی الطعام والشراب الا ان ینوی غیر ذلک...ولا یتناول المرأة [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## "که فلانې کار مې وکړو نو ټول حلال دې په ما حرام وی" دا قسم دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په جرګه کې ولیکل چې زه که فلانې کار وکړم نو په ما باندې به د الله پاک ټول حلال څیزونه حرام وی، بیا که هغه سړې قصدا د هغه کار ارتکاب وکړی، او وائی چې فکر نشته چې هر څه کیږی هغه کار به کوم، اوس د داسې سرکش او باغی ملزم دپاره په شریعت کې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی یعقوب خان خطیب وهاولی مظفر آباد کشمیر ..... ۱۹ مئی ۱۹۶۹ء

**الجواب:** په عرف کې دا لفظ ماکول او مشروب ته یقینا شامل دې، لهذا په هغه سړی باندې د یمین کفاره لازم ده، ﴿ لانه اکل وشرب ﴾ خو د جماع متعلق د دې نیت یا عرف معتبر دې، که هغه نیت د ایلاء یا طلاق کړې وی نو د ایلاء او طلاق حکم به پرې هم مرتب کیږی.

وهکذا اذا کان معروفین بالارادة، والتفصیل فی ردالمحتار ۳: ۸۹ وفیه والحاصل ان المعتبر انصراف هذه الالفاظ عربیة او فارسیة الی معنی بلا نیة التعارف فیه فان لم یتعارف سئل عن نیته الخ(۱)۔ وهوالموفق

## د غوا د پیو، شلمبو او غوړو د خوراک نه نې قسم وکړو بیا نې د هغې د پیو نه پخ شوې چائې وڅښله؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی قسم

---

بقیه ازحاشیه گذشته] الا بالنیة لاسقاط اعتبار العموم واذا نواها کان ایلاء ... قلت ومقتضی قوله فانه یستعمل فیما یتناول عادة ان العرف کان اولا فی استعماله فی الطعام اوالشرب ثم تغیر ذلک الی عرف آخر وغلب استعماله فی الطلاق... والفتویٰ علی قول المتاخرین بانصرافه الی الطلاق البائن عاما او خاصا کما ذکرناه هناک۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۱ مطلب کل حل علیه حرام)

(۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۱ مطلب کل حل علیه حرام)

وکړو چې زه به د غوا یې، شلمبې او غوړې نه خورم، آیا دا سړې د دې غوا د شیدو نه تیار کړې شوې چای استعمالولې شي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولوی عبداللطیف کهوکهر ایبټ آباد......۱۰ ربیع الثانی ۱۳۹٦ھ

**الجواب:** د دې غوا د پیو نه تیاره شوې چائې څنبل په رواج او عرف کې د هغې نه خوراک کول دي او خوړل به شمیرلې شي لهذا د دې نه دې ځان وساتي (۱) **وهوالموفق**

## ښځې لره د لسو لښتو وهلو قسم او د ایوب علیه السلام د حیلې کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د بیمارئ په حالت کې په غصه کې ښځې ته ووایې چې که زه صحت مند شوم نو قسم دې چې تا به لس لښتې وهم، آیا دا سړې د سیدنا ایوب علیه السلام حیله کولې شي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولوی عبدالعلی مهمند ایجنسی

**الجواب:** دا سړې (په دې حیلې سره) د حانث کیدو نه بچ شو، بری شو او که په دې وهلو کې په حقه وی نود آخرت د انتقام نه به هم بچ شي. (۲) **وهوالموفق**

---

۱) وفی الهندیة : ولوحلف علی اکل شیئ لا یتأتی فیه المضغ بنفسه فأکل مع غیره فان کان مما یؤکل کذلک حنث فی یمینه نحو ان حلف ان لا یأکل اللبن فأکله بخبز او تمر او حلف لا یأکل هذا العسل فأکل کذلک یحنث فی یمینه.

(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۸۱ الباب الخامس فی الیمین علی الاکل والشرب)

۲) قال العلامة الحموی : قال الله تعالیٰ : (وخذ بیدک ضغثا فاضرب به ولا تحنث) هذا تعلیم المخلص لایوب علیه السلام عن یمینه التی حلف لیضربن امرأته مأة عود، وقد تعلق محمد بهذه الآیة فی مسائل الحیل،... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

# د امر مباح د پاره د قسم ماتولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلی کې دوه مسجدونه دی چې په هغې کې جتې او نیمچه ملایان امامان دی، د صدقه فطر په سلسله کې د دواړو امامانو د مقتدیانو سره اختلاف پیدا شو، دواړو متفقه طور ښکاره د پنځو عاقل، بالغ مسلمانانو په مخکې په قرآن کریم باندې قسم خوړلو سره وویل چې تر څو پورې دا خلق به مونږ ته درې حصې صدقه فطر نه راکوی مونږ به امامت نه کوو، یوه میاشت پس په قرآن کریم باندې قسم او خپل مینځ کې کړې لوظ ئې شاته ګزارولو سره امامت شروع کړو او د کلی والاخبره ئې ومنله، د دوی متعلق د لاندې لیکلې شوې سوالانو څه حکم دې؟

۱: د مسجد د امام د قرآن کریم قسم ماتول او لوظ ماتول د دنیاوی مفاد دپاره حانث کیدلو شرعا څه حکم دې؟

۲: دا امام به په حانث کیدو باندې څه کفاره ورکوی؟

۳: په قرآن کریم باندې دا قسم کوم قسم دې؟

۴: که امام دا کفاره ادا نه کړی او ضد کوی نو آیا د هغه اقتداء جائز ده؟

۵: په هغه پسې د کړې شوې مونځونو څه حکم دې؟

۶: د هغه دپاره څه تعزیر دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولوی محمد رفیق هزاره...... ۱۷ نومبر ۱۹۷۴ء**

---

بقیه ازحاشیه گذشته ] والخصاف لم یتعلق بها فی حیلة، قیل لان حکمها منسوخ، وعامة المشائخ علی ان لیس بمنسوخ وتکلموا فیما بینهم فی شرط البر فیه، قال بعضهم: ان یأخذ الحالف مأة عود ویسوی رؤوس الاعواد قبل الضرب۔
(حموی علی الاشباه والنظائر ۳:۲۹۴ الفن الخامس الحیل)

**الجواب:** واضحه دې وی چې د صدقه فطر په څه حصه باندې امامت کول (یعنی په طریق أجرت (مزدوری) یا عوض) امر مباح دې نه مامور به دې او نه منهی عنه دې، لهذا د دې قسم په ماتولو کې به ګناه نه وی، خو کفاره ورکول ضروری دی.

كما في الهندية: ۲: ۵۸ والمنعقدة في وجوب الحفظ اربعة انواع، نوع منها يجب اتمام البر فيها وهو ان يعقد على فعل طاعة امر به، او امتناع عن معصية وذلك فرض عليه قبل اليمين وباليمين يزداد وكادة (الى ان قال) ونوع يتخير فيه بين البر والحنث، والحنث خير من البر فيندب فيه الى الحنث، ونوع يستوى فيه البر والحنث في الاباحة فيتخير بينهما وحفظ اليمين اولىٰ كذا في المبسوط لشمس الائمة(۱).

وهو الموفق

## د ورور سره د تعلقات نه ساتلو قسم ماتول ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی قسم وکړې چې د نن نه پس به د خپل ورور سره تعلقات نه ساتم، اوس د هغه نه مور هم خفه ده، اوس که په دې صورت کې دا سړې د خپل ورور سره تعلقات بحال کړی او قسم مات کړی نو د هغه څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: انور علی خان داماں چارسده... ۲۵ مارچ ۱۹۸۸ء

**الجواب:** د هغه سړی دپاره د دې قسم ماتول ضروری دی او په حانث کیدو باندې دې کفاره ورکړی، في الدر المختار ۳/۶۲ ومن حلف على معصية كعدم الكلام مع ابويه اوقتل فلان اليوم وجب الحنث والتكفير.(۲) وهو الموفق

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲:۵۲ کتاب الایمان الا لباب الاول)

۲) الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳:۶۸ قبيل مطلب استعملوا لفظ ينبغى بمعنى يجب)

## د جماع نه د قسم کولو په صورت کښې به په لاس سره منی ویستلو باندې نه حانث کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې د یوې (پردی) جینۍ متعلق ما دا وویل چې که ما دې سره جماع وکړه نو نعوذ بالله ما د قرآن کریم سره جماع وکړه، یو کرت هم هغه جینۍ په کړکۍ کښې ولاړه وه ما هغې ته د راتلو وویل خو هغې انکار وکړو نو ما هلته د شهوت نه مغلوب کیدو سره مشت زنی وکړه هغه وخت زما په زړه کښې دا خبره وه چې ته خو نعوذ بالله د قرآن سره جماع کوې هم په دې وخت کښې رانه منی خارج شوه او ورسره په ما قیامت راغلو، اوس ستاسو نه تپوس کوم چې زما توبه به قبوله شی او که نه؟ او زما د پورته ویلې کلماتو څه حکم دې؟ زه کافر شوې خو نه یم؟ که څه وظیفه وی راته ولیکئ؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: و، ر، ش، تل هنگو... ۲۶ شوال ۱۴۰۱ھ**

**الجواب:** چونکې په لاس سره منی ویستلو سره د حرمت نه زنا نه ده، **لعدم صدق تعریف الزنا والجماع علیه** (۱) لهذا تاسو په دې قسم کښې نه یئ حانث شوې، او بهر حال د منی ویستلو په وخت چې کوم غلط خیال ستاسو په دماغو کښې راغلې وو په هغې سره کافر شوی نه یئ (۲) خو دا خیال په کثرت تعوذ او کثرت حوقله (**لاحول ولاقوة الا بالله** ویل) سره زائل کول ضروری دی او که تاسو هغه جینۍ سره د نکاح نه پس جماع وکړه نو صرف د قسم کفاره ورکول به کافی وی. (۳) **وهو الموفق**

---

(۱) قال العلامة الجرجانی: الزنی الوطء فی قبل خال عن ملک وشبهة. (التعریفات للجرجانی ۸۳ باب الزای) وهکذا فی البحر الرائق ۵:۳)

(۲) عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ ان الله تجاوز عن امتی ما وسوست به صدورها ما لم تعمل به او تتکلم، متفق علیه. (مشکواة المصابیح ۱:۱۹ باب فی الوسوسة)

(۳) قال العلامة الحداد الیمنی: والیمین المنعقدة هی الحلف. [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## په قسم کې په حانث کېدو باندې کفاره واجب ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې یو سړی قسم وکړو چې زه به په دې امام پسې مونځ نه کوم، ځکه چې هغه علماء کرامو ته کنځلې کړې دی، بیا ئې د امام سره د صفایئ په طور خبرې اترې وشوې نو هغه امام انکار وکړو او ویې ویل چې ما غلطو ملایانو ته کنځلې کړې دی او بیا مې په دې امام پسې مونځ شروع کړو، د دې قسم کولو څه حکم دې بینوا توجروا

المستفتی: سید عبد الرحمن الوچ ......۲۶ شوال ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** دا سړې حانث شوې دې او په هغه باندې کفاره ورکول ضروری دی. (۱) وهوالموفق

## د حانث کېدو په صورت کې کفاره ورکول لازمی دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی او زما ترمینځه د ځمکې مقدمه روانه وه، د علاقې معززین د جرګې په ذریعه چې د هغې مشری محمد عرفان چیئرمین یونین کونسل کوله او زمونږ ترمینځه ئې صلح وکړه، او مونږ دواړو ته ئې په قرآن کریم باندې حلفیه لیک راکړو چې مونږ دواړه به د بیا دپاره د یو بل سره د هیڅ قسم شرارت ابتداء یعنی مقدمه بازی وغیره نه کوو، پس ما د هغه حلف نامې خیال ساتلو سره کم از کم لس زره روپۍ نقصان برداشت کړو او هیڅ قسم مقدمه کې مې حصه وانخستله،

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] علی الامر المستقبل ان یفعله او لا یفعله فاذا حنث فی ذلک لزمته الکفارة۔

(الجوهرة النيرة ۲:۲۸۷ کتاب الایمان)

۱) قال العلامة المودود الموصلی: واذا حنث یعنی فی الایمان المستقبلة فعلیه الکفارة لقوله تعالیٰ: ولکن یؤاخذ کم بما عقدتم الایمان۔

(الاختیار لتعلیل المختار ۲:۲۸۸ کتاب الایمان)

خو فریق مخالف د دې قسم خیال ونه ساتلو او په دویمه ورځ ئې د مقدمې چلولو ابتداء وکړه، لهذا مجبورا ما هم جوابی کارروائی شروع کړه، اوس دې قسم څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد جعفر خان بیروټ مری...... ۱۹۶۹ء | ۸ | ۱۲

**الجواب:** د مخالف سړې په مقدمه چلولو کې د مخکې کیدو د وجې نه مجرم او حانث دې د هغه دپاره ضروری ده چې کفاره ورکړی

وفی ردالمحتار ۳: ۷۰ ونقل فی الهندیة عن المضمرات وقد قیل هذا فی زمانهم اما فی زماننا فیمین وبه نأخذ ونأمر ونعتقد وقال محمد بن مقاتل الرازی انه یمین وبه اخذ جمهور مشائخنا، انتهی (۱)۔ وهوالموفق

## د قسم د فدیه کیفیت

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ یو دوست په قرآن کریم باندې قسم خوړلې وو چې زنا به نه کوم، خو د شیطان په دهوکه کولو سره هغه نه دا ګناه وشوه اوس هغه ډیر پریشان دې په دې قرآن باندې د قسم څه حل دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: نور حسین رسالپور چهاؤنی نوښهر

**الجواب:** فی الحال دې دا سړې لسو مسکینانو ته ډوډئ ورکړی یا لسو مسکینانو ته غله یا دې ورته د هغې قیمت ورکړی یعنی هر یو مسکین ته پاؤ کم دوه سیره (انګریزی) غنم یا دې د هغې قیمت ورکړی. که هغه سره مال نه وی فقیر وی نو درې ورځې روژې دې پرلپسې اونیسی. (۲) او د بیا دپاره دې د دې قبیح کار نه بالکل پرهیز وکړی. وهوالموفق

---

۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۵۶ مطلب فی القرآن کتاب الایمان)

۲) وفی الهندیة: الکفارة هی احد ثلاثة اشیاء ان قدر عتق رقبة یجزی فیها ما یجزی فی الظهار او کسوة عشرة مساکین لکل واحد ثوب فما زاد... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده]

## د قسم په کفاره کې لسو مسکینانو ته د پیسو یا طعام د ورکولو کیفیت او مقدار

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د قسم په کفارې سره ذمه څنګه فارغیږی؟ څومره مسکینانو ته خوراک ورکول لازمی دی؟ که یو حاجتمند ته د ټولو مسکینانو خوراک په یو خل ورکړې شی نو د هغې څهٔ حکم دې؟ بله دا چې که حانث هغه رقم یو سړی ته ورکړی چې دا پیسې زما د طرف نه د قسم د کفارې په طور په مسکینانو ډوډۍ اوخره نو آیا ذمه فارغیږی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: رحیم الله باچا... اضاخیل بالا نوښهر

**الجواب:** الف: کوم سړې چې په طعام سره کفاره ورکول غواړی نو دا سړې به لسو مسکینانو ته اصالة یا وکالة غله یا د هغې قیمت ورکوی، هر یو مسکین ته د صدقة الفطر مقدار (پاؤ کم دوه سیره غنم یا د هغې قیمت) نه کم به نه ورکوی او دا هم جائز ده چې لسو مسکینانو ته اصالة یا وکالة سحر او مابنام دوه وخته خوراک ورکړی که کم وي او که زیات.

في الهندية ۲: ۷۰ طعام التمليك ان يعطى عشرة مساكين كل مسكين نصف صاع من حنطة اودقيق اوسويق اوصاعا من شعير كما في صدقة الفطر (وقالوا بعداسطر) وطعام الاباحة اكلتان مشبعتان غداءً وعشاءً الخ(۱).

ب: که یو مسکین ته ئې په یو کرت ټوله کفاره ورکړه یا د هغې قیمت اصالة یا وکالة ورکړی نو دا به ناکافی وی او که په لسو ورځو کې روزانه دې یو

بقيه ازحاشيه گذشته] وادناه ما يجوز فيه الصلاة او اطعامهم والاطعام فيها كالاطعام في كفارة الظهار... فان لم يقدر على احد هذه الاشياء الثلاثة صام ثلاثة ايام متتابعات وهذه كفارة المعسر والاولىٰ كفارة الموسر- (فتاوىٰ عالمگيرية ۲: ۶۱ الفصل الثانى فى الكفارة)

۱ ) (فتاوىٰ عالمگيرية ۲: ۶۳ الفصل الثانى فى الكفارة)

مسکین ته ورکوی نو دا صحیح ده. لما فی الهندیة: ولو اعطی مسکینا واحدا عشرة اثواب مرة واحدة لم یجزیه کما فی الطعام وان اعطاه فی کل یوم ثوبا حتی استکمل عشرة اثواب فی عشرة ایام اجزأه کما فی الطعام (وفیها ایضاً) رجل اعطی کفارة یمینه مسکینا واحداً خمسة اصواع (من الحنطة) لم یجز الا اذا اعطی مسکینا واحداً فی عشرة ایام فیقوم عدد الایام مقام عدد المساکین (۱)۔ وهو الموفق

## د قسم د کفارې په روژو کې تسلسل ضروری دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړې په قسم کې حانث شی او په کفاره کې روژې نیسی نو آیا په دې کې هم تسلسل یعنی تتابع ضروری دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: اسحاق جنرل ستور بټ خیله.....۲۱ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** د قسم د کفارې په روژو کې تسلسل ضروری دې د قضاء کولو په صورت کې به د سره روژې نیسی

وفی الهدایة فصل فی کفارة الیمین ۲: ۴۶۱ فان لم یقدر علی احد الاشیاء الثلاثة صام ثلاثة ایام متتابعات... ولنا قراءة ابن مسعود رضی الله عنه فصیام ثلاثة ایام متتابعات وهی کالخبر المشهور (۲)۔ وهو الموفق

## د قسم په کفاره کې تداخل، خوراک یا جامې ورکولو په صورت کې قیمت ورکول او د نذر د قیمت ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: زید قسم وکړو چې بیا دپاره به فلانې کار نه کوم، خو ډیر کرته حانث شو، نو زید به د یو قسم کفاره ورکوی او که د جدا جدا؟

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۶۳،۶۲: ۲ الفصل الثانی فی الکفارة)

۲) (هدایة ۴۶۰: ۱ فصل فی الکفارة کتاب الایمان)

۲: که زید د یمین په کفاره کې د طعام او لباس ورکولو په صورت کې د دې دواړو څیزونو قیمت یعنې پیسې ورکړي نو آیا صحیح ده؟

۳: که یو سړی نذر ومني چې زه به د الله پاک په لاره کې یو دیګ پخوم نو که چاته د دیګ قیمت ادا کړي آیا دا صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: خورشید احمد اداره تحقیقات اسلامی اسلام آباد.... ۱۳ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب**: ۱: د امام محمد رحمه الله په نزد دا تداخل صحیح دي او ډیرو فقهاء کرامو دې ته اصح ویلي دي. (**شامی ۳/۷۳، مطبع مصطفی البابی الجلی**) (۱)

۲: د دوه سیره (انګریزی) غنمو قیمت معتبر دي نه دجامې قیمت، **كمافی رد المحتار ۲/۲۸۶، باب زكاة الغنم** (۲) پس نیم من غنم په لسو مسکینانو باندې مساوی تقسیمول کافی دی.

۳: صحیح ده. **كمافی ردالمحتار ۲/۲۸۲، فلراجع** (۳) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدين : وفى البغية كفارات الايمان اذا كثرت تداخلت ويخرج بالكفارة الواحد ة عن عهدة الجميع وقال شهاب الائمة هذا قول محمد قال صاحب الاصل هو المختار عندى.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۵۷ مطلب تتعدد الكفارة لتعدد اليمين)

۲) قال العلامة الشامى : ذكره فى غاية البيان كما قدمناه معللا بان معنى القربة فيه اتلاف الملك ونفى الرق وذلک لا يتقوم قلت وينبغى استثناء الكسوة ايضا لما فى البحر عن الفتح بخلاف ما لو كان كسوة بان أدى ثوبا يعدل ثوبين لم يجز الا عن ثوب واحد الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۴ باب زكاة الغنم)

۳) وفى الشامية قوله جاز دفع القيمة فى ...ونذر) كان نذر ان يتصدق بهذا الدينار فتصدق بقدره دراهم او بهذا الخبز فتصدق بقيمته جاز عندنا كذا فى فتح القدير.

(الشامية على هامش الدرالمختار ۲:۲۴ باب زكاة الغنم)

## د قسم په ډیرو کفاراتو کې د تداخل مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې په زرو قسمونو کې حانث شوې دې، آیا په دې سړی باندې به زر کفارې وی او که یوه د قسم کفاره؟ یعنی په دې کفاراتو کې تداخل جائز دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: فرید الله شریک دوره حدیث حقانیه ..... ۶ ربیع الثانی ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** او په کفاراتو کې تداخل کولې شی،

کما فی ردالمحتار هامش الدر ۳: ۷۱ وفی البغیة کفارات الایمان اذا کثرت تداخلت ویخرج بالکفارة الواحدة عن عهدة الجمیع وقال شهاب الائمة هذا قول محمد قال صاحب الاصل هوالمختار عندی (۱). وهوالموفق

## په حق او صحیح امر باندې قسم کول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بعض خلق وائی چې په دنیاوی معاملاتو کې قسمونه خوړل اگر که جائز ولې نه وی صحیح نه دی خو په داسې معاملاتو کې چې په جائز قسمونو خوړلو سره (کوم چې شرعا ناجائز وی) ذاتی عزت او ذاتی مال او جائیداد برقرار ساتلې کیدې شی، هم دغه شان فتنه ختمیدلې شی نو په دې صورت کې به د قسم څه حکم وی؟

**بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالحمید ایس وی کھوئی بهار ایف آر. دی آئی خان ... ٤ ذیقعده ۱۳۸۹هـ

**الجواب:** په احادیثو کې قسم خوړلو (چه په حق باندې وی) هیڅ وعید نه دې راغلې، خو د دې ترغیب موجود دې چې یو سړې حقدار وی او هغه جګړه

(۱) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۵۷ مطلب تتعدد الکفارة لتعدد الیمین)

پرېږدي او ختم کړي نو د هغه دپاره په جنت کې کور تیارولې شي (۱) لهذا داسې کول غوره دي خو واجب نه دي او د ګناه سبب نه دې. وهوالموفق

## یمین مباح امر دې چې کله د دروغو نه خالي وي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید دا عقده ساتي چې حلف او قسم خوړل سنت دي یعنی العیاذبالله رسول الله ﷺ خوړلي دي او بکر د دې عقیدې مخالف دې چې حلف بغیر د ضرورت نه د رزق او قبر د تنګسیا سبب دې، په دې دواړو کې د چا عقیده صحیح ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد ثناء الله کتوزئی.... ۲۵ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** قسم مباح کار دې خو چې کله د دروغو نه خالي وي. (۲) وهوالموفق

...

---

(۱) عن ابی امامة قال قال رسول الله ﷺ انا زعیم ببیت فی ربض الجنة لمن ترک المراء وان کان محقا وببیت فی وسط الجنة لمن ترک الکذب وان کان مازحا وببیت فی اعلی الجنة لمن حسن خلقه۔

(سنن ابی داؤد ۲:۳۱۳ طبع مکتبه امدادیه باب حسن الخلق)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: والیمین بالله تعالی لا یکره وتقلیله اولی من تکثیره۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۵۰ مطلب فی یمین الکافر)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

(شپږم جلد)

# باب ما یتعلق بالنذر

.........

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

## فتاوی فریدیه

# باب ما یتعلق بالنذر

قال رسول الله ﷺ:

لانذر فی معصیة

وکفارته کفارة الیمین.

(رواه الترمذی والنسائی)

........

# باب مایتعلق بالنذر

## د نذر د صحیح کیدو دپاره د عباداتو په شان نیت او اراده ضروری ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ماته چا د اوابین شلور رکعته ښودلې دی اګر چې دی شپږ رکعتونه، بیا ماته څه وسوسې پیدا شوې، بهر حال ما د دې شلورو رکعتونو متعلق وویل چې په ما باندې دا شلور رکعتونه فرض دی تول عمر به دا ادا کوم. هم دغه شان د سحر د دوارو سنتو متعلق هم ما دا الفاظ ویلې وو چې دا به په ما باندې تول عمر فرض وی. اوس د دې شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل الرحمن چمن بلوچستان .... ۲۴ مئی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** په دې الفاظو سره هر دواړه مونځونه په دې سړی باندې واجب شوي دی، لوجود کنایة النذر، خو د نذر په صحت کې د نورو عباداتو په شان نیت ضروری دې (۱) پس که د دې سړی په دې الفاظو باندې د تلفظ په وخت د نذر اراده وه نو دا مونځونه په هغه باندې واجب نه دی. (۲) لحدیث انما الاعمال بالنیات(۳) وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة ابن نجیم : وانما اشترطت النیة فی العبادات بالاجماع اوبآیة : وما امروا الا لیعبدوا الله مخلصین له الدین حنفاء... واما فی العبادات کلها فهی شرط صحتها الا الاسلام الخ. (الاشباه والنظائر علی صدر الحموی ۷۱،۶۹:۱ لا ثواب الا بالنیة)

(۲) قال الشیخ علی حیدر : ان الالفاظ الصریحة لا تحتاج الی نیة ویکفی حصول الفعل لترتب الحکم علیها... اما فی الالفاظ غیر الصریحة فیختلف حکم اللفظ الواحد باختلاف مقصد الفاعل الخ. (درر الحکام شرح المجلة ۲۰،۱۹:۱ المادة:۲)

(۳) (رواه البخاری ۱/۲، ومسلم باب الامارة ۱۵۵، وابوداؤد باب الطلاق، والترمذی ۱۶۲۷، والنسائی باب الطهارة ۵۹۰، وابن ماجه ۴۲۲۷، ومسند احمد ۱/۲۵)

## ټول عمر د روژې نیولو یا مونځ کولو یا د مور پلار د مرګه پورې د نکاح نه کولو نذر منل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی وویل چې ۱: که ما دا کار وکړو نو په ما باندې ټول عمر روژې یا مونځونه ادا کول دی یا د دوه میاشتو یا څلورو میاشتو روژې یا ئې دا وویل چې زه به د همیشه دپاره نکاح نه کوم؟ ۲: یا ئې دا وویل چې زه به د مور یا د پلار د مرګه پورې نکاح نه کوم اوس د دې نذر نه د وتلو څه لاره ده؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: عبدالواحد افغاني..........٤ جولائی ۱۹۷۲ء

**الجواب:** (۱) قال فی الهدایة ۲: ۴۶۳ اذا قال ان فعلت کذا فعلی حجة اوصوم سنة اوصدقة مال املکه اجزأه من ذلك کفارة یمین وهو قول محمد ویخرج عن العهدة بالوفاء بما سمی ایضاً وهذا اذا کان شرطا لایرید کونه الخ(۱). (۲) لاحرج فی النکاح لعدم الیمین والنذر وغیره. وهو الموفق

## چه کله لفظ نذر یا صیغه د لزوم نه وی نو نذر شرعی نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا په عربی ژبه کې د نذر منلو الفاظ دا دی (لله علی ان افعل کذا) خو په پښتو کې مونږ داسې وایو چې که دا بیمار ښه شو یا فلانې کار وشو نو زه به دا چیلی وغیره صدقه کوم، یعنی لفظ د صدقې استعمالوو د نذر لفظ نه استعمالوو او حال دا چې په نیت کې مو هم دا وو چې دا به ذبح کوو نو ماشومان به ئې هم خوری او خپله او په فقراء باندې به ئې هم خوری او یا په دې کې د یو څیز نیت هم نه وی نو په دې صورت کې به دا نذر وی یا صدقه؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: گل فراز.... یکم فروری ۱۹۷۵ء

---

۱) (هدایة ۴۶۲،۴۶۱:۲ قبیل باب الیمین فی الدخول والسکنی)

**الجواب:** په ظاهره کې دا صدقه ده نذرنه دې. **لعدم صیغة اللزوم ای علی** یعنی په ما باندې (۱) **وهوالموفق**

## که لفظ د نذر یا صیغه د لزوم نه وی نو دا عوامی نذر دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو مریض ووېل چې که الله پاک ماته شفاء راکړه نو زه به څه طعام د الله پاک په نوم ورکوم کوم چې به غریب او مالدار ټول خوری د دې نذر څه حکم دې؟ بله دا چې دا نذر مالدار خلق خوړې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: سعید الرحمن متعلم حقانیه ... ۳ صفر ۱۴۰۳ هجری

**الجواب:** چونکې دې سړی خو نه د نذر لفظ استعمال کړو او نه ئې د لزوم صیغه استعمال کړې ده لهذا د قواعدو په رڼا کې دا عوامی نذر دې اسلامی نذر نه دې. (۲) **وهوالموفق**

## که کاروبار مې کامیاب شو نو هر کال به حج کوم. شرعی نذر نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی ووېل که زما کاروبار الله پاک کامیاب کړو نو زه به هر کال حج کوم، اوس د هغه

---

۱) قال العلامة ابن البزاز الکردری: ان عوفیت صمت کذا لم یجب مالم یقل لله علی، وفی الاستحسان یجب وان لم یکن تعلیقا لا یجب قیاسا واستحسانا کما اذا قال انا احج فلا شیئ ولو قال ان فعلت کذا فانا احج ففعل یجب علیه الحج ان سلم ولدی اصوم ما عشت فهذا وعد-(فتاوی بزازیة علی هامش الهندیة ۲۷۲: ۴ الثالث فی النذر)

۲) وفی الهندیة: ولو قال ان عوفیت صمت کذا لم یجب حتی یقول لله علی وهذا قیاس وفی الاستحسان یجب وان لم یکن تعلیق لا یجب علیه قیاساً ولا استحساناً کذا فی الظهیریة-(فتاوی عالمگیریة ۲۱۰: ۱ قبیل الباب السابع فی الاعتکاف)

کاروبار کامیاب شوې دې نو آیا دا نذر صحیح دې یا نه؟ او هغه وائي چې زما نیت د نذر نه وو هسې د شکر په طور مې ویلې وو؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا (مفتی) محمد سردار مقیم دار العلوم کراچی یکم جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې نه د نذر لفظ موجود دې او نه د لزوم لفظ (علی د دې ترجمه) موجود ده پس دا وعده د نذرشرعی نه ده. (۱) وهوالموفق

## که الله پاک مې خوی ته صحت ورکړو نو دا غوا به خیرات کوم نذر نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید بیمار وو، د هغه مور وویل چې که الله پاک هغه ته شفاء ورکړه نو زه به دا معینه غوا خیرات کوم، اوس د صحت مند کیدو نه پس زید د دې معین غوا قیمت ورکولې شی؟ د خیرات په صورت کې ئې خپله خوړې شی؟ مور ئې لفظ د خیرات ویلې وو آیا دا نذر دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد افضل متعلم دوره حدیث حقانیه ..... یکم ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** دا امر نذر شرعی نه دې لعدموجود کلمة الالتزام (۲) پس دا زنانه د دې خیرات په کولو او نه کولو کې صاحب اختیار دی یعنی د دې غوا په

---

(۱) قال العلامة ابو اللیث السمرقندی: النذر ایجاب عن الفعل المباح علی نفسه تعظیما لله تعالیٰ بذکر اسمه، وایجاب العبد معتبر بایجاب الله تعالیٰ حتی لو قال لله علی صوم اوصلاة یصح نذره، ولو قال علی تسبیح وتهلیل وتحمید لا یصح نذره، ولو قال لله علی حج او صوم سنة یلزمه فیجب الوفاء به ان علق نذره وبشرط بان قال: ان فعلت کذا فعلی حجة او صوم سنة ففعل فعلیه الوفا بنفس النذر. (فتاویٰ النوازل ۲۴۲ فصل فی النذر)

(۲) وفی الهندیة: ولو قال ان عوفیت صمت کذا لم یجب حتی یقول لله علی وهذا قیاس وفی الاستحسان یجب وان لم یکن تعلیق لا یجب علیه قیاساً ولا استحساناً کذا فی الظهیریة. (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۱۰ ... [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

خیرات کولو یا د هغې د قیمت په خیرات کولو او د هغه خیرات نه په خوړلو او نه خوړلو کښې. وهوالموفق

## په خپل خان باندې د ګټې څه حصه مقرر کول او د هغې نه د رجوع کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په خپل ځان باندې د ګټې نه لسمه حصه د الله پاک دپاره مقرر کړې خو ورسره دا هم ووائی چې دا لسمه حصه په ما باندې نذر نه وو آیا دا سړې د خپل قول نه رجوع کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: حبیب الرحمن مدینة المنورة.... ۳ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** دا قول نذر شرعی دې، لانه نفاه بنفسه. د هغې نه رجوع او واپسی مطلوب ده او نه ممنوع ده. وهوالموفق

## که هلک کور ته واپس راغلو نو جینئ به په غریبه کورنئ کې ورکوم. شرعی نذر نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی نذر ومنلو چې که زما ورک شوې ځوی کور ته راغلو نو زه به خپله لور په یو غریب خاندان کې چې د خاندان نه بهر په نکاح ورکوم، اوس هلک واپس کور ته راغلو نو آیا دا نذر کونکې خپله لور داسې پردی او غریب خاندان کې ورکولې شی د چا چې ئې نذر منلې وو؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالقیوم نیو دربند مانسهره.... ۱۴ رمضان ۱۴۰۵ھ

---

(...بقیه ازحاشیه گذشته] قبیل الباب السابع فی الاعتکاف)

وقال ابن البزاز الکردری :ان عوفیت صمت کذالم یجب مالم یقل لله علی ،وفی الاستحسان یجب، وان لم یکن تعلیقا لا یجب قیاساً واستحسانا کما اذا قال انا احج فلا شیئ ولو قال ان فعلت کذا فانا احج ففعل یجب علیه الحج ان سلم ولدی اصوم ماعشت فهذا وعد.

(فتاوی البزازیة علی هامش الهندیة ۲۷۲:۴ الثالث فی النذر)

**الجواب:** نکاح کول عبادت دي خو په نکاح ورکول یا په غیر مناسب ځای کې په نکاح ورکول عبادت نه دي امر مباح دي، بهر حال دا نذر نذر شرعی نه دي. (۱) دا سړي خپله لور باقاعده په خاندان یا غیر خاندان کې ورکولې شی وهوالموفق

## په نذر کې د فقهاء کرامو بعض عبارتونه په اختصار محمول دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړي وویل که الله پاک زما کاروبار کامیاب کړو نو زه به هر کال حج ادا کوم، اوس د هغه سړي دحج کار کامیابیدلو سره روان دي، نو آیا دا نذر دي؟ او حال دا چې هغه سړي وائی چې زما نیت د نذر نه وو هم داسې د شکریه ادا کولو نیت مې وو، د دې نذر څه حکم دي؟ بینواتوجروا

المستفق: مولانا مفق محمد سردار

مقیم دار العلوم کراچی.... یکم جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې چونکې نه د نذر لفظ موجود دي او نه د لزوم لفظ (عَلَيَّ یا د دې ترجمه) موجود دي پس دا وعده د نذر شرعی نه ده (۲) د فقهاء کرامو هغه عبارتونه چې په هغې کې لفظ د نذر یا کلمه د لزوم نه وی هغه به په اختصار باندې محمول کولې شی. وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: الاشارة الى ما ذكره من ان ما ليس من جنسه فرض لا يلزم وعبارة الدرر المنذور اذا كان له اصل فى الفروض لزم الناذر كالصوم والصلاة والصدقة والاعتكاف وما لا اصل له فى الفروض فلا يلزم الناذر كعيادة المريض وتشبيع الجنازة ودخول المسجد وبناء القنطرة والرباط والسقاية ونحوها هذا هو الاصل الكلى.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۴ مطلب فى احكام النذر)

۲) قال العلامة ابن عابدين: فى الخانية قال ان برئت من مرضى هذا ذبحت شاة فبرئ لا يلزمه شيئ الا ان يقول فلله على ان اذبح شاة ... [بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

## که فلانۍ کار مې وکړو نو زر روژې به نیسم.

## د حانث کیدو په صورت کې به د یمین کفاره وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو طالب علم وویل چې زه به د چا غیبت نه کوم که او مې کړې نو قسم خورم چې زر روژې به نیسم، وروستو زید غیبت وکړو اوس څومره روژې لازم دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شیر علی مدرسه حسینیه نورك وزیرستان ... ۲ ربیع الاول... ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا سړې د قسم په کفاره (مثلا درې روژو) سره فارغ الذمة کیدې شی. لما فی الهندیة وان علق بشرط لا یرید کونه کدخول الدار او نحوه یتخیر بین الکفارة وبین عین ما التزمه، وروی ان اباحنیفة رجع الی التخییر ایضاً وبهذا کان یفتی اسماعیل الزاهد قال رضی الله عنه وهواختیاری ایضاکذافی

---

بقیه ازحاشیه گذشته] وهی عبارة متن الدرر وعللها فی شرحه بقوله لان اللزوم لا یکون الا بالنذر والدال علیه الثانی لا الاول، فافادان عدم الصحة لکون الصیغة المذکورة لا تدل علی النذر ای لان قوله ذبحت شاة وعد لا نذر ویؤیده ما فی البزازیة لو قال ان سلم ولدی اصوم ماعشت فهذا وعد ولکن فی البزازیة ایضا ان عوفیت صمت کذالم یجب مالم یقل لله علی وفی الاستحسان یجب.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۷۶ قبیل مطلب النذر غیر المعلق لا یختص بزمان ومکان)

وفی الهندیة: ولو قال ان عوفیت صمت کذا لم یجب حتی یقول لله علیّ وهذا قیاس وفی الاستحسان یجب وان لم یکن تعلیق لا یجب علیه قیاسا ولا استحسانا کذا فی الظهیریة. (فتاوی عالمگیریة ۱:۲۱۰ الباب السادس فی النذر)

المبسوط وهذا التفصيل هو الصحيح كذا في الهداية([1]).وهو الموفق

## د نذر په طور په خپل ځان باندې د حلال څیزونو د حرامولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ما د الله پاک سره وعده کړې وه چې الله تعالی ماته د بیمارۍ نه صحت راکړی نو په خپله خوشحالۍ سره به خپله مرغوب خوراک (سیخ تیکه، غوښه په سیخ ورته کړې شوې) خوراک پریږدم، اوس زه د الله پاک په فضل سره ښه شوې یم او د دې بیمارۍ د ختمیدلو امید دې اوس مسئله دا ده چې چونکې غوښه حلاله ده کومه چې ما خپله په ځان حرام کړې وه په دې وجه مې کله کله په زړه کې دا خبره راځي چې ما حلال ولې حرام کړل اوس که زه د دې حلال څیز خوراک پریږدم نو گناه به وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالقيوم مينگوره سوات.....۱۱۰ کتوبر ۱۹۷٤ء

**الجواب:** دا پورته الفاظ نه د نذر دی او نه قسم دې د دې نه په مخالفت کولو کې هیڅ کفاره نشته، خو که د حرام لفظ استعمال کړې شوې وی یا د نذر لفظ نو په تاسو باندې به د قسم کفاره وی، لما في الهندية: تحريم الحلال يمين كذا في الخلاصة (هندية ۲/ ٦۲)([2]) وفي بيان القرآن (۲/ ٤۱) اول الجزء الرابع) خو د تحریم نذر کوم چې په حقیقت کې قسم او یمین دې زمونږ په شریعت کې جائز نه دې بلکې په دې کې لومړی حنث دې بیا یې کفاره ورکول واجب دی، کما قال الله تعالى: لم تحرم ما احل الله لك،هم دغه شان په تفسیر کبیر کې دی. ([3]) وهوالموفق

---

[1] (فتاویٰ عالمگیریة ٦٥: ۲مما يتصل بذلک مسائل النذر الفصل الثاني في الكفارة)

[2] (فتاویٰ عالمگیریة ٥٥: ۲ الباب الثاني فيما يكون يميناً ومالا يكون)

[3] (بیان القرآن مکمل للت هانوی ٤۱: ۲ سورة آل عمران پاره: ٤)

## د یو څاروی د ذبح او تصدق نذر صحیح دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په خپل ځان باندې دا نذر متعین کړی چې که زما فلانې کار وشو نو زه به د الله پاک د رضا دپاره میښه، غوا یا چیلی ذبح کوم، په مقصود پوره کیدو باندې به هغه حیوان مذکور ذبح کوی او که هم داسې ئې بغیر د ذبح کولو نه هم ورکولې شی؟ بله دا په ذبح کولو سره د څاوی قیمت کمیږی نو آیا دا نذر صحیح دي؟ بینواتوجروا

المستفتی: عباد الله هزاروی ........ ۱٤ جنوری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دا نذر صحیح دې، **لوجود الواجب من جنسه** (۱) پس که دا نذر صرف د ذبح وی نو هغه به ژوندې تصدق کول ناکافی وی او که د ذبح صدقې غوښه د نذر وی نو صدقه کول به کافی وی. (۲)

---

۱) قال العلامة الحصكفی: ومن نذر نذراً مطلقاً او معلقا بشرط وكان من جنسه واجب ای فرض كما سيصرح به تبعا للبحر والدرر وهو عبادة مقصودة، وقال العلامة الشامی بعد صفحتين: وحمل ما فی الخانية والدرر من صحة قوله لله علی ان اذبح شاة علی القول بانه يكفی ان يكون من جنسه واجب وسيأتی فی آخر الاضحية عن الخانية لو نذر عشر اضحيات لزمه ثنتان لمجیٔ الامر بهما وفی شرح الوهبانية الاصح وجوب الكل لايجابه مالله من جنسه ايجاب ونقل الشارح هناک عن المصنف ان مفاده لزوم النذر بما من جنسه واجب اعتقادی او اصطلاحی ويؤيده ايضاً ما قدمناه عن البدائع وبه يعلم ان الاصح ان المراد بالواجب ما يشمل الفرض والواجب الاصطلاحی لا خصوص الفرض فقط. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۷۲،۷٦ مطلب فی احكام النذر)

۲) قال العلامة الحصكفی: ولو قال ان برئت من مرضی هذا ذبحت شاة او علی شاة اذبحها... فلا يصح الا اذا زاد واتصدق بلحمها فيلزمه لان الصدقة من جنسها فرض وهی الزكاة... ولو قال لله علی ان اذبح جزورا واتصدق بلحمه فذبح مكانه سبع شياه جاز. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۷٦ مطلب فی احكام النذر)

دا مسائل د ردالمحتار ۲۹/۳ نه ماخوذ دی وهوالموفق

## مشروط نذر د شرط د پوره کیدو نه مخکې نه ساقطیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی نذر ومنلو چې که زما فلانې کار وشو نو په ما باندې به د الله پاک په نوم دا څیز نذر وی، اوس که دا سړې د کار کیدو نه مخکې نذر شوی څیز ادا کړی نو دا به صحیح وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: ۱۹ ذی قعده ۱۴۰۲ هجری

**الجواب:** د یو کار سره مشروط کار کیدو نه مخکې په نذر ورکولو سره د کار کیدو واجب نذر نه ساقطیږی (۱) وهوالموفق

## د نذر د شرط موجودیدو نه مخکې د ادا کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی نذر ومنلو چې که زما فلانې کار وشو نو زه به فلانې څیز د الله پاک په نوم باندې نذر ورکوم، اوس د کار کیدو نه مخکې ئې هم هغه څیز په طور د نذرانې فقیرانو ته ورکړو نو نذر به ئې ادا شوې وی یا او که د کار پوره کیدو نه پس به ئې ورکول لازمی وی؟ بینواتوجروا

**الجواب:** نذر که د یو کار سره مشروط وی نو د شرط په موجودګۍ سره مشروط نه واجب کیږی او نه به دا ادائیګی د وجود الشرط نه مخکې صحیح وی، د کار کیدو نه پس به ئې دوباره په نذر پوره کیدو سره ذمه فارغه شی.

---

۱) قال العلامة الشامی: بخلاف النذر المعلق فانه لا یجوز تعجیله قبل وجود الشرط ... فلو جاز تعجیله لزم وقوعه قبل سببه فلا یصح.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۷ مطلب النذر غیر المعلق لا یختص برمان الخ)

في رد المحتار ۷۰/۳، بخلاف النذر المعلق فانه لا يجوز تعجيله قبل وجود الشرط.
(۱) وهوالموفق

## د نذر مصرف، مطلق معلق کې فرق او د منذور نه خپله د خوراک حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د نذر مصرف څه دې یعنی فقراء یا بهرنې چاته ورکولې شی؟

۲: په نذر مطلق او مقید کې څه فرق دې؟

۳: آیا نذر کوونکې د نذرشوی خوراک وغیره خپله خوراک کولی شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولانا محمد ایوب گندف قلندر خیل صوابی**

**الجواب ۱:** نذر او زکاة یو مصرف دې، رد المحتار ۷۹/۲ (۲) خو د نذر کړې شوی څیز کافر ته ورکول جائز دی، د هدیه وغیره په شان (۳)

۲: په نذر معلق کې د شرط د وجود نه مخکې یو څیز هم نه واجب کیږی (رد المحتار ۱۷۳/۲) (۴)

---

۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۷۷ مطلب النذر غير المعلق لا يختص بزمان)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله مصرف الزكاة والعشر)... وهو مصرف ايضا لصدقة الفطر والكفارة والنذر وغير ذلک من الصدقات الواجبة كما فى القهستانى۔
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۶۴ باب المصرف)

۳) قال العلامة الحصكفي: وجاز دفع غيرها وغير العشر والخراج اليه اى الذمى ولو واجباً كنذر وكفارة وفطرة خلافا للثانى وبقوله يفتى حاوى القدسى۔
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۷۳ باب المصرف)

۴) قال العلامة الشامى: بخلاف النذر المعلق فانه لا يجوز تعجيله قبل وجود الشرط، قلت وقدمنا هناک الفرق وهو ان المعلق على شرط لا ينعقد سببا للحال كما تقرر فى الاصول بل عند وجود شرطه فلو جاز تعجيله لزم وقوعه قبل سببه فلا يصح۔
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۷۷ مطلب النذر غير المعلق لا يختص بزمان ومكان)

۳: ترڅو پورې چې کلمه د ﴿عَلَیَّ﴾ یا د دې مترادف استعمال کړې شوې نه وی یا ئې لفظ نه وی استعمال کړې نو خپله ئې هم خوړلې شی ځکه چې دا نذر شرعی نه دې **لعدم کلمة الایجاب وصرح فی البدائع فی کتاب النذر: ان النذر هو ایجاب الله.(۱) وهوالموافق**

## د نذر په روژو کې د تسلسل مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د څو ورځې روژو نذر منلې وو اوس به داسې مسلسل روژې نیسی یعنی تسلسل لازمې دې او که په مختلفو وختونو کې ئې بیلې هم نیولې شی؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: علیم گل استاد اسماعیله مردان

**الجواب:** که د مسلسل روژو نیت ئې نه وی کړې نو تسلسل ضروری نه دې، **وفی الهندیة(۱/۲۱۰) ولو قال لله علی ان اصوم شهرا متتابعا لزمه التتابع وان اطلق یخیر(۲) وهوالموافق**

---

۱) قال العلامة الکاسانی: اما رکن النذر هو الصیغه الدالة علیه وهو قوله لله عز شانه علی کذا او علیّ کذا... اذا لوجوب عند وجود الصیغة من الاهل فی المحل بایجاب الله تعالیٰ لا بایجاب العبد اذ لیس للعبد ولایة الایجاب وانما الصیغة علم علی ایجاب الله تعالیٰ.

(بدائع الصنائع ۴:۲۲۶ کتاب النذر)

۲) (فتاوی عالمگیریة ۱:۲۱۰ الباب السادس فی النذر)

## نذر عرفی او د الله پاک او د هغه د رسول ﷺ د رضا د پاره د رقم د تخصیص وغیره حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی دا ویلې دی چې زه د الله پاک سره وعده کوم چې زه به د حلالې مزدورۍ ۱/۴ حصه د الله پاک او د هغه د خوږ نبی ﷺ د رضا د حصول دپاره خرچ کوم، خو که د څه ناموافق حالاتو په وجه باندې نې چېرته یوه میاشت ادا نه کړې شم نو د الله پاک نه به معافی غواړم زه به د الله پاک نه دا دعا کوم چې د دې په بدله کې راله په آخرت کې یو عالیشان محل جوړ کړی او په جنت الفردوس کې زما اهل وعیال اوسیږی.

د پورته عبارت څه حکم دې؟ آیا دا نذر دې چې د هغې پوره کول لازم وی؟ او که نذر نه دې؟ هم دغه شان د نذر په صورت کې د رسول الله ﷺ د نامې د شرکت څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالرحمن دار العلوم هادیه کلبهار پېښور ....۱۱۳ کتوبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** دا کلام نذر عرفی دې شرعی نذر نه دې، د دې پوره کول لازم نه دې لعدم لفظ النذر ولعدم صیغة الالتزام(۱). ولا ضیر فی طلب رضاء الرسول ﷺ ولا فی الجمع کما لا ضیر فی طلب محبة الرسول ﷺ ولا فی الجمع، فافهم. وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین : فی الخانیة قال ان برئت من مرضی هذا ذبحت شاة فبرئ لا یلزمه شیئ الا ان یقول فلله علی ان اذبح شاة، وهی عبارة متن الدرر وعللها فی شرحه بقوله لان اللزوم لا یکون الا بالنذر والدال علیه الثانی لا الاول، فافاد ان عدم الصحة لکون الصیغة المذکورة لا تدل علی النذر ای لان قوله ذبحت شاة وعد لا نذر ویؤیده ما فی البزازیة لو قال ان سلم ولدی اصوم ما عشت فهذا وعد لکن فی البزازیة ایضاً ان عوفیت صمت کذا لم یجب مالم یقل لله علیّ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۷۶ مطلب فی احکام النذر).

## د وقف معلق یو صورت او د هغې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې زید دېوې مدرسې د پرانستلو اراده وکړه زید د مدرسې دپاره د ځمکې د ورکولو فضائل بیان کړل بکر وویل چې زما فلانۍ ځمکه د مدرسې دپاره د الله پاک دپاره وقف ده خو که مدرسه کامیابه نه شوه نو زه به دا ځمکه به بیا اخلم، زید په هغه ځمکه باندې فصل کرل شروع کړل او مدرسه ئې آباده نه کړه، په دې وجه بکر دا ځمکه واپس اخستلو سره خرڅه کړه او د هغې رقم ئې د محلې په مسجد کې خرچ کړو، آیا د شریعت په رڼا کې د بکر دا تصرف صحیح دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: عبدالوهاب سنګری بټل هزاره**

**الجواب:** په حقیقت کې دا نذر معلق دې، کوم چې غیر صحیح دې، **فی الدر المختار:** وان یکون قربة فی ذاته معلوما منجزا لا معلقا ولا مضافا ولا موقتا (هامش ردالمحتار ۳۶۰/۲) لهذا د بکر دا تصرف جائز او نافذ دې (۱) (۲)
**وهوالموفق**

## جرګه کې بوتلې شوې چیلۍ (د ننواتی ګډ) او د حاجی د راتلو په وخت د بیزې وغیره د بوتلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په چا باندې د جرګې کولو په وخت ګډه چیلۍ د ننواتي په طور او د حاجیانو په دوباره راتلو باندې د ګډې بیزې د بوتلو څه حکم دې؟ آیا دا په ﴿ ما اهل به لغیرالله ﴾ کې داخل نه دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: ګل جنان وزیرستان متعلم حقانیه... ۱۸ ستمبر ۱۹۸۵ء**

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۹۴ قبیل مطلب فی وقف المرتد والکافر)

۲) اودا نذر په دې وجه هم صحیح نه دې چې په دې کې صیغه د نذر او لزوم موجودنه ده. (سیف الله حقانی)

**الجواب:** دا چیلی (ما اهل به لغیر الله) نه ده خصوصا چې کله ژوندی انسان ته حواله کولې شی، لان القصد منه تقدمة الرواج لا تعظیم هذ الشخص بالذبح(۱) وهوالموفق

## د بزرګانو په قبرونو باندې د نذر و نیاز حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ما سره د اشرف علی تهانوی رحمة الله علیه ترجمې والا قرآن کریم دې چې په هغې کې د مزاراتو د زیارت نه په سختئ سره منع شوې ده لکه چې د سورة مائده په آخری رکوع کې ارشاد دې چې الله پاک به سیدنا عیسی علیه السلام ته وائی چې آیا تاسو خلقو ته ویلې وو چې زما او زما د مور نه معبودان جوړ کړئ؟ د هغې په تفصیل کې ئې لیکلې دی چې کوم خلق په زیارتونو (قبرونو) وغیره باندې نذر ونیاز کوی نو د څلورو وارو مذاهبو خلاف کوی او د زیارت ذبیحه حرامیږی، په زیارتونو باندې چې کوم خلق نذر ونیاز کوی جائز نه دی، نذر ونیاز صرف د الله پاک دپاره دې، اوس ډیر خلق دا جائز ګڼی په قبرونو باندې څادرې خوروی او ډیوې پرې بلوی آیا دا کار صحیح دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** خیر محمد سپاهی......۱۶ جون ۱۹۷۵ء

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: ذبح لقدوم الامیر ونحوه کواحد من العظماء یحرم لانه اهل به لغیر الله ولو ذکر اسم الله تعالیٰ ولو ذبح للضیف لا یحرم لانه سنة الخلیل واکرام الضیف اکرام الله تعالیٰ والفارق انه ان قدمها لیأکل منها کان الذبح لله والمنفعة للضیف او للولیمة او للذبح وان لم یقدمها لیأکل منها بل یدفعها لغیره کان لتعظیم غیر الله فتحرم، قال العلامة ابن عابدین: واعلم ان المدار علی القصد عند ابتداء الذبح فلا یلزم انه لو قدم للضیف غیرها ان لا تحل لانه حین الذبح لم یقصد تعظیمه بل اکرامه بالاکل منها وان قدم الیه غیرها الخ.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۵:۲۱۷،۲۱۸ قبیل کتاب الاضحیة)

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتهم! د السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چې د قبرونو د زیارت دپاره تلل سنت دی.(۱) او د هغوی نه توسل شرعی کول جائز دي.(۲) د هغوی دپاره نذر کول حرام دی.(۳) او دا نذر شوې څاروې اګر چې د الله پاک په نوم باندې ذبح کړې شوې وی حرام او مردار دې.(۴) ایصال ثواب جائز دې.(۵) کرامت د اولیاء حق دی د هغوی په قبرونو باندې غلاف نه اېښودل احتیاط دې (۶) او بغیر د ضرورت نه په مزارات

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: فی الفتح والسنة زیارتها قائماً والدعاء عندها قائما کما کان یفعله ﷺ فی الخروج الی البقیع ویقول السلام علیکم الخ.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۶۵ مطلب فی زیارة القبور)

۲) قال الشاه اشرف علی التهانوی: حدیث مصعب بن سعد... دل علی امرین... والثانی ثبوت التوسل بالمقبولین ذواتهم واعمالهم الظاهرة والباطنة کما تدل علیه بضعفائها ودعوتهم واخلاصهم الخ.
(بوادر النوادر ۷۰۶ الادراک والتوصل)

۳) قال العلامة الحصکفی: واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اکثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقرباً الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام.(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۳۹ قبیل باب الاعتکاف)

۴) قال العلامة ابن البزاز الکردری: ولو ذبح لقدوم الامیر او لقدوم واحد من العظمآء لا یحل اکله وان ذکر اسم الله تعالیٰ علیه لانه ذبح لتعظیم غیر الله.
(فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۶:۳۰۲ کتاب الصید)

۵) قال العلامة ابن عابدین: وفی البحر من صام او صلی او تصدق وجعل ثوابه لغیره من الاموات والاحیاء جاز ویصل ثوابها الیهم عند اهل السنة والجماعة کذا فی البدائع.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۶۶۶ مطلب فی القرأة للمیت واهداء ثوابها له)

۶) قال العلامة ابن عابدین: کره بعض الفقهاء وضع الستور والعمائم والثیاب علی قبور الصالحین والاولیاء قال فی فتاویٰ الحجة وتکره الستور علی القبور ولکن نحن نقول الآن اذا قصد به التعظیم فی عیون العامة حتی لا یحتقروا... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

باندې شمع بلول ممنوع دی (۱) او د هغه اولیاء نه غائبانه حاجتونه غوښتل شرک دی (۲) وهوالموفق

**نوټ**: د اشرف علی تهانوی رحمه الله بیان کړې مسائل حق دی.

## د اولیاء الله د رضا کولو دپاره نذر و نیاز کول

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې اکثر خلق د څه زیارت یعنی ولی په نوم باندې نذر ونیاز کوی چې ګډه بیزه، غوا د یو بزرګ په نوم باندې ذبح کولو سره غوښه د هغوی په اولاد باندې تقسیم کړی د دې شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: سلطان روم جلبئ صوابی.... ۱۰ محرم ۱۳۹۲ھ

---

بقیه ازحاشیه گذشته] صاحب القبر ولجلب الخشوع والادب للغافلین الزائرین فهو جائز لان الاعمال بالنیات وان کان بدعة فهو کقولهم بعد طواف الوداع یرجع القهقری حتی یخرج من المسجد اجلالا للبیت حتی قال فی منهاج السالکین انه لیس فیه سنة مرویة ولا اثر محکی وقد فعله اصحابنا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۲۵۶ قبیل فصل فی النظر والمس)

۱) وفی الهندیة: ویکره عند القبر مالم یعهد من السنة والمعهود منها لیس الا زیارته والدعاء عنده قائماً (وبعد صفحة) وایقاد النار علی القبور فمن رسوم الجاهلیة والباطل والغرور کذا فی المضمرات. (فتاویٰ عالمگیریة ۱۶۷،۱۶۶:۱ قبیل الفصل السابع فی الشهید)

۲) قال العلامة ابن عابدین: ومنها انه ان ظن ان المیت یتصرف فی الامور دون الله تعالیٰ واعتقاده ذلک کفر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۳۹ قبیل باب الاعتکاف)

**الجواب:** که نذر د الله پاک د رضا کولو او تقرب دپاره وی او اولیاء الله ته صرف ایصال ثواب ورکول مقصود وی نو په دې کې هیڅ باک نشته او که د اولیاء الله رضا کول مقصود وی نو دا حرام دی او اکثر عوام په دې حرامو کې پراته دی (۱) **وهوالموفق**

## د شیخ جیلانی او علی هجویری په نوم نذر کول حرام او ایصال ثواب صحیح دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ما څه پیسې د شیخ عبدالقادر جیلانی په نوم منلې دی هم دغه شان مې د علی هجویری لاهوری د نذرانې په بکس کې د پیسو اچولو نذر کړې ده آیا دا پورته ذکر شوې دواړه خبرې صحیح دې؟ آیا زه دا پیسې په یو دارالعلوم یا د یوې کونډې په امداد کې خرچ کولې شم؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد سلیم راناکریم پوره پشاور... ۱۹٦۹ء | ۵ | ۳

**الجواب:** که تاسو داسې نذر کړې وی چې د الله پاک دپاره په ما باندې نذر دې او زه به د عبدالقادر جیلانی رحمه الله یا علی هجویری لاهوری په نوم ایصال ثواب کوم نو نذر صحیح دې او تاسو دا پیسې دارالعلوم او کونډې او یتیم ته هم ورکولې شئ او که تاسو د دې اولیاء دپاره نذر کړې وی او د هغوی تقرب او رضا مو مراد وی نو دا نذر باطل دې او ستاسو دپاره توبه او استغفار ضروری دی. (صرح به العلامه الشامی فی المجلد الثانی قبیل الاعتکاف، (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصكفی: واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اكثر العوام ومایؤخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الكرام تقربا الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام مالم یقصدوا صرفها لفقراء الانام وقد ابتلی الناس بذلک ولا سیما فی هذه الاعصار. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۳۹ مطلب فی النذر الذی یقع للاموات من اكثر العوام)

۲) قال العلامة ابن عابدین: (قوله ان النذر الذی... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د یو پیر په مقبره باندې د مذبوحه نذر مختلف صورتونه

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی وویل چې که زه کامیاب شوم نو د الله پاک په نوم باندې به د فلانی پیر په مقبره باندې غوئې ذبح کوم په دې کې ډیر اختلاف دې لهذا د لاندې لیکلې شوي جزئیاتو څۀ حکم دې؟

۱: دا فلانې غوئې به د فلانی پیر په مقبره ذبح کوم.

۲: دا فلانې غوئې به د الله پاک په نوم باندې په فلانئ مقبره کې په پیر ذبح کوم

۳: یو غوئې به ذبح کوم د الله پاک په نوم د فلانی پیر په مقبره باندې

۴: زه به یو غوئې د فلانی پیر په نوم د هغه په مقبره کې ذبح کوم. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** حبیب الرحمن دیروی متعلم حقانیه احاطه مدنیه ...۲۲ رجب ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت د دې غوئی خوړل په دې ټولو صورتونو

---

بقیه ازحاشیه گذشته ] یقع للاموات ... باطل وحرام) لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لا یجوز لانه عبادة والعبادة لا تکون لمخلوق ومنها ان المنذور له میت والمیت لا یملک ومنها انه ان ظن ان المیت یتصرف فی الامور دون الله تعالیٰ واعتقاده ذلک کفر اللهم الا ان قال یا الله انی نذرت لک ان شفیت مریضی او رددت غائبی او قضیت حاجتی ان اطعم الفقراء الذین بباب السیدة نفیسة او الامام الشافعی او اشتری حصر المساجدهم او زیتا لوقودها او دراهم لمن یقوم بشعائرها الی غیر ذلک مما یکون فیه نفع للفقراء والنذر لله عز وجل وذکر الشیخ انما هو محل الصرف النذر لمستحقیه القاطنین برباطه او مسجده فیجوز بهذا الاعتبار۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۳۹ مطلب فی النذر الذی یقع للاموات الخ)

کې حرام دی لکونها ما اهل به لغیر الله (۱) فی الصورة الاول والرابع، وما ذبح علی النصب (۲) فی الصورة الثانیة والثالثة. وهوالموفق

## په نذر للاولیاء کې د مذبوحه څاروی د حرمت او حلت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې دا ووائی چې مثلا ما دا ګډه یا څاروې وغیره د بابا ولی دپاره نذر کړې دې آیا دا نذر صحیح دې؟ او د دې ګډه وغیره خوړل جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شمس الحق متعلم حقانیه .... ۲۹ ستمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** چونکې نذر عبادت دې او هر عبادت کې (للهیت) شرط دې لهذا دا نذر باطل او حرام دې او تبدیل ملک یا توبې نه مخکې دا مذبوحه حرامه ده، او د ذبح نه پس به په توبې سره دا حرمت مرتفع شی.

یدل علی الاول ما فی الدرالمختار: واعلم ان النذرالذی یقع للاموات من اکثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الکرام تقربا الیهم فهو باطل بالاجماع وحرام، قال العلامة الشامی: لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لا یجوز لانه عبادة والعبادة لا تکون لمخلوق الخ (۳).

ویدل علی الثانی: ان بالتوبة وتبدل الملك انتفی الوصف المحرم. وهوالموفق

---

۱ ﴾ قال الله تعالیٰ: انما حرم علیکم المیتة والدم ولحم الخنزیر وما اهل به لغیر الله. (سورة البقرة آیت: ۱۷۳)

۲ ﴾ حرمت علیکم المیتة والدم ولحم الخنزیر وما اهل لغیرالله به والمنخنقة والموقوذة والمتردیة والنطیحة وما اکل السبع الا ما ذکیتم وما ذبح علی النصب وان تستقسموا بالازلام. (سورة المائدة آیت: ۳)

۳ ﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۳۹ باب الاعتکاف)

## نذر لغیر الله اګر چې تکبیر هم پرې ویلې شوې وی بیا هم مردار دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بعض خلق د اولیاء کرام او بزرګان دین په مزارات باندې نذر کولو سره څاروی ذبح کوی حال دا چې په هغې باندې تکبیر لوستلې شی نو د دې قسم نذر او مذبوحې او ذابح څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اکرام ترکوټ ایبټ آباد ... ۲۰ فروری ۱۹۶۹ء

**الجواب:** چونکې په مزاراتو باندې د څاروی ذبح کولو اراده د اولیاء الله تقرب او رضا وی لهذا دا څاروې مردار دې اګر چې په دې باندې تکبیر ویلې شوې وی، یدل علیه ما فی الدر المختار: ذبح لقدوم الامیر ونحوه کواحد من العظماء یحرم لانه اهل به لغیر الله ولو ذکر اسم الله تعالیٰ(۱) وهکذا فی غیرواحد من کتب الفقه والتفسیر وروی فیه حدیث رواه احمد، او د ذابح په ارتداد کې د فقهاء کرامو اختلاف دې لهذا د کفر فتوی مونږ نه شو ورکولې. وهوالموفق

## د اصلاح د عقیدې نه پس د نذر صحیح طریقه

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د شیخ رحمکار کاکا صاحب په نوم نذر کړې وې چې زه به څلور خواره دیګونه د وریجو پخوم، اوس دهغه سړی کارشوې دې اوهغه ته د نذرصحیح طریقه بیان کړې شوه، هغه د نیت تصحیح وکړه چې اوس چې دا سړې کله وریجې پخوی نو آیا غنی خلق دا خوړلې شی؟ د هغه اهل وعیال دا خوړلې شی؟ هم دغه شان د وریجو پخولو په وخت ختنه وغیره کول څنګه دی؟ که د خوږو وریجو په ځای د غوښې وغیره سره وریجې پخې کړی د دې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد ګل پیو لوڼهر ..... ۵ ستمبر ۱۹۷۲ء

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲۱۷:۵ قبیل کتاب الاضحیة)

**الجواب:** چونکې دا نذر باطل دې، **لکونه للمخلوق** (۱) لهذا د عقیدې د اصلاح نه پس دا سړې صاحب اختیار دې که وریجې پخوی یا غوښه او که څه نقد ورکوی (۲) که سنتي پکې کوی یا نه کوی. **وهوالموفق**

## د منذور غوښې او وریجو په ځای قیمت تقسیمول غوره دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی نذر منلې وو چې که زما فلانې کار وشی نو زه به میینه ذبح کوم او وریجې پخولو سره به د دواړو کلو په عوامو باندې تقسیموم، اوس ئې کار شوې دې د هغه دپاره څه طریقه خپلول پکار دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: رومان شاه تبلیغی جمال گرهئ مردان ... ۲۹ جولائی ۱۹۸۴ء

---

۱) قال العلامة الحصكفی: واعلم ان النذر الذی یقع للاموات من اكثر العوام وما یؤخذ من الدراهم والشمع والزیت ونحوها الی ضرائح الاولیاء الكرام تقربا الیهم فهو بالاجماع باطل وحرام- قال ابن عابدین: (باطل وحرام) لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لا یجوز لانه عبادة والعبادة لا تكون لمخلوق ومنها ان المنذور له میت والمیت لا یملک، ومنها انه ان ظن ان المیت یتصرف فی الامور دون الله تعالیٰ واعتقاده ذلک كفر اللهم الا ان قال یا الله انی نذرت لک ان شفیت مریضی او رددت غائبی او قضیت حاجتی ان اطعم الفقراء الذین بباب السیدة نفیسة اوالامام الشافعی او الامام اللیث او اشتری حصراً لمساجدهم او زیتالو قودها او دراهم لمن یقوم بشعائرها الی غیر ذلک الخ۔

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۳۹ مطلب فی النذر الذی یقع للاموات الخ)

۲) قال العلامة ابن عابدین: والنذر من اعتكاف او حج او صلاة او صیام او غیرها غیر المعلق ولو معینا لا یختص بزمان ومكان ودرهم وفقیر فلو نذر التصدق یوم الجمعة بمكة بهذا الدرهم علی فلان فخالف جاز الخ۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۷۷ مطلب النذر غیر المعلق لا یختص بزمان ومكان)

**الجواب:** ستاسو دپاره غوره ده چې تاسو د دې منذور (میښې او وریجو) قیمت په مسکینانو باندې خصوصا د دین طالب علمانو باندې تقسیم کړئ (۱) او په غوښه او وریجو تقسیمولو سره به تاسو په دینی او دنیوی مشکلاتو کې اخته شئ. (۲) **وهوالموفق**

## د منذور څیز نه ملاویدو په صورت د هغې د قائم مقام مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د اوښ د ذبح کولو نذر منلې دې خو د هغه په علاقه کې اوښان نه ملاویږی او د بهر نه به راوستل غواړی هغه به دومره ګران پریوځی چې د هغه د طاقت نه بهر ده چې دا سړې د هغې په بدل کې بل څاروې ذبح کولې شی؟ او که په قیمت ورکولو سره به ئې کار اوشی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حافظ عباس موړکو چترال

---

۱) وفی الهندیة: ویجوز دفع القیم فی الزکاة عندنا وکذا فی الکفارات وصدقة الفطر والعشر والنذر.

(فتاوی عالمگیریة ۱۸۱:۱ الباب الثالث فی زکاة الذهب والفضة والعروض)

وفی الهندیة: هذا فی الواجبات کالزکاة والنذر والعشر والکفارة فاما التطوع فیجوز الصرف الیهم کذا فی الکافی.

(فتاوی عالمگیریه ۱۸۹:۱ الباب السابع فی المصارف)

۲) په دې کې به دینی مشکلات دا راځی چه زمونږ د علاقې په عرف کې چونکې په خیرات کې عام خلق رابللې شی که مالداره وی اوکه فقیر وی، نوکه مالداره او رشته دار ئې اوخوری نو مالی نذر به خپل مصرف ته اونه رسیږی نو ستا په ذمه به باقی پاتې وی، او دنیوی مشکلات دادی چه زمونږ د عرف په وجه ستا مالداره رشته دار او خپلوان به خفګان ښکاره کوی چه مونږ ئې خپل دعوت کښې راونه غوښتلو او مستقل به د غیبت او چغلئ یوه سلسله شروع شی...... (از مرتب)

**الجواب:** که واقعتا په دې علاقه کې د اوښ ملاویدل مشکل وي نو دې نذر کونکی ته اختيار دې چې یا خو دې اووۀ بيزې یا ګډې ذبح کولو سره خپل نذر پوره کړي یا دې بيا د درمیانه قسم اوش قیمت په مسکینانو باندې تقسیم کړي، في الدر المختار: ولو قال لله على ان اذبح جزورا او تصدق بلحمه فذبح مكانه سبع شياه جاز(۱) وهوالموفق

## د مسمى نذر په بدل کې د نور مال ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين ددې مسئلې په باره کې چې زما دپتون هډوکې مات شوې وو ما نذر ومنلو چې د صحت په صورت کې به چې کومه قرضه د فلانی سړي سره ده هغه مال به مدرسه حقانيه يا په خپل مسجد باندې خرچ کوم، د الله پاک په فضل راته شفاء نصيب شوه ما مقروض ته د قرض مال ورکولو وويل هغه په يو ځل د ورکولو نه معذرت وکړو که زه هم هغه رقم خپل ځان سره د موجوده مال نه خرچ کړم نو آيا زما ذمه به فارغ شی؟ بينواتوجروا

المستفتي: نثار الحق زیارت کاکا صاحب نوښهر ...... ۲۳ ذوالقعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** چونکې په نذر کې د مسمى په ځای قيمت ورکولو سره ذمه فارغيږی (۲) لهذا تاسو د دې ملکيت په بدل کې په ملکيت ناجزه سره ذمه فارغه کولې شئ وهوالموفق

## د سلو روپو د غوا نذر کول او اوس په سل روپۍ نه ملاویدل

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړي د يو کار

---

۱) (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۳: ۷۶ مطلب فی احکام النذر)

۲) وفی الهندية: ويجوز دفع القيم فی الزكاة عندنا وكذا فی الكفارات وصدقة الفطر والعشر والنذر كذا فی الهداية.
(فتاوى عالمگيرية ۱: ۱۸۱ الباب الثالث فی زكاة الذهب والفضة مسائل شتى)

د کیدو په صورت کې نذر وکړي چې د سلو روپو غوا به ذبح کوم اوس غوا په سل روپۍ نه ملاویږي نو د خلاصي به څه صورت وي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي**: محبوب شاه دره آدم خیل

**الجواب**: غوا ذبح کول ضروري نه دی سل روپۍ مسکینانو ته ورکړي، مأخوذازشامی (۱) وهوالموفق

## نذر شرعي، په دې کې د بدلون او نقدو پیسو وغیره ورکولو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په دې طریقه باندې نذر وکړي چې که زما فلاني کار وشو نو د الله پاک په نوم باندې به یو خوړ دیګ پخوم او په مسکینانو او غریبانانو به ئې خورم اوس نذر په هغه باندې واجب شوې دې خو د هغه اراده ده چې که یو دیګ پوخ کړم نو د مسکینانو سره به ئې مالدار هم وخوري او دوست او رشته دار هم، ځکه چې هغوی به خفه شي چې مونږ ته ئې دعوت رانکړو، اوس که هغه سړې د دې دیګ خرچه نقدې پیسې مسکینانو یا یو دیني مدرسې ته ورکړي نو آیا ذمه به ئې فارغه شي؟ دویم صورت دا چې که څوک وکیل جوړ کړي او هغه ته پیسې ورکړي چې دا دیګ پوخ کړي او تقسیم ئې کړي نو آیا ذمه به ئې فارغه شي؟ اګر چې هغه ته اول صورت خوښ دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي**: اخونزاده سلطان سید ادینه صوابي ۱۶ دسمبر ۱۹۷۴ء

---

۱) قال العلامة الحصكفي: وجاز دفع القيمة في زكاة وعشر وخراج ونذر، قال ابن عابدين: كان نذر ان يتصدق بهذا الدينار فتصدق بقدره دراهم او بهذا الخبز فتصدق بقيمته جاز عندنا كذا في فتح القدير ... بخلاف النذر بالتصدق بشاتين وسطين فتصدق بشاة بقدرهما جاز لان المقصود اغناء الفقير وبه تحصل القربة وهو يحصل بالقيمة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۴ باب زكاة الغنم)

**الجواب:** واضحه دې وي چې په ظاهره کې دا نذر واجب الايفاء نه دې، **لعدم كلمة الالزام وهي علىّ وما يساويه ويرادفه** (مثلا په ما باندې) (۱) او کوم نذر چې واجب الايفاء وي په هغې کې اصالة يا وكالة د هغه څيز ورکول يا د هغې قيمت ورکول جائز دی (ماخوذ از شامي وغيره) (۲) خو د ذمه فراغت په نقد قيمت ورکولو کې په آسانۍ سره حاصليږي او انفع هم دې. (۳) **وهوالموفق**

## نذر عرفي او شرعي او د نذر د قيمت ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی داسې وايي چې که زما فلانې مقصد الله پاک پوره کړو نو دوه چيلي به د الله پاک په نوم باندې ورکوم، د نذر کولو په وخت چيلی موجود نه وو او نه معين کړې شوې وو اوس هغه مقصد پوره کيدو سره د دوه چيلو قيمت په فقراء باندې خرچ کول غواړي آيا په نذر کې قيمت ورکول جائز دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: سلطان محمود ناظم اعلیٰ دارالعلوم حقانيه ۳۰ جون ۱۹۷۳ء

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: اللزوم لا يكون الا بالنذر... فافادان عدم الصحة لكون الصيغة المذكورة لا تدل على النذر اى لان قوله ذبحت شاة وعد لا نذر ويؤيده ما فى البزازية لو قال ان سلم ولدى اصوم ما عشت فهذا وعد-

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۷۶ مطلب فى احكام النذر)

۲) قال العلامة الحصكفى: وجاز دفع القيمة فى زكاة وعشر وخراج ونذر-
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۲۴ باب زكاة الغنم)

۳) وقال العلامة الحصنى: نذر ان يتصدق بعشرة دراهم من الخبز فتصدق بغيره جاز ان ساوى العشرة كتصدقه بثمنه-
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳:۷۷ مطلب النذر لا يختص بزمان ومكان الخ)

**الجواب:** په ظاهره کې دا نذر عرفي دې، لعدم لفظ النذر ولعدم کلمة اللزوم، نذر شرعي نه دې (۱) او فقهاء کرامو په باب الزکاة کې ليکلي دي چې په زکاة او نذر وغيره کې قيمت ورکول جائز دي. (۲) وهوالموفق

## د منذور په ځای د هغې قيمت ورکول جائز دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ما د يو تکليف د رفع کيدو دپاره نذر منلې وو اوس مسئله دا ده چې که مونږ د هغه څيز په اندازه قيمت ستاسو په خدمت کې مدرسې ته در وليږو نو آيا دا جائز ده؟

بينواتوجروا

المستفتي: رضاء الحق ايف آر او پيښور... ۷ دسمبر ۱۹۶۹ء

**الجواب:** د نذر په ځای د هغې قيمت ورکول جائز دي.

في الدرالمختار: وجاز دفع القيمة في زکوٰة وعشر وخراج وفطرة ونذر، وفي ردالمحتار ۲: ۲۳ (قوله ونذر) کان نذران يتصدق بهذا الدينار فتصدق بقدره دراهم او

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: فا فادان عدم الصحة لکون الصيغة المذکورة لا تدل على النذر اى لان قوله ذبحت شاة وعد لا نذر ويؤيده ما فى البزازية لو قال ان سلم ولدى اصوم ما عشت فهذا وعد لکن فى البزازية ايضاً ان عوفيت صمت کذا لم يجب مالم يقل لله على وفى الاستحسان يجب، ولو قال ان فعلت کذا فانا احج ففعل يجب عليه الحج.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۷۶ مطلب فى احکام النذر)

۲) وفى الهندية: ويجوز دفع القيم فى الزکاة عندنا وکذا فى الکفارات وصدقة الفطر والعشر والنذر کذا فى الهداية.

(فتاوى عالمگيرية ۱: ۱۸۱ مسائل شتى الفصل الثانى فى العروض)

بهذا الخبز فتصدق بقيمته جاز كذا فى الفتح القدير(۱)۔ وهو الموفق

## د منذور نه خپله ناذر او د هغه ښځې بچې خوراک نه شي کولې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې نذر کونکی د خپل نذر کړې شوې څیز نه خوراک کولې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** قمر الزمان دوسهره چارسده

**الجواب:** د نذر نه ناذر خوراک نه شی کولې او نه یې په خپل ښځې او بچو خوړلې شی. کما فی ردالمحتار ۷۹/۲ (۲) وهو الموفق

## د ښځې خوی ته د نذر پیسې ورکول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د یوې زنانه سره نکاح وکړه او هم دغه شان د زنانه یو ماشوم فیروز نومی د بل خاوند نه دې که زید یو څیز نذر کړی نو آیا دا فیروز ته ورکولې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** فضل معبود جندول معیار ..... ۵ دسمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** فقهاء کرامو چې څومره قواعد لیکلې دی نو د هغې په رڼا کې دې فقیر هلک ته زکاة، عشر، نذر او فطرانه ورکول جائز دی. (۳). وهو الموفق

---

۱) (الدر المختار مع ردالمحتار ۲:۲۴ باب زكاة الغنم)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله مصرف الزكاة والعشر)... وهو مصرف ايضا لصدقة الفطر والكفارة والنذر وغير ذلك من الصدقات الواجبة كما فى القهستاني.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۶۴ باب المصرف)

۳) قال العلامة ابن عابدين: وقيد بالولاد لجوازه لبقية الاقارب كالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء... ويجوز دفعها لزوجة ابيه وابنه وزوج ابنته تاتر خانية.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۶۹ باب المصرف)

## فقیر ورور ته نذر یا د هغې قیمت ورکول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما پلار صاحب د حج په دوران کې زمونږ نه جدا شو او ورك شو، ۲۲ ورځې تیرې شوې دی، پدې دوران کې ما او ښځې مې نذر وکړه چې که زمونږ پلار محترم ملاؤ شو نو یو ګډ او یو چیلې به صدقه کوم، بیا پلار صاحب ملاؤ شو بیا یو انتهائی فقیر او غریب ورور دې خپل کور او ځمکه هم نه لری بلکې ما سره یوځای دې آیا مونږ د دې منختې رقم هغه ته ورکولې شو؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: حاجی یوسف ایبټ آباد... ۲۳ جمادی الثانی ۱۴۰۳ھ**

**الجواب:** که ستا دا ورور غریب او مسکین وی نو ته دا نذر یا د دې قیمت هغه ورور ته ورکولې شی. (۱) **وهوالموفق**

...

(۱) قال العلامة ابن عابدين : وكذا كل صدقة واجبة كالفطرة والنذر والكفارات... وقيد بالولاد لجوازه لبقية الاقارب كالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء بل هم اولیٰ لانه صلة وصدقة۔ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۶۹ باب المصرف)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوٰی فریدیه

(شپږم جلد)

# کتاب الوقف

.........

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

## فتاویٰ فریدیه

# کتاب الوقف

قال رسول الله ﷺ:

من اخذ من الارض شيئًا بغير حقه

خسف به يوم القيٰمة الى سبع ارضين.

(رواه البخاری)

........

# کتاب الوقف

## د وقف د ثبوت دپاره د مالک اقرار او د غیر مالک دپاره شهادت ضروري دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دوه سړو خپل مینځ کې ځمکه سره بدله کړه او قبضه هم وکړې شوه د دې نه پس چې چا ځمکه بدله کړه د هغوی ضامن د دې ځمکې مالکان جوړېږي او تقريبا پنځوس کاله غائب پاتې شوې دی په هغې کې یو سړې قبرستان ته نژدې دې هغه که وائی چې دا ځمکه زما پلار د قبرستان دپاره وقف کړې ده، د دومره مودې تیریدلو باوجود د وقف دا دعوی صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: میان عبدالوهاب منړه کودر ضلع دیر ... ۱۰ ذیقعده ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** که دا اقرار والا مالک وی ( المرءیؤخذ باقراره )(۱) دا اصل په بناء وقف صحیح دې او که مالک نه وی نو د شهادت نه بغیر نا منظور دې **وهوالموفق**

## د وقف د وصیت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما پلار د وفات نه مخکې وصیت کړې وو چې زما د جائیداد نه په لس مرلې په ځمکه باندې مسجد تعمیر وشو اوس هغوی وفات شوې دې کوم ځای کې چې زمونږ ځمکه ده هلته کورونه کم دی او ورسره یو مسجد هم موجود دې اوس که د دې لس مرلې ځمکې قیمت په مسجد باندې خرچ کړې شی نو آیا په دې سره به زمونږ د پلار صاحب ذمه فارغه شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: جمشید شیوه صوابۍ مردان .... ۸ اګست ۱۹۸۳ء

---

۱) وفی المجلة: المرأ موآخذ باقراره- (شرح المجلة ۲۲۶:۱ ماده: ۷۹)

**الجواب:** لس مرلې نه معلوم دې او نه شائع بلکې یو مجهول څیز دې پس دا وقف د عدم تحقق شراط د وجې نه غیر صحیح دې، خو که په وارثانو کې نابالغ او غائب نه وی نو د ټولو وارثانو په اجازت سره د دې زمکې په بل طرف کې خرچ کول (تبرعا) صحیح دی، قال فی شرح التنویر ۲/۱۳۳،وان یکون قربة فی ذاته معلوما(۱) وبمعناه فی وقف الهندیة(۲) وهوالموفق

## د واقف وقف شوې څیز دوباره اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې وقف کوونکې د وقف کولو نه پس خپل وقف شوې ځای قیمتا دوباره اخستلې شی؟ که جائز وی نو د هغې قیمت په مسجد کې لګول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل معبود تنګی معیار جندل... ۳ستمبر۱۹۷۹ء

**الجواب:** د وقف شوي څیز خرڅول صحیح نه دی، لخروجه عن ملك الواقف فی المختار(۳) وهوالموفق

## باقاعده وقف شوې ځمکه نه شی واپس کیدې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د ځمکې یوه حصه د مدرسې دپاره یو مهتمم ته وقف کړه، وروستو هغه د څه وجې نه مثلا

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۹۴ مطلب قد یثبت الوقف بالضرورة)

۲) وفی الهندیة: ومنها عدم الجهالة فلو وقف من ارضه شیئاً ولم یسمه کان باطلاً۔
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۳۵۵ الباب الاول کتاب الوقف)

۳) وفی الهندیة: وعندهما حبس العین علی حکم ملک الله تعالیٰ علی وجه تعود منفعته الی العباد فیلزم ولا یباع ولا یوهب ولا یورث کذا فی الهدایة وفی العیون والیتیمة ان الفتویٰ علی قولهما الخ۔
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۳۵۰ اول کتاب الوقف)

د بدعتی کیدو د وجې نه یا د څه الزام د وجې نه وقف لره واپس کول غواړی آیا دا رجوع صحیح ده؟ بینواتوجروا

**المستفتی: داؤد شاه**

**الجواب:** که دا حقیقت وی چې زید باقاعده وقف کړې وي نو زید دا وقف نه شی اخستلې، یدل علیه ما فی الهندیة: ۲: ۳۶۲ وعندهما حبس العین علی حکم ملك الله تعالیٰ علی وجه تعود منفعته الی العباد فیلزم ولا یباع ولا یوهب ولا یورث کذا فی الهدایة وفی العیون والیتیمة ان الفتوی علی قولهما کذا فی شرح ابی المکارم للنقایة(۱) وفی الدرالمختار: فیلزم فلا یجوز ابطاله ولا یورث عنه وعلیه الفتوی ابن الکمال هامش ردالمحتار۳: ۴۹۵(۲)۔ وهوالموفق

## په مسلم یا مبرهن وقف باندې د ملکیت دعوی صحیح نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ قبرستان د ۱۹۳۷ء نه وقف شوې دې خو یو سړې دعویدار دې چې دا زما ملکیت دې د دې دعوې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

**المستفتی: مولانا شاد محمد حقانی شبقدر چارسده... ۲ ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ**

**الجواب:** د کومې خمکې موقوفه کیدل چې تسلیم شده یا د شهادت نه ثابت وی نو په هغې کې د مکان وغیره جوړول ممنوع او دعوی د ملکیت ناجائز ده. لان المخالفة عن شرائط الوقف کالمخالفة عن النص(۳)

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۳۵۰ اول کتاب الوقف)

۲) (الدرالمختار علیه هامش ردالمحتار ۳: ۳۹۲ اول کتاب الوقف)

۳) قال العلامة ابن عابدین: وما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص وهو حکم لا دلیل علیه سواء کان نصه فی الوقف نصا او ظاهرا،... وهذا موافق لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه... [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

ولان الوقف لایملك(۱) صرح به فی کتب الفقه، وهوالموفق

## د سکول او سینما دپاره د ځمکې وقف کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سکول دپاره د ځمکې د وقف کولو څه حکم دې؟ هم دغه شان د سینما دپاره د ځمکې ورکولو څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی حکمت الله فاضل حقانیه...... ۳۱ جنوری ۱۹۸۷ء

**الجواب:** سکول اګر چې بذات خود د عصری علومو مرکز دې خو د دې ماحول کې بد تهذیب هم ښودلې شی. په خلاف د سینما کې چې هغه سراسر ګناه او ګندګی ده پس د سینما دپاره وقف کونکې د انسانی نسل دپاره تباه کن دې او وقف کونکې د شرابی انګور والا باغ لره خروب کونکې دې (۲) وهوالموفق

---

بقیه ازحاشیه گذشته] کما صرح به فی شرح المجمع للمصنف.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۹۷ مطلب ما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص)

۱) قال العلامة الحصكفی: فاذا تم ولزم لا يملك ولا يملّك ولا يعار ولا يرهن.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۴۵۶ کتاب الوقف)

۲) قال العلامة محمد خالد الآتاسی: درء المفاسد اولی من جلب المنافع ای رفعها وازالتها، فاذا تعارضت مفسدة ومصلحة، فدفع المفسدة مقدم فی الغالب، لان اعتناء الشرع بالمنهیات اشد من اعتنائه بالمأمورات لما يترتب عليها من الضرر المنافی لحكمة الشارع فی النهی ولذا قال ﷺ اذا امرتكم بشيئ فاتو منه ما استطعتم واذا نهيتكم عن شيئ فاجتنبوه وفی الكشف حديث: ترک ذرة مما نهی الله عنه خير من عبادة الثقلين، مجامع.
(شرح المجلة مادة: ۴۰، ۱:۷۰) ...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د مړي په متروکه ځمکه کې وقف او غیر وقف کې د وارثانو اختلاف

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی وفات شوې دې د هغه نه په میراث کې څه ځمکه پاتې شوه، اوس په وارثانو کې یو وارث وائی چې هغه دا ځمکه په خپل ژوند کې وقف کړې وو او باقی وارثان انکار کوی نو په دې صورت کې به شرعی فیصله څه وی.

المستفتی: سعید انور کوهاټ

**الجواب:** واضحه دې وی چې کله یو وارث دا اقرار وکړی چې دا ترکه (ځمکه) موقوف دې او باقی وارثان د دې نه انکار وکړی نو د دې اقرار کوونکی حصه به موقوف شمارلې شی او د نورو وارثانو حصه به موقوف نه وی، بلکې دا مملوک ده. لما فی الهندیة ۲: ۴۳۳ ولو اقر بالوقف (الی ان قال) وان کان مع المقر وارث آخر یجحد ذلك کان نصیب الجاحد من هذه الارض للجاحد یفعل ما یشاء ونصیب المقر یکون وقفا علی ما اقر به کذا فی فتاوی قاضی خان (۱).

وهو الموفق

## د مړی د خاورې کیدو نه پس مقبره باندې د کروندې او ونو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د قبرستان په ځمکه باندې څومره موده پس پورې زراعت جائز دې؟ بله دا چې د دې ځمکې نه ونې پرې کول جائز دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ادریس

---

بقیه از حاشیه گذشته]

وفی الهندیة: واما شرائطه... ومنها ان یکون قربة فی ذاته وعند التصرف فلا یصح وقف المسلم اوالذمی علی البیعة والکنیسة او علی فقراء اهل الحرب کذا فی النهر الفائق۔

(فتاوی عالمگیریة ۲: ۳۵۳ کتاب الوقف الباب الاول)

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۴۴۲ الباب الثامن فی الاقرار)

**الجواب:** چې کله د تحری نه معلومه شی چې مړی خاورې شی نو د هغې نه پس کرونده وغیره جائز ده، کما فی الدر المختار: کما جاز زرعه والبناء علیه اذا بلی وصار ترابا زیلعی (هامش رد المحتار ۱/۸۴۰) (۱) او که مقبره موقوف وی نو ونې دې د مقبرې په ضروریاتو کې خرج کړې شی، او که مملوک وی نو مالک ئې باقاعده په خپلو ضروریاتو کې خرج کولې شی، والتفصیل فی الهندیة ۲/۳۸۳،۳۸۵،۳۸۶ (۲) بینوا توجروا

## د وقف مشاع حکم او د مسجد دپاره د وقف شوې ځمکې د اخستلو او خرڅولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د مشترکه ځمکې وقف صحیح دې یا نه؟

۲: که یو سړې د مسجد دپاره ځمکه وقف کړی او بنیادونه کیږدی خو هغې سره بل مسجد جوړ کړې شو او اوس هغه واقف وائی چې که زه دا وقف شوې

---

۱) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۶۶۲:۱ مطلب فی دفن المیت)

۲) وفی الهندیة: مقبرة علیها اشجار عظیمة فهذا علی وجهین اما ان کانت الاشجار نابتة قبل اتخاذ الارض مقبرة او نبتت بعد اتخاذ الارض مقبرة ففی الوجه الاول المسألة علی قسمین اما ان کانت الارض مملوکة لها مالک او کانت مواتا لا مالک لها واتخذها اهل القریة مقبرة ففی القسم الاول الاشجار باصلها علی ملک رب الارض یصنع بالاشجار واصلها ما شاء... اما ان علم لها غارس اولم یعلم ففی القسم الاول کانت للغارس وفی القسم الثانی الحکم فی ذلک الی القاضی ان رأی بیعها وصرف ثمنها الی عمارة المقبرة فله ذلک کذا فی الواقعات الحسامیة... سئل نجم الدین فی مقبرة فیها اشجار هل یجوز صرفها الی عمارة المسجد قال نعم ان لم تکن وقفا علی وجه آخر قیل له فان تداعت حیطان المقبرة الی الخراب یصرف الیها او الی المسجد الخ. (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۷۳، ۴۷۶، ۴۷۴ المسائل التی تعود الی الاشجار فی المقبرة)

ځمکه خرڅولو سره په بل مسجد یامدرسه کې خرچ کړم نو جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: مفتی بدر منیر حقانی بټ خیله امانډره ... ۱۱ دسمبر ۱۹۸۳ء

**الجواب:** ۱: وقوف مشاع د مدرسې او مسجد دپاره اتفاقا صحیح نه دې او د نورو امورو دپاره مختلف فیه دې او د قواعد په رڼا کې عدم جواز راجح دې کما فی الهندیة ۲: ۳۷۲ وقف المشاع المحتمل للقسمة لایجوز عند محمد وبه اخذ مشائخ بخاری وعلیه الفتوی کذا فی السراجیة والمتأخرون افتوابقول ابی یوسف انه یجوز وهو المختار کذا فی خزانة المفتیین واتفقا علی عدم جعل المشاع مسجدا أو مقبرة مطلقا، انتهی ما فی الهندیة(۱) وفی ردالمحتار ۱: ۴۵۷ لفظة الفتوی آکد وابلغ من لفظة المختار(۲).

۲: دا سوال مجمل دې دا معلومات وکړئ چې هغه سړی د وقف الفاظ ویلې دی یا نه؟ تعین بقعه واره (بنیاد) کړې دې یا نه؟ که جواب په اثبات کې وی نو بیع به ناجائز وی. (۳) وهوالموفق

## د وقف شوي مقبرې د ونو خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته یو وقف مقبره ده چې په هغې کې ځنګل جوړ شوې دې اوس بعض خلقو د هغې د ونو د خرڅولو مشوره راکړې ده آیا د وقف شوي مقبرې ونې خرڅول جائز دی؟ دغه شان به د دې پیسو مصرف څه وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالعزیز وزیرستان ..... ۹ جمادی الثانیة ۱۴۰۱ هجری

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۳۶۵ فصل فی وقف المشاع الباب الثانی)

۲) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۳۶۲ مطلب لفظة الفتوی آکد الخ)

۳) وفی الهندیة: اما حکمه... متی صح الوقف... حتی لا یملک بیعه ولا یورث عنه. (فتاوی عالمگیریة ۲: ۳۵۲ الباب الاول کتاب الوقف)

**الجواب:** مقامی حاکمان د وقف شوي مقبرې ونې خپله خرڅولې شي او د هغې نه حاصل شوی رقم لره د هغه مقبرې په توسیع باندې خرچ کولې شي. کما فی الهندیة ۲: ۴۵۵،۴۵۴ وفی القسم الثانی المسئلة علی قسمین اما ان علم لها غارس اولم یعلم... وفی القسم الثانی الحکم فی ذلک الی القاضی ان رأی بیعها وصرف ثمنها الی عمارة المقبرة فله ذلک کذا فی الواقعات الحسامیة(۱)۔ وهوالموفق

## په جنازګاه کې د برنډې د جوړولو د پاره د مقبرې د ونو د خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مونږ په جنازګاه کې برنډه جوړول غواړو ځکه چې د بارانونو په ورځو کې ډېر سخت تکلیف وی د ټول قوم مشوره دا ده چې په مقبره کې ډیرې زړې او بیکاره ونې دی لهذا هغه دې خرڅې کړې شي او هغه پیسې دې په برنډه باندې خرچ کړې شي نو د دې څه حکم دې. بینواتوجروا

المستفتی: مولانا فخر الدین غورغشتی اټک.... ۲۲ ستمبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** که دا ونې په دې وقف شوې ځمکه کې خپله راختلې وی یا د هغې لګونکې نامعلوم وی نو د حاکم یا بااثر خلقو په اجازت سره د هغې خرڅول او د هغې نه حاصل شوې رقم د مصالح مقبره په تعمیر کې خرچ کول جائز دی. کمافی الهندیة۲/۳۵۴-۳۵۵ عن الواقعات الحسامیة(۲) وهوالموفق

---

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۴۷۴: ۲ الباب الثانی عشر فی الرباطات والمقابر)

۲) وفی الهندیة: وفی القسم الثانی: الاشجار باصلها علی حالها القدیم وفی الوجه الثانی المسألة علی قسمین اما ان علم لها غارس اولم یعلم ففی القسم الاول کانت للغارس وفی القسم الثانی الحکم فی ذلک الی القاضی ان رأی بیعها وصرف ثمنها الی عمارة المقبرة فله ذلک کذا فی الواقعات الحسامیة۔ (فتاویٰ عالمگیریة ۴۷۴: ۲ الباب الثانی عشر فی الرباطات [illegible] والخانات)

## د مقبرې د ونو ګټه په مقبره او مسجد کې د خرچ کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مقبره کې ډیرې ونې راختلې دی د کلی خلقو هغه خرڅې کړې دی د هغو پیسو په سکول او مسجد باندې خرچ کول څنګه دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** نبی الله بن حضرت الله ... ۱۸ جون ۱۹۷۶ء

**الجواب:** که په دې مقبره (موقوفه) کې د ونو لګونکې معلوم وی نو دا ونې دې د مقبرې په ضروریاتو کې خرچ کړې شی او د عدم ضرورت په صورت کې دې په مسجد کې خرچ کړې شی او که لګونکې معلوم نه وی نو بیا دې په مسجد کې خرچ کړې شی. فلیراجع الی الهندیة ۴۵۳/۲-۴۵۶ یعنی چې کله د مقبرې دپاره ضرورت نه وی. (۱) او چونکې سکول یو غیر مایوس څیز دې په هغې کې د دې خرچ کول یو خلاف قاعده امر دې. (۲) **وهوالموفق**

---

(۱) وفی الهندیة: مقبرة علیها اشجار عظیمة فهذا علی وجهین اما ان کانت الاشجار ثابتة قبل اتخاذ الارض مقبرة او نبتت بعد اتخاذ الارض مقبرة ففی الوجه الاول المسألة علی قسمین... وفی القسم الثانی الحکم فی ذلک الی القاضی ان رأی بیعها وصرف ثمنها الی عمارة المقبرة فله ذلک کذا فی الواقعات الحسامیة (وبعد صفحة) سئل نجم الدین فی مقبرة فیها اشجار هل یجوز صرفها الی عمارة المسجد قال نعم ان لم تکن وقفاً علی وجه آخر قیل له فان تداعت حیطان المقبرة الی الخراب یصرف الیها او الی المسجد قال الی ما هی وقف علیه ان عرف وان لم یکن للمسجد متول ولا للمقبرة فلیس للعامة التصرف فیها بدون اذن القاضی کذا فی الظهیریة.
(فتاویٰ عالمگیریة ۴۷۶، ۴۷۳: ۲ المسائل التی تعود الی الاشجار فی المقبرة الخ)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: وظاهره انه لا یجوز صرف وقف مسجد خرب الی حوض وعکسه وفی شرح الملتقی یصرف وقفها لاقرب مجانس لها، ط.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۴۰۷ مطلب فی نقل انقاض المسجد ونحوه)

## د عیدګاه په دیوال باندې د چنده ورکونکو نومونه

## او د هغوی د ورکړې شوې پیسو لیکلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته عوامو یوه عیدګاه تعمیر کړې ده د تعمیر ناظم د عیدګاه په دیوال باندې د چنده ورکونکو نومونه او د هغوی د پیسو مقدار لیکلې دې ایا په قرآن او سنت او شریعت محمدی ﷺ کې دا جائز دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد سلیم هیډ ماسټر بهلا کر کهوټه راولپنډی..... ۲۶ جنوری ۱۹۶۹م

**الجواب:** که ریا او شهرت مقصود وی نو ناجائز ده او که همت افزائی او د پیسو په وصولۍ باندې خبرول مقصود وی نو جائز ده. (۱) **وهوالموفق**

## د عام لارې تنګول یا ورانول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو عام لاره ده چې په هغې باندې څاروی او عام خلق تلل راتلل کوی او په هغې باندې څو کورونه هم آباد دی اوس یو سړې په زوره دا لاره ورانول غواړی چې کلیوال وغیره په تکلیف کې اخته شی آیا دا لاره تنګول یا ورانول جائز دی. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالقهار

**الجواب:** عام لاره خرابول خصوصا چې کله د کلی خلقوته ضرروی ناجائز دی، وفی الهندیة ۶: ۴۳ وفی الجامع الصغیر: رجل اخرج الی الطریق کنیفاً اومیزاباً اوبنی

---

(۱) قال الشیخ ثناء الله الفانی فتی: (لا تنفقوا الا ابتغاء وجه الله) وهذا یقتضی تحریمة الانفاق اذا لم یکن فیه ابتغاء وجه الله فانه اضاعة المال وذلک حرام.
(التفسیر المظهری ۱:۳۷۷ سورة البقرة پاره:۳)

قال فی عمدة القاری: من بنی مسجداً قال بکیر حسبت انه قال یبتغی به وجه الله بنی الله له مثله فی الجنة. (عمدة القاری ۴:۳۱۱)

دکانا او جرصنا فلکل واحد من عرض الناس ان يقلع ذلك ويهدمه اذا فعل ذلك بغير اذن الامام اضر ذلك بالمسلمين اولم يضر الخ(۱)۔ وهوالموفق

## د کانو په غونډۍ باندې د مسجد يا قبر
## تك وى نو د هغې څه حكم دې؟

**سوال:** څه فرمائى علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې زمونږ د ځمكې سره متصل څو مرلې زمونږ نوره ځمكه ده چېرته چې يو زوړ قبر او د كانو يو غونډۍ ده د كلى د يو بوډا سړى وينا ده چې په يو زمانه كې دلته مسجد وو دا ځمكه وكنستل شوه خو هلته د قبرونو هيڅ آثار ښكاره نه شو نو آيا مونږ دا ځمكه او دا غونډۍ استعمالولې شو يا نه؟ **بينواتوجروا**

المستفتى: عبدالله ولوله د گړهي حبيب الله په لار ... ۲۳ جمادی الاولی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د قواعدو په رڼا كې د دې ځمكې او د دې كانو استعمال په ذاتى امورو كې جائز دې خو كه په دې خاص ځاى كې د مسجد كيدل باقاعده ثابت شي نو دا خاص ځاى به هميشه د مسجد په حكم كې وى، **كذافى وقف شرح التنوير**(۲) **وهوالموفق**

## د هندوانو پرېښودل شوى جائيداد وغيره
## د بيت المال او حكومت ملكيت دې

**سوال:** څه فرمائى علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې په پاكستان كې متروكه وقف جائيدادونه (د هندوانو) كوم چې د محكمه اوقاف په تحويل كې

---

۱) (فتاوی عالمگیریة جلد: ۴۰ الباب الحادی عشر فی جنایة الحائط والجناح الخ)

۲) قال العلامة الحصكفی: ولو خرب ماحوله واستغنى عنه يبقى مسجدا عند الامام والثانى ابدا الى قيام الساعة وبه يفتى حاوى القدسى۔
(الدر المختار على هامش ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فى احكام المسجد)

دی د هغه سرکاری محکمه اوقاف په املاک باندې د کورونو وغیره قیام بغیر د اذن او اجازت نه څه حکم لری؟ بینواتوجروا

المستفتي: محبوب الرحمن رحماني جامعه فاروقیه رحمانیه اټک ..... ۳۱ مئی ۱۹۸۶ء

**الجواب:** کوم هندوان چې هندوستان ته تلی دی او هلته ئې مستقل استوګنه اختیار کړې ده د هغوی املاک د بیت المال او حکومت حق دې په هغې کې صرف د حکومت د خاوندانو تصرف جائز دې. قال الله تعالیٰ: وما افآء الله علی رسوله منهم فما اوجفتم علیه من خیل ولا رکاب ولکن الله یسلط رسله علی من یشآء، والله علی کل شيئ قدیر(۱). وهوالموفق

## چې د وقف مصرف ختم شی نو نزدې طرف ته مصرف جوړ کړې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید نیکه ګانو په مسجد کې د اوبو د ویستلو دپاره د لرګی ارټ لګولې وو او دې لوټکو والا ارټ دپاره ئې پنځه کناله او درې مرلې ځمکه وقف کړې وه چې د هغې لیکل د مال په کاغذاتو کې موجود دې چې د هغې په ګټې سره به مو د ارټ د مرمت وغیره انتظام کولو د هغه مشرانو د وفات نه پس دا ځمکه د هغوی د وارثانو په لاسونو کې راغله او دا حضرات هم د هغه ځمکې د ګټې نه د اوبو انتظام کوی اوس چونکې د بجلئ پمپ لګیدلې دې او ورسره د مسجد انتظامیه په اصرار باندې د لرګی ارټ د اوسپنې په ارټ باندې بدل شوې دې چې د هغې نه د بجلئ نه کیدو په صورت کې اوبه راویستلې شی چونکې په پمپ سره او د اوسپنې په ارټ سره د لوټکو وغیره سلسله ختمه شوه، لهذا د مسجد انتظامیه د زید نه مطالبه وکړه چې اوس تاسو دا ځمکه په اجاره باندې ورکړئ یا د ځمکې د ګټې نه حصه راکړئ چې په هغې سره د مسجد باقی تعمیری کارونه وکړو، سره د دې چې د هغه بزرګانو د وینا مطابق هغوی ته د بجلئ کامل بل ادا کول پکار دی خو هغه د ځمکې د ګټې نه ډیر زیات دې په

---

(۱) (سورة حشر آیت: ۶ پاره: ۲۸)

دې وجه کميتی د بل په وصولولو باندې اصرار نه کوی، د دې باوجود زيد وغيره وارثان په دې باندې اصرار کوی چې مونږ د زمکی د لوټکی وغيره ذمه دار يو نه اجاره ورکوو او نه به د ځمکې نه حصه ورکړو، او ځمکه به زمونږ په تصرف کې وی اوس د دې شرعی حکم څه دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: اراکين مسجد شيشم تور ډهير صوابی... ۵ جمادی الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په عرف باندې د نظر کولو نه معلوميږی چې دا معامله وقف ده. ونظيره ما فی البحر ۵: ۱۹۱ **اشتروا من غلة داری هذه کل شهر بعشرة دراهم خبزاً وفرقوه علی المساکين صارت الدار وقفاً**(۱) او دا قاعده ده چې کله د وقف مصرف منقطع شی نو دويم نږدې طرف ته مصرف جوړ کړې شی، **کما فی الشامية** ۵۱۳/۳، **وفی الشرح الملتقی يصرف وقفها لاقرب مجانس لها**(۲) **فافهم**، خلاصه دخبرې دا ده چې دا وارثان دې د واقف ددې زمکی حاصلات په دې اوبو پمپ باندې صرف کړی چې وقف کونکي ته ثواب ورسيږی. **وهوالموفق**

## په مشترکه ځمکه کې وقف صحيح دې او د امام ابويوسف رحمة الله عليه قول مفتی به دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يوه مشترکه ځمکه ده چې په هغې لاندې ليکلې شوې افراد شريک دی، عرب دين نصف، داور شاه، احمد خان د هغوی څلور لورګانې عمرې، رحمتې، عيسی ګل، اوس عرب دين په خپل نيم جائيداد کې شپږ قدمه ځمکه او د اوبو د نالئ دپاره پريښودلو سره باقی ځمکه د عيدګاه دپاره وقف کړې ده خو قوم په هغه شپږ قدمه باندې هم قبضه کولو سره غصب کړو، لهذا عرب دين د باقی

---

۱) (البحر الرائق ۵: ۳۱۹ کتاب الوقف)

۲) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۴۰۷ مطلب فی مالو خرب المسجد او غيره)

ځمکې وقف واپس واخستلو داور شاه خپله حصه مکمل وقف کړې ده د احمد خان يوې لور خپله حصه وقف کړې دې، عمر خان هم خپله حصه وقف کړې ده. خو خلقو په مشترکه ټولو زمکو کې عيدګاه جوړوه کړه او په هغې کې د اخترونو او جنازې لمونځونه کوی خلقو په عيدګاه باندې کافی خرچ کړې دې باقی حصه دارو نه وقف کړې دې او نه ئې د وقف اراده کړې ده نو آيا په هغه ځمکه کې د اختر او جنازې لمونځونه صحيح دی؟ آيا وقف واپس کيدې شی؟ بينواتوجروا

المستفتی: عبدالرحمن تهل کالونکی منګلا ..... ٤ مئی ۱۹٦۹ء

**الجواب:** ۱: کومو شريکانو چې وقف کړې دې د هغوی په حصو کې وقف صحيح دې او د هغوی په حصو کې آبادی کول او د جنازې لمونځ هم جائز دی خو په ټولو کې آبادی کول او دجنازې لمونځ جائز نه دی. فی الدرالمختار: ولايتم الوقف حتی يقبض ويفرز، قال العلامة الشامی ای بالقسمة هذا بيان شرائطه الخاصة علی قول محمد وجعله ابويوسف کالاعتاق واختلف الترجيح والاخذ بقول الثانی احوط واسهل (بحر) وفی الدرر وصدر الشريعة وبه يفتی واقره المصنف([1]). وقال الشامی ۳: ۳۷٦ مع التصريح فی کل منهما بأن الفتوی عليه لکن فی الفتح ان قول ابی يوسف اوجه عند المحققين([2]) (وفيه ۱: ۲۵۵) وفی الواقعات بنی مسجدا علی سور المدينة لا ينبغی ان يصلی فيه لانه حق العامة فلم يخلص لله تعالٰی کالمبنی فی ارض مغصوبة([3]).

۲: چونکې وقف (په قول د امام ابويوسف رحمة الله عليه) صحيح او لازم شوې دې لهذا د هغې نه رجوع صحيح نه ده،

---

[1] (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۰۰ مطلب فی شروط الوقف علی قولهما)
[2] (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:٤۰۱ مطلب التابيد معنی شرط اتفاقا)
[3] (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۳۸۱ مطلب الصلاة فی الارض المغصوبة)

وفی الدر المختار: ویزول ملکه عن المسجد والمصلی (قال الشامی) شمل مصلی الجنازة ومصلی العید) بالفعل وبقوله جعلته مسجدا عند الثانی، قال الشامی ۱: ۳۷۰ وفی الدر المنتقی وقدم فی التنویر والدرر والوقایة وغیرها قول ابی یوسف وعلمت ارجحیته فی الوقف والقضاء(۱)۔ وهوالموفق

## په وقف او مملوك مقبره کښې د تصرف مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې دلته د پنځه شپږ کاله زوړ قبرستان دې چې په هغې کښې نه د قبرونو پوره علامات شته او نه د مړو هډوکی خو څینی پخواني خلك دا معلومات ورکوی چې دا قبرستان دې دا د ښهر ترمینځه واقع ده نو آیا دا قبرستان د سابقه مالکانو په ملکیت کښې باقی دې یا نه، اومالکان په دې کښې څه قسم تصرف کولې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: سلطان محمد دار العلوم اسلامیه لور آلائی بلوچستان ... ۹ مئی ۱۹۸٤ء

**الجواب:** که دا قبرستان موقوف وی نو د حکومت نه اجازت ضروری دې (۲) او که مملوک وی نو ملاک ته حق د تصرف حاصل دې. (۳) وهوالموفق

## د قبرستان دپاره وقف شوې ځمکه او بیا د واپسئ مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې حکومت د ځمکې یوه حصه دپاره د قبرستان، اهل اسلام مقرر او وقف کړې وه، او په

---

۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴۰۵،۴۰۴: ۳ مطلب فی احکام المسجد)

۲) وفی الهندیة: وان لم یکن للمسجد متول ولا للمقبرة فلیس للعامة التصرف فیها بدون اذن القاضی کذا فی الظهیریة۔

(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۷۶ قبیل الباب الثالث عشر فی الاوقاف)

۳) نوټ: یعنی د وقف په صورت کښې د ذاتی تصرف اجازت نشته او صورت د وقف وی خو مړی دفن کول په څه وجه بند کړې شوی وی نو بیا به په دې کښې د مدرسې او جومات جوړولو اجازت وی. (مفتی سیف الله حقانی)

ترلي بل قبرستان کې د ګنجائش نه کیدو په وجه باندې خلقو په هغې کې مړی ښخول شروع کړل او ډیر مړی پکې ښخ کړې شوې دی اوس د انتظامیه بعض اهل کار تقاضه کوی چې په دې ځمکه کې دې نیمه حصه حکومت ته واپس کړې شی چې هغه د هاسټل د تعمیر دپاره استعمال کړې شی، آیا د قبرستان دپاره وقف شوې ځمکه یو فرد یا حکومت واپس اخستلې شی، آیا هغه د نورو مقاصدو لکه (هاسټل وغیره) دپاره استعمالیدلې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: اهالیان نوتهیه جدید وقدیم پشاور صدر ... ۲۵ اګست ۱۹۸٤ء**

**الجواب:** که دا ځمکه د دفن کولو دپاره وقف کړې شوې وی نو ترڅو پورې چې په دې کې د دفن کولو حاجت باقی وی تر هغه وخته پورې به په دې کې نور تصرفات ناجائز دی، **ماخوذازشامی (١) وهوالموفق**

## په زوړ قبرستان کې د مسجد او مدرسې جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې قبرستان زوړ شی اګر چې د قبرونو څه نخښې باقی وی او خر خچر وغیره هلته ګرځیدلو سره بول و براز کوی او خلقو هلته مړی دفن کول بند کړې وی نو آیا په داسې قبرستان کې مسجد یا مدرسه د خلقو د خواهش مطابق جوړول جائز دی؟ ما د فقه په یو کتاب خزانة الروایات کې کتلی دی: **(المسجد اذا خرب ودسر والمقبرة اذا خربت ودسرت فیجوز فی موضعهما ما یشاؤن)** د دې نه علاوه دا ځای اوس

---

١) قال العلامة ابن عابدین: (قوله فلو وقفه السلطان) ای بعد ما صار لبیت المال بموت اربابه وقدمنا ان هذا ارصاد لا وقف حقیقی (قوله عاما) کالمسجد والمقبرة والسقایة ومثله ما وظفه فی مسجد ونحوه للعلماء ونحوهم ممن له حق فی بیت المال فلا یجوز لاحد ابطاله نعم للسلطان مخالفة شرط واقفه بزیادة ونقص ونحو ذلک لا بصرفه عن جهته الی غیر جهته کما مر عند قوله ... لان فیه تعطیل حق بقیة المسلمین.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ٣:٤٦٦ قبیل مطلب فی محاسبة المتولی وتحلیفه)

په محله کې دننه راغلې دې د مسجد او مدرسې ضرورت هم دې نو آیا د
﴿الضرورات تبیح المحظورات﴾ قاعدې په بنیاد دلته مسجد او مدرسه جوړول
صحیح دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی حبیب الله نیو دربند.... ۱۱ دسمبر ۱۹۷٤ء

**الجواب:** په زوړ قبرستان کې مسجد وغیره جوړول جائز دی.

کما فی فتح الملهم ۲:۱۱۸ فان قلت هل یجوز ان تبنی المساجد علی قبور المسلمین قلت قال ابن القاسم لوان مقبرة من مقابر المسلمین عفت فبنی قوم علیها مسجدا لم ار بذلك بأسا(۱) وفی الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱:۸٤ کما جاز زرعه والبناء علیه اذا بلی وصار ترابا(۲).وهوالموفق

**د وقف قبرستان د بدلون په ځای په هغې کې دوباره مړی ښخول غوره دی**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته یو وقف قبرستان دې اوس خلقو دا اتفاق کړې دې چې که شریعت د دې اجازت ورکوی چې مونږ د دې قبرستان د ځمکې تبادله وکړو ځکه چې په بل ځای کې د هغې په ځای دوچند ملاویږی یا د هغې خرڅولو سره د هغې دوچند ځمکه واخستلې شی ځکه چې مونږ ته د قبرستان دپاره زیاته ځمکه پکار ده او اهل قریة د موجوده قبرستان د ډکیدو نه پس دومره وس او طاقت نه لری چې بیا نوې ځمکه واخلی او حال دا چې د شرح الوقایة ۲/٤۱۰ نه معلومیږی د امام ابویوسف رحمه الله په نزد دا استبدال جائز دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی محمود شاه نظام العلوم پنون بنهر.... ۸ مئی ۱۹۸٤ء

**الجواب:** چونکې په صورت مسئوله کې د استبدال شرطونه متحقق نه دی، ﴿وهی ما ذکرت فی الهندیة ۲/٤۰۱، والمعتمد انه یجوز للقاضی بشرط ان یخرج

---

۱﴾ (فتح الملهم بشرح مسلم ۲:٤۱٦ کتاب المساجد ومواضع الصلوٰة)
۲﴾ (الدرلمختار علی هامش ردالمحتار ۱:٦٦۲ مطلب فی دفن المیت)

عن الانتفاع بالكلية الى اخره(۱) لهذا د دې استبدال نه دا غوره ده چې د قبرستان د ډکیدو نه پس دوباره مړي ښخول شروع کړې شي. (۲) وهوالموفق

## د مقبرې خپله راختلې ګیا او وابنه هر سړې استعمالولې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږه یو قاری صاحب دا مسئله بیان کړه چې په قبرستان کومه ګیا (وابنه) وغیره راخیژی د هغې استعمال مطلقا حرام دې او کوم څاروی چې ګیا (وابنه) وخوری د هغې شیدې خوړل حرام دی ترڅې چې د هغې غوښه هم حرامه ده، دا مسئله کوم حده پورې صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ عبدالرشید ارشد

**الجواب:** د مقبرې خپله راټوکیدلې ګیا (وابنه) هر سړې استعمالولې شي

لحدیث: المسلمون شركاء فى الماء والكلاء والنار، رواه ابوداؤد وابن ماجة(۳) وفى شرح المجلة ۶۸۱ لكل واحد ان يعلف حيوانه من الكلاء النابت فى المحل الذى لا صاحب له وان يأخذ منه ويحرز قدر ما يريد، الكلاء النابت فى ملك انسان بدون تسببه وان يكن مباحاً فلصاحبه المنع من الدخول ولكن

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲:۴۰۱ الباب الرابع فيما يتعلق بالشرط فى الوقف)

۲) وفى الهندية: سئل القاضى الامام شمس الائمة محمود الاوزجندى... عن المقبرة فى القرى اذا اندرست ولم يبق فيها اثر الموتى لا العظم ولا غيره هل يجوز زرعها واستغلالها قال لا ولها حكم المقبرة كذا فى المحيط، قوله قال لا: هذا لا ينافى ما قاله الزيلعى فى باب الجنائز من ان الميت اذا بلى وصار ترابا جاز زرعه والبناء عليه، لان المانع هنا كون المحل موقوفا على الدفن فلا يجوز استعماله فى غيره فليتأمل واليحرر.

(فتاوی عالمگیریة ۲:۴۷۱ الباب الثانى عشر فى الرباطات والمقابر والخانات الخ)

۳) (مشكواة المصابيح ۱:۲۵۹ باب احياء الموات والشرب الفصل الثانى)

لطالب الکلاء ان یقول له ان لی فی ارضك حقا فاما ان توصلنی الیه اوتحشه وتدفعه لی(۱)۔ وهوالموفق

## د خپل کور د پاره په موقوفه قبرستان کې لاره جوړول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی خپل پټې د کورونو دپاره خرڅ کړو او د لوی سړک نه ئې خپل کور ته په پنځوس شپیته کلن زوړ قبرستان کې لاره ویستله، آیا شرعا د دې اجازت شته؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: صوفی غلام محی الدین کیملپور........۱۹۷۳ء|۱۱|۱۴

**الجواب:** که سړک سره متصل په موقوفه خمکه کې د بائع حق مرور (د تیریدلو حق) ثابت نه وی نو دا لاره جوړول به ناجائز وی. (۲) لان الموقوف لا یصرف الا لما وقف له(۳) وهوالموفق

---

۱) (شرح المجلة لسلیم رستم باز ۶۸۱:۲ المادة: ۱۲۵۶ احکام الاشیاء المباحة)

۲) یدل علیه ما فی الهندیة: ارض لاهل قریة جعلوها مقبرة واقبروا فیها ثم ان واحداً من اهل القریة بنی فیها بناء لوضع اللبن وآلات القبر واجلس فیها من یحفظ المتاع بغیر رضا اهل القریة او رضا بعضهم بذلک قالوا ان کان فی المقبرة سعة بحیث لا یحتاج الی ذلک المکان فلا بأس به وبعد ما بنی لو احتاجوا الی ذلک المکان رفع البناء حتی یقبر فیه کذا فی فتاوی قاضی خان.

(فتاوی عالمگیریة ۴۶۸:۲ الباب الثانی عشر فی الرباطات والمقابر والخانات)

۳) قال العلامة ابن عابدین: وما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص وهو حکم لا دلیل علیه سواء کان نصه فی الوقف نصا او ظاهراً، وهذا موافق لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه کما صرح به فی شرح المجمع للمصنف.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۴۹۷:۳ ما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص)

## د پخوانۍ جنازګاه د استبدال مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلی کې یوه زړه جنازګاه ده کوم چې اوس په آبادۍ کې دننه راغلې دې اوس زمونږ مقصد دا دې چې دې لره خرڅولو سره د کلی نه بهر ځمکه واخلی، په هغې کې شل کاله جنازې شوې دی اوس هغې لره خرڅولو سره په هغې کې کور یا حجره جوړول څنګه دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالرؤف تدیم ترکۍ صوابۍ... ۹ جنوری ۱۹۷۳ء

**الجواب:** که دا پخوانۍ جنازه ګاه موقوف وی نو بغیر د قاضی یا قائم مقام قاضی (حکمران وغیره) نه د هغې استبدال جائز نه دې (شامی) (۱) او که مملوکه شاملات وی نو ملاک یا د هغوی د وارثانو دپاره د هغې خرڅول څنګه دی. **وهوالموفق**

## په وقف جنازګاه کې کوهې کنستلو سره وقف کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید بعض ځمکه د جنازګاه دپاره وقف کړه او بکر هم په دې جنازګاه کې یو وقف کوهې ویستلو په دې نیت چې خلق به دلته اودس کولو سره د جنازې لمونځ ادا کوی، د ضرورت په وخت به مونځ هم کوی، ورسره به د جنازې دپاره راتلونکی خلق اوبه هم څښی، نو آیا د بکر دپاره هم په دې وقف جنازګاه کې کوهې کنستل جائز وو؟ آیا بکر ته به د کوهی ثواب ملاویږی؟ که په وقف ځمکه کې دا کار ناجائز وو نو آیا حرام یا مکروه او که مباح دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** ماسټر فرمان الله بیکا صوابۍ.... ۲۷ جون ۱۹۷۲ء

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: واما الاستبدال ولو للمساکین آل بدون الشرط فلا یملکه الا القاضی وشرط فی البحر خروجه عن الانتفاع بالکلیة الخ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۴۲۵ مطلب فی شروط الاستبدال)

**الجواب:** چونکې د حافرالبیر (کوهی کنستونکی) عمل او اراده د واقف د عمل او دهغه د ارادې منافی نه ده بلکې حافر د واقف دپاره مکمِل (اسم فاعل من التکمیل) او معاون دې لهذا دواړه امور جائز دی. یدل علیه ما فی الهندیة ۲: ۳۷۱ البقعة الموقوفة علی جهة اذا بنی رجل فیها بناء ووقفها علی تلك الجهة یجوز بلاخلاف تبعا لها الخ(۱) قلت: وجه الدلالة واضح ولم اجده صریحاً. وهوالموفق

## د پخوانی قبرستان په ځمکه باندې د عیدګاه جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلی کې یو زوړ قبرستان دې کوم چې د ډیر زړیدو دوجې نه دهغې قبرونه ختم شوې دی د بارانی علاقه کیدو دوجې نه پکې کندې شوی دی، خلقو ته دومره معلومه ده چې دلته قبرستان وو، خو د یو ډیر عمر والاسړی ته هم یاد نه دی چې دلته څوک دفن کړې شوې وو او حال دا چې د لوئې عمر والاسړې د شپږو شلو کالو دې او ژوندې دې، دې وخت کې دلته هیڅ قبرنشته او د کلی څاروی وغیره څریږی او هلکان پکې لوبې کوی او بوره کلې اهل سنت والجماعت حنفی دیوبندی مسلک لری نو آیا په دې ځمکه باندې عیدګاه جوړول صحیح دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: اهالیان ورنتیان مری..... ۱۱ ستمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** داسې قدیم قبرستان نه عیدګاه جوړول جائز دی یدل علیه ما فی الدرالمختار: کما جاز زرعه والبناء علیه اذا بلی وصار ترابا، هامش ردالمحتار ق ۱: ۸۴۰(۲) وفی فتح الملهم ۲: ۱۱۸ فان قلت: هل یجوزان تبنی المساجد علی قبور المسلمین؟ قلت: قال ابن القاسم لوان مقبرة من مقابر المسلمین عفت فبنی علیها المسجد لم اربذلك بأسا(۳). وهوالموفق

---

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۲: ۳۶۲ الباب الثانی فیما یجوز وقفه وما لا یجوز)
۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۶۲ مطلب فی دفن المیت)
۳) (فتح الملهم ۴: ۱۹ کتاب المساجد ومواضع الصلوٰة)

## په ځمکه کې د انساني هډوکو د راوتلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید په عمر باندې درې جریبه ځمکه خرڅه کړه په هغې کې تقریبا دوه کناله ځمکه بیکاره او غیر آباد ده او په هغې کې د یو نامعلومه شهید مزار هم دې، د شپیتو اویا کالو بوډاګان وائی چې زمونږ د یاد مطابق په دې ځمکه کې هیڅ آبادي نه وه او د پټواری په نقشه کې دا ځمکه خالي او غیر آباد لیکلې شوې ده اوس عمر د دې ځمکې هموار کول شروع کړل او د ځمکې د لاندې نه تقریبا د یو یا دوه فټو په مقدار ژور والی کې یو انسانی هډوکې راوتلو اوس عمر څه وکړی په خپل حال ئې پریږدی که هموار کولو سره ترې پټې وغیره جوړ کړی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمود جان نصرت زئی شبقدر چارسده

**الجواب:** د دې ځای هموار کول جائز دی خو د هډوکو په بل ځای کې دفن کول ضروری دی. فی الدر المختار: کما جاز زرعه والبناء علیه (القبر) اذا بلی وصار تراباً زیلعی (۱) وبمعناه فی الهندیة ۱:۱۷۷ (۲). وفی مجموعة الفتاوی ۳:۴۶ اذا حفر فوجد فیه عظام الموتی لا یحرك عظام الموتی کذا فی الغرائب فقط (۳) قلت فاذا حرکت فتعامل معها معاملة الاجزاء الآدمی. وهو الموفق

## په پخوانۍ وقف شوي مقبره کې د مسجد یا مدرسې د جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته یوه پخوانۍ

---

۱) (الدر المختار مع ردالمحتار ۱:۶۶۲ مطلب فی دفن المیت)

۲) وفی الهندیة: ولو بلی المیت وصار ترابا جاز دفن غیره فی قبره وزرعه والبناء علیه. (فتاوی عالمگیریة ۱:۱۶۷ الفصل السادس فی القبر والدفن)

۳) (مجموعة الفتاوی للکهنوی ۱:۳۴۱ کتاب الجنائز)

زړه مقبره ده د مړو ئې پته نه لګیږي چې د کومې زمانې نه دلته مدفون دي او څوک دي یعنې د دوه درې سوه کالو نه زیاته زړه معلومیږي، اوس مونږ په دې مقبره کې د یو دار العلوم بنیاد ایښې دې او د جامع مسجد او د عیدګاه بندوبست مو هم پکې کړې دې خو د دې ځای څه خلقو مخالفت شروع کړې دې چې دا ناجائز ده او دلته مونځ کول مکروه دي؟ بینواتوجروا

المستفتی: علی اکبر فاضل حقانیه ..... ۱۸ ستمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** په زړه مقبره کې مسجد او مدرسه جوړول جائز دي کما فی فتح الملهم ۲:۱۱۸ قال ابن القاسم لوان مقبرة من مقابر المسلمین عفت فبنی قوم علیها مسجداً لم ار بذلك بأساً، وذلك لان المقابر وقف من اوقاف المسلمین لدفن موتاهم لا یجوز لاحد ان یملکها فاذا درست واستغنی عن الدفن فیها جاز صرفها الی المسجد لان المسجد ایضاً وقف من اوقاف المسلمین لا یجوز تملیکه لاحد فمعناهما علی هذا واحد، وذکر اصحابنا ان المسجد اذا خرب ودثر ولم یبق حوله جماعة، والمقبرة اذا عفت ودثرت تعود ملکا لاربابها (قلت لا یفتی به فی المسجد) (۱) فاذا عادت ملکا یجوز ان یبنی موضع المسجد داراً وموضع المقبرة مسجداً وغیر ذلك فاذا لم یکن لها ارباب یکون لبیت المال قاله العینی فی شرح

---

(۱) بین القوسین عبارت د فتح الملهم نه دې بلکې دا د حضرت مفتی صاحب د طرفه د تنبیه په طور اضافه ده چه هرکله یوځل جومات جوړشي نو بیا هغه دوباره ملکیت نه شي جوړیدې او همدا مفتی به قول دې، کما قال العلامة الحصکفی: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عند الامام، والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتی حاوی القدسی، وقال ابن عابدین: فلا یعود میراثا ولا یجوز نقله ونقل ماله الی مسجد آخر سوآء کانوا یصلون فیه اولا وهو الفتوی حاوی القدسی واکثر المشائخ علیه مجتبی وهو الاوجح، فتح.
(الدر المختار مع ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

البخاري(۱) وفي الدرالمختار: جاز زرعه والبناء عليه اذا بلی وصار تراباً زيلعي، هامش الرد(۱: ۶۰۲)(۲).

**نوټ**: چې کله واقفين يا ملاک معلوم نه وي نو د تصرف او جواز دپاره د حاکم عدم اعتراض ضروري دې. وهوالموفق

## په وقف مسجد کې د غوزانو (چارمغزو) د ونې ملکيت او د موقوف کيدو مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی خپله ځمکه د مسجد د تعمير دپاره وقف کړه او اهل محله د مسجد تعمير وکړو اوس هغه ځای د واقف د کور سره متصل دې او په مينځ کې د مسجد يو وړوکې شان صحن دې، پس واقف په دې خالی ځای کې د خپل ديوال سره د غوزانو اونه ولګوله کومه چې ښه ميوې ورکوی اهل محله په دې اونه باندې دعوی کوی چې دا وقف دې لهذا دا د اهل محله حق دې او واقف کوم چې خپله کرلې، او دې وائی چې دا اونه ما د ځان دپاره لګولې ده او هم زه د دې مالک يم اوس تپوس دې باره کې کوم چې دا ونه وقف ده او که د واقف ملکيت دې؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوی عبدالحئ خطيب جالګل بټل مانسهره.... ۲۱ جنوری ۱۹۶۹ء

**الجواب**: که واقف د وقف د نيت سره دا ونه کرلې وی نو دا ونه وقف دې که وائی چې ما د دې ونې د وقف کيدو اراده نه وه کړې نو د هغه قول به منظور وی، لانه لايعلم الامن جهته(۳) وهوالموفق

---

۱) (فتح الملهم بشرح صحيح مسلم ۴: ۱۶،۱۷ کتاب المساجد ومواضع الصلاة طبع بيروت)

۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۶۶۲ مطلب فی دفن الميت)

۳) وفي الهندية: رجل وقف ضيعته علی جهة معلومة...[بقيه حاشيه برصفحه آئنده

## د متوفی امام د ځامنو د پاره د وقف علی المسجد کتبې او وظیفې د جاری ساتلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد یو امام ته د امامت د وجې نه څه ځمکه ورکړې شوې وه، کوم چې د هغه په نسل کې د یو نیم سلو کالو نه راروانه ده په موجوده نسل کې چې کله دا امام فوت شو نو په هغوی پسې یو هلک هم د امامت قابل نه وو، بلکې بچی ئې وو یو سړی چې په بل ځای کې امام وو هغه د هغه ځای امامت پرېښودلو سره دلته یې امامت اختیار کړو، د دې وجې نه چې دا ځمکه به هم زما په قبضه کې راشی، اګر چې هغه په هغه وخت کې دا ویل چې دا په ما باندې حرامه ده، نو آیا شرعا دا سړې په دې ځمکه باندې قبضه کولې شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد خورشید هزاره

**الجواب:** که دا ځمکه سابقه امام ته د هبه په طور ورکړې شوې وه نو دا ځمکه د هغه د شرعی وارثانو ترکه او جائیداد دې، او که دا ځمکه د مسجد دپاره وقف وی نو دا ځمکه د چا جائیداد هم نه شی جوړېدې، بلکې دا به باقاعده په امام وغیره باندې خرچ کولې شی خو که د متوفی امام ځوی په تحصیل د علم کې مشغول وی نو د هغه دپاره به دا وظائف باقاعده جاری کولې شی.

والدلیل علی الاول ان الهبة تتم بالقبض (۱) وعلی الثانی ان الوقف لا

---

بقیه ازحاشیه گذشته ] او علی قوم معلومین ثم ان الواقف غرس فیها شجرا، قالوا ان غرس من غلة الوقف او من مال نفسه لکن ذکر انه غرس للوقف یکون للوقف وان لم یذکر شیئاً وقد غرس من مال نفسه یکون له وورثته بعده ولا یکون وقفاً کذا فی فتاویٰ قاضی خان۔

(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۷۶ الباب الثانی عشر فی الرباط الخ)

۱) قال العلامة المرغینانی: والعمری جائزة للمعمر له حال حیاته ولورثته من بعده لما روینا ومعناه ان یجعل داره له مدة عمره واذا مات ترد علیه فیصح التملیک ویبطل الشرط لما روینا وقد بینا انه الهبة لا تبطل بالشروط الفاسدة۔

(هدایة ۳:۲۹۴ باب ما یصح رجوعه ومالا یصح)

يملك(۱) وعلى الثالث ما في ردالمحتار ۳: ۳۸۸ ونقل العلامة البيري عن الخزانة عن مبسوط فخر الاسلام اذا مات من له وظيفة في بيت المال لحق الشرع واعزاز الاسلام كاجر الامامة والتأذين وغير ذلك مما فيه صلاح الاسلام والمسلمين وللميت ابناء يراعون ويقيمون حق الشرع واعزاز الاسلام كما يراعي ويقيم الاب فللامام ان يعطي وظيفة الاب لابناء الميت لا يضرهم لحصول مقصود الشرع وانجبار كسر قلوبهم، وقال البيري هذا مؤيد لما هو عرف الحرمين الشريفين ومصر والروم من غير نكير من ابقاء ابناء الميت ولو كانوا صغاراً على وظائف آباءهم مطلقاً من امامة وخطابة الخ۔ قلت: ومقتضاه تخصيص ذلك بالذكور دون الاناث وانت خبير بان الحكم يدور مع علته فان العلة هي احياء خلف العلماء ومساعدتهم على تحصيل العلم فاذا ابتغ الابن طريقة والده في الاشتغال بالعلم فذلك ظاهر اما اذا اهمل ذلك واشتغل باللهو واللعب او في امور الدنيا جاهلاً غافلاً معطلاً للوظائف المذكورة اوينيب غيره من اهل العلم بشيئ قليل ويصرف باقي ذلك في شهواته فانه لا يحل لما فيه من اخذ وظائف العلماء وتركهم بلا شيئ يستفدون به على العلم كما هو الواقع في زماننا الخ۔ وهو الموفق

**د زلزله زدګان د پاره د بیروني ممالک نه د راغلی امداد د تقسیم طریقه**

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زلزله زدګان دپاره د بهر ملکونو نه کافي امداد پاکستان ته راغلې وو چې د هغې دپاره حکومت یو طریقه او انداز مقرر کړې وو، چې په مرګ باندې پنځه زره د کور او آبادۍ د ویراني په صورت کې پنځلس سوه او د غوا او میښې په عوض کې

---

(۱) وفي الهندية: وعندهما حبس العين على حكم ملك الله تعالىٰ على وجه تعود منفعته الى العباد فيلزم ولا يباع ولا يوهب ولا يورث.
(فتاوىٰ عالمكيرية ۲: ۳۵۰ كتاب الوقف الباب الاول)

زر او د ګډ په عوض کې به پنځه سوه روپۍ ورکوو، اوس که یو سړی د نقصاناتو نه زیات مال په دروغه او دهوکې سره وصول کړي نو د دې څه حکم دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد جانس فاضل حقانیه بشام ........۱ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** که بیرونی ممالکو پاکستان لره مختار جوړولو سره دا پیسې رالیږلې وی، نو دا رقم به د پاکستان په صوابدید باندې خرچ کړې شی، د دې رقم د حصول دپاره به حیلې جوړول مفید نه وی، او که بیروني ملکونو د پاکستان نه وکیل او امین جوړ کړې وی چې دا رقم مصیبت زده خلقوته ورسوی نو په دې صورت کې به د مصیبت زده خلقو دپاره په توریه وغیره حیلو سره زائد رقم حاصلول جائز وی، خو د غیر مصیبت زده دپاره به دا حیله جائز نه وی، نعم لا حرج فی اخذ الغیر المصابین بتوکیل المصابین ورضائهم، لان اصل الحق لهم فافهم(۱) وهوالموفق

## د عیدګاه په ځمکه کې مسجد جوړول، د هغې د پاره جمع شوې چنده او د دکانونو جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې څو کاله مخکې یو عالم فاضل دیوبند عوامو ته وویل چې د اختر مونځ د کلی نه بهر د سنت مطابق کول پکار دی لهذا یو نیك سړي د دې دپاره ځمکه وقف کړه په هغې کې ئې یو طرف ته دکانونه جوړول شروع کړل د ګټې دپاره، او ځمکه هم دغه شان پاتې شوه، دا ځمکه چې د عیدګاه دپاره وقف کړې شوې وه په دې کې عارضي طور مونځ یا تراویح کول څنګه دی؟ که په دې کې اذان یا باجماعت مونځ وشو نو آیا د دې نه به مسجد جوړ شي؟ او کومه چنده چې د خلقو نه د

(۱) اشاره الی ان فتح هذین البابین لا امن فیه عن الوقوع فی المهالک، فالحذر فی ان یسد هذان البابان باـای باب الحیله وباب التوکیل. (سیف)

مسجد په نوم اخستلې شوې ده آیا دا به هغوی ته واپس کولې شي او که هغه به د عارضي مصلی جوړولو دپاره خرچ کړو؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: قاري سعيد احمد.....۲۰ مارچ ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د عیدګاه دپاره وقف کړې شوې ځمکه مسجد نه شي جوړيدې لمخالفة الشرط المنصوص، وفي الهندية ۲: ۳۷۱ البقعة الموقوفة على جهة اذا بنى رجل فيها بناء ووقفها على تلك الجهة يجوز بلا خلاف تبعا لها فان وقفها على جهة اخرى اختلفوا في جوازه والاصح انه لا يجوز كذا في الغياثية(۱) خو په دې کې مونځ یا باجماعت مونځ ممنوع نه دې، كما جازت صلاة العيد في المسجد. او چنده د چنده ورکونکو په رائې او مشوره باندې هر ځای کې لګول جائز دی، لعدم خروجه عن ملكهم(۲).

**نوټ:** د دکانونو په چت باندې مسجد جوړول منع نه دی خو داسې مسجد مسجد عرفي دې شرعي نه دې، په دې کې اعتکاف صحیح نه دې.

قال العلامة الشامي: قال في البحر حاصله ان شرط كونه مسجدا ان يكون سفله وعلوه مسجدا لينقطع حق العبد عنه(۳)، وللتفصيل مقام آخر. وهو الموفق

## د چا غیر ملکیت لره قبضه کولو سره په هغې کې د مسجد یا قبرستان جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړی حکمت عملی اختیارولو سره د بل سړي ځمکه قبضه کړي او خپل ملکیت

---

۱) (فتاوی عالمگیرية ۲: ۳۶۲ الباب الثاني فيما يجوز وقفه وما لا يجوز)

۲) يدل عليه ما في الملتقط: اذا جمع دراهم لكفن ميت ففضل او كفنه غيره يصرف الى المعطين فان تعذر ذلک يتصدق به.

(الملتقط في الفقه الحنفية ۲۷ مطلب في جواز الامامة الصبي)

۳) ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۴۰۶ قبيل مطلب فيما لو خرب المسجد او غيره)

جوړ کړي، اوس دې ملکیت لره د قبرستان یا مسجد دپاره وقف کول غواړي آیا په داسې ځمکه کې قبرستان یا مسجد جوړول جائز دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: فضل داد... کوهاله براسته کوه مری....... ۱٦ نومبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** د چا په ملکیت کې بغیر د اذن نه تصرف کول حرام او ناجائز دی، قال رسول الله ﷺ: الا لا تظلموا، الا لا یحل مال امرئ الا بطیب نفس منه، رواه البیهقی فی شعب الایمان والدارقطنی فی المجتبیٰ(۱) وفی شرح المجلة ٦۱ لایجوز لاحد ان یتصرف فی ملك غیره بلا اذنه او وکالة منه او ولایة علیه(۲)، تردې چې په داسې مسجد کې مونځ مکروه دې او د داسې مقبرې نه د مړی د قبر نه راویستل جائز دی، فی ردالمحتار: وکذا تکره فی اماکن کفوق کعبة (الی ان قال) وارض مغصوبة او للغیر، هامش ردالمحتار ۱: ۲۵۵،۲۵٤(۳) وفیه ایضاً ولایخرج منه بعد اهالة التراب الالحق آدمی کان تکون الارض مغصوبة، هامش ردالمحتار ۱: ٦۰۲(٤)۔ وهوالموفق

## د قیام پاکستان په وخت د هندوانو نه د پاتې شوې کورونو د ملکیت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کله پاکستان جوړشو د هندوانو نه دلته کورونه او دکانونه پاتې شو اوس په یو دکان باندې د عبدالله نومې سړی قبضه ده او بل کرایه دار ئې په هغې کې کینولو، څه موده پس ئې ترې هغه وویستلو او بل سړی ته ئې په کرایه ورکړو، هغه دوه کاله کرائی ورکوله، چې کله ترې عبدالله د دکان مطالبه وکړه نو په جواب کې

---

۱) (مشکواة المصابیح ۱: ۲٦۱ باب الغصب والعاریة الفصل الثانی)

۲) (شرح المجلة لرستم باز ۱: ٦۱، مادة: ۹٦)

۳) (الدرالمختار مع ردالمحتار ۱: ۲۷۹ مطلب فی اعراب کائناً ماکان)

٤) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ٦٦۲ مطلب فی دفن المیت)

ورته هغه سړي وویل چې زما ستا په ورور باندې قرض دې څه موده پس ترې نه هغه صفا انکار وکړو چې دکان ستا نه دې، اوس د شریعت په رڼا کې د دې مالک څوک دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** عبدالاکبر خان ..... ۲ مئی ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د داسې ځمکې مالک هغه سړې وی د چا نه چې حکومت مالک جوړ کړی. **قال الله تبارك وتعالى: وما افاء الله على رسوله منهم فما اوجفتم عليه من خيل ولا ركاب ولكن الله يسلط رسله على من يشاء(١)، فالفيئ يكون للرسول وكذا النائبه،فافهم،** د دینه پس د حکومت د اعلان نه مخکې دا دکان عبدالله سره په طور د امانت مقبوض وو او بل سړی په طور د عاریت په قبضه کې اخستلې دې لهذا هغه امین الامین شو، پس په حقیقت کې به قابض عبدالله وی او مالک به شمارلې شی. **وهوالموفق**

## په مزارات اولیاء باندې د جمع شوې پیسو مصرف او حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د اولیاء الله په مزاراتو باندې د کیدونکې ګتې باره کې څه حکم دې؟ د دې پیسو نه په مسجد جوړولو یا د غریبو مسلمانانو په مدد کې لګولو یا په نورو نیکو مقاصد کې د لګولو څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** محمد نذیر.... اسلام آباد پنجاب

**الجواب:** د دې جائز او ناجائز نذرانو د مالکانو په اجازت سره په هر نیک کار کې صرف کول جائز دی،

**والملاك هم المتولون ان وجد القبض والا فالمعطون، ولا يجوز لارباب الحكومة اخذها والتصرف فيها لعدم الاذن لهم لا صريحاً ولا عرفاً. وهوالموفق**

---

١) (سورة الحشر آیت: ۶ پاره: ۲۸ رکوع: ۴)

## کوم ځای چې باقاعده وقف نه وی نو په هغې کې هر قسم تصرف جائز دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې قوم مونږ ته ویلې دی چې تاسو په کلی کې یوه مدرسه جوړه کړئ او کوم ځای چې یې متعین کړو هغه د کلی په مینځ کې دې ما وویل چې دا ځای غیر مناسب دې بیا قوم مشوره کولو سره وویل چې فی الحال دا ځای بنه دې او د فراغت نه پس به مونږ پیسې ورکولو سره په بل ځای کې مدرسه جوړه کړو، او دا ځای به د مسجد دپاره وقف کوو یا به ئې خرڅ کړو، اوس د دې ځای حکم د موقوف دې یا د غیر موقوف؟ او د موقوف ځای د واپسئ څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد نواب وزیرستانی کمره ۳۲/**

**احاطه مدنیه اکوړه خټک ... ۲۰ اگست ۱۹۸٤ء**

**الجواب:** دا مخکې ذکر شوې ځای موقوف نه دې په دې کې هر قسم تصرف جائز دې (۱) خو کوم ځای چې باقاعده د مسجد دپاره وقف شی نو هغه د بل مقصد دپاره نه شی وقف کیدلې، للزوم الوقف الاول (۲) **وهوالموفق**

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: ولو شرط ان یبیعها ویشتری بثمنها ارضا اخریٰ ولم یزد صح استحسانا وصارت الثانیة وقفاً بشرائط الاولیٰ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۲۵ قبیل مطلب فی اشتراط الادخال والاخراج)

(۲) وفی الهندیة: البقعة الموقوفة علی جهة اذا بنی رجل فیها بناء ووقفها علی تلک الجهة یجوز بلا خلاف تبعا لها فان وقفها علی جهة اخریٰ اختلفوا فی جوازه والاصح انه لا یجوز کذا فی الغیاثیة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۳۶۲ الباب الثانی فیما یجوز وقفه وما لا یجوز)

## د یونین د چندې نه خپله خوراک او په بل باندې د خوړلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا د مختلفو محکمو یونین او تنظیمونه جوړیږی او هر یو ممبر د خپل مفاد دپاره یونین ته د میاشتې چنده ورکوی اوس که په دې قسم یونین کې د یو یونین صدر د خپلو ممبرانو جلسه د څه خاص مقصد دپاره منعقد کړی او په هغې کې د ټولو ممبرانو د خوراک انتظام یونین د چندې نه وکړی، نو آیا دا خوراک څښاك به د یونین د هر ممبر دپاره جائز وی؟ او حال دا چې د یونین بعض ممبران غیر حاضر هم وی هم دغه شان د یونین غیر ممبر باندې دا خوراک خوړل جائز دی یا نه؟ د تقوی او فتوی په لحاظ لیکل وکړئ. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالحمید ایس وی وزیرستان..... ۱۳ نومبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د چنده ورکونکو په اجازت او رضا سره دا خوراک یعنی خپله خوړل او په بل خوړل جائز دی، هم دغه شان که صدر ته دا اختیار ورکړې شوې وی نو بیا هم جائز ده. (۱) په تقوی او فتوی کې فرق نشته. **وهوالموفق**

...

۱) چونکې د محکمو یونینز (Unions) او تنظیمونه د خپل مینځ کې امداد په نوم باندې جوړولې شی او د ضروری کارونو د پوره کولو دپاره چنده کولې شی او ورکونکی خلق هم په دې بنیاد باندې چنده ورکوی، نو ګویا د دې یونین او تنظیم په ذمه چې کوم امور سپارلې شوې دی نو دا چنده د عام معروفو اصولو د لاندې د هغه امورو د پوره کولو دپاره خرچ کول قابل اعتراض نه دی. ونظیره في الاسلام العاقلة والقسامة وعقد الموالات والولاء وغیره. (از مرتب)

بسم الله الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

(شپږم جلد)

# باب احکام المساجد

.........

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

## فتاویٰ فریدیہ

# باب احکام المساجد

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

اِنَّمَا يَعْمُرُ مَسٰجِدَ اللّٰهِ

مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

(سورۃ النساء)

.........

# باب احکام المساجد

## د مسجد کیدو بنیاد د جوړونکی په نیت باندې دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې شرعی مسجد په محراب جوړولو سره دې او که د جوړونکی د نیت په اعتبار سره؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: الحاج نیاز ولی خان... سپین وام حسن خیل وزیرستان

**الجواب:** د مسجد کیدو بنیاد په نیت باندې دې نه په محراب او تعمیر باندې (۱) **وهوالموفق**

## د فتنې د ختمولو دپاره د مسجد د تقسیم مسئله

**سوال:** مکرمی جلیل القدر مولانا صاحب الحق صاحب زروبوی مفتی دار العلوم حقانیه!

عرض دې چې زمونږ په کلی کې صرف یو مسجد دې او ټوله آبادی تقریبا په دیرشو کورونو باندې مشتمل ده اوس په عوامو کې څه خفگان او منافقت پیدا شوې دې او دا جاهل عوام اوس وائی چې مسجد دې په دوه حصو کې تقسیم کړې شی او په مینځ کې دې ورته دیوال جوړ کړې شی، آیا په شریعت کې د مسجد د تقسیم اجازت شته؟ او حال دا چې امامان د یو بل قراءت هم اوریدلې شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی رحمت جلال ومولوی عبدالجلیل الزرو طوطه کان دیر

**الجواب:** د یو مسجد د فتنې د دفع کولو دپاره تقسیمول جائز دی.

---

۱) وفی الهندیة: واما حکمه فعندهما زوال العین عن ملکه الی الله تعالیٰ وعند ابی حنیفة حکمه صیرورة العین محبوسة علی ملکه بحیث لا تقبل النقل عن ملک الی ملک.
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۳۵۲ کتاب الوقف الباب الاول)

فی الهندیة: ۵: ۳۵۵ اهل محلة قسموا المسجد وضربوا فیه حائطا ولکل منهم امام علی حدة وموذنهم واحد لابأس به والاولیٰ ان یکون لکل طائفة موذن، قال رکن الصباغی کما لایجوزلاهل المحلة ان یجعلوا المسجد الواحد مسجدین فلهم ان یجعلوا المسجدین الخ(۱)۔ وهوالموفق

## د مسلمان جوړ کړې شوې مسجد مسجد ضرار نه شی کیدې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د مسجد دپاره ځمکه وقف کړه، چې هغې سره نزدې مسجد نشته، او خلقو ته هلته د مونځ کولو ضرورت دې آیا دا مسجد مسجد ضرار دې؟ که نه وی نو د دې څه وجه ده؟ او د مسجد ضرار اطلاق په کوم مسجد باندې کیږی؟ بینواتوجروا

المستفتی: جمیل الرحمن لوهار مقام زروبۍ صوابۍ..... ۲۷ دسمبر ۱۹۶۹ء

**الجواب:** د مسلمان جوړ کړې شوې مسجد، مسجد ضرار نه شی کیدې، اګر چې دویم مسجد نزدې وی ځکه چې په داسې مسجد کې دا قید هم معتبر دې چې د دې مسجد په تعمیر باندې باعث کفر وی او د الله پاک د دشمنانو د مشورو مرکز کیدل. قال الله تعالیٰ: والذین اتخذوا مسجدا ضرارا وکفرا وتفریقا بین المؤمنین وارصاداً لمن حارب الله ورسوله من قبل (الآیة)(۲) او چونکې د دې ځای نه مسجد لرې دې او د مسلمانانو سره معاونت دې لهذا دامسجد ضرارنه دې، بیشکه په دې کې دامامت د وظائفو دپاره ضرر موجود دې خو ددې د وجې نه یو مسجد مسجد ضرار نه شی کیدې.(۳) وهوالموفق

---

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۵: ۳۲۰ الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة الخ)

۲) (سورة التوبة آیت: ۱۰۶ پاره: ۱۱)

۳) وفی المدارک: وقیل کل مسجد بنی مباهاة او ریاء او لغرض سوی ابتغاء وجه الله او بمال غیر طیب فهو لاحق بمسجد الضرار.

(تفسیر مدارک ۱: ۶۵۱ سورة التوبة الجزء الحادی عشر)

## د صحیح غرض په نیت باندې جوړ کړې شوې مسجد مسجد ضرار نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلي کې یو زوړ مسجد دې او تقریبا شل کاله مخکې د کورونو د لری والی د وجې نه خلقو یو بل مسجد هم جوړ کړې دې اوس بعض خلق وائی چې په دې بل مسجد کې مونځ جائز نه دې او کومو خلقو چې په هغې کې مونځ وکړو د هغوی جنازه هم صحیح نه ده، آیا په دې مسجد باندې د مسجد ضرار اطلاق کیدې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی گل احمد پرول پانړه ضلع دیر ..... ٧ دسمبر ١٩٧٢ء

**الجواب:** که دا مسجد د یو فاسد غرض دپاره جوړ کړې شوې وی نو دې مسجد ته مسجد ضرار ویل صحیح او که د غرض صحیح مثلا د مسلمانانو د معاونت یا د فساد د ختمولو دپاره جوړ کړې شوې وی نو دې ته مسجد ضرار ویل غلط دی. فی التفسیرات الاحمدیة ٤٧٨ وقال صاحب المدارك وقیل كل مسجد بنی مباهاة او رياء او سمعة اولغرض سوی ابتغاء وجه الله تعالی او بمال غیرطیب فهولاحق بمسجدالضرار(١)۔ وهوالموفق

## د یو مسجد په څوا کې دویم مسجد جوړول او د مسجد ضرار مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو مسجد تقریبا د اته لسو کالو نه زیر تعمیر دې، چت دالان او انګڼ تقریبا درې کناله جوړ شوې دی چې په هغې باندې شپیتۀ اویا زره روپۍ اهل محله وغیره صرف کړې دی، اوس بعض خلقو د دې مسجد په مقابله کې د بل مسجد تعمیر شروع کړې دې کوم چې بالکل دې ته نژدې دې آیا دا نوې مسجد تعمیر کول جائز دی؟ او د مسجد ضرار مفهوم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: حافظ عبدالمنان صاحب اوګی هزاره

---

١) (التفسیرات الاحمدیة ٤٧٨ مبحث بناء المساجد سوی ابتغاء وجه الله تعالی)

**الجواب:** مسجد ضرار هغې ته وائی کوم چې د فاسد غرض دپاره تعمیر کړې شوې وی، د غرض فاسد نه مراد دا دې چې مسلمانانو ته د ضرر رسولو او د هغوی په تقسیم کولو او بې اتفاقئ دپاره جوړ کړې شوې وی، یا د مسلمانانو د دشمنانو انتظار ګاه یا د پناه ځای وی. (سورة البراءة) (۱) هم دغه شان چې کله د فخر او ریاء دپاره جوړ کړې شوې وی. **کما فی التفسیر الاحمدی قال صاحب المدارك وقیل کل مسجد بنی مباهاة اوریاء اوسمعة اولغرض سوی ابتغاء وجه الله اوبمال غیر طیب فهولاحق به(۲).وهوالموفق**

## په یوه محله کې دویم مسجد جوړول او د مسجد ضرار حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې درې ورونه دی او د درې واړو یو مسجد دې څه موده پس د هغوی نه یو ورور بل مسجد جوړ کړو چې دهغې د وجې نه اول مسجد ته نقصان رسیږی مثلاً په اجتماعیت کې کمې راتلل، آیا دا مسجد د مسجد ضرار په حکم کې شامل دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: علی رحمٰن مهمندی...... ۳ اپریل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** که د دویم مسجد جوړولو باعث اولنی مسجد ته نقصان رسول وی نو دا دویم مسجد به مسجد ضرار وی، او که باعث دا وی چې د فساد او جدال نه امن حاصل شی نو دا به مسجد ضرار نه وی، **صرح به فی المدارك فی سورة البراءة بکون المسجد الذی بنی لغرض فاسد مسجداًضراراً(۳) وکذاصرح**

---

۱) قال الله تعالىٰ: والذين اتخذوا مسجداً ضراراً و كفرا وتفريقاً بين المؤمنين وارصاداً لمن حارب الله ورسوله من قبل، وليحلفن ان اردنا الا الحسنىٰ، والله يشهد انهم لكذبون-
(سورة التوبة آيت:۱۰۷ ركوع:۲ پاره:۱۱)

۲) (مدارک التنزيل المعروف بالتفسير النسفى ۱:۵۱۹ سورة التوبة)

۳) وقيل كل مسجد بنى مباهاة او رياء او سمعة او لغرض سوى ابتغاء وجه الله او بمال غير طيب فهولاحق بمسجد الضرار-
(التفسير النسفى المعروف مدارک التنزيل ۱:۵۱۹ سورة التوبة)

في الهندية: ٥:٣٥٥ بجعل المسجد الواحد مسجدين اى لغرض صحيح، فافهم(١)۔ وهوالموفق

## غير موقوف. دکانونو باندې پورته جوړ کړې شوې مسجد عرفي دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې څو دکانونه زير تعمير دی، شريکانو فيصله کړې ده چې د قبلې طرف ته دکانونه چې د کوم سرې په قرعه کې راوختل نو هغه به پورته حصه د مسجد دپاره ورکوی، آيا په دکانونو دپاسه مسجد جوړولې شی؟ بينواتوجروا

المستفتي: محمد عبدالله تله کنګ ضلع اټک ......۲۸ جمادى الثانى ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** چونکې د دې چتونو نه لاندې خمکه موقوفه نه ده بلکې مملوکه ده، لهذا په دې چتونو باندې جوړ شوې مسجد به عرفي وی شرعی مسجد به نه وی، په دې کې به اعتکاف صحيح نه وی.

يدل عليه ما في الدرالمختار ٣: ٥١١ وفي القهستاني: ولابد من افرازه اى تميزه عن ملكه من جميع الوجوه، فلو كان العلو مسجدا والسفل حوانيت او بالعكس لا يزول ملكه لتعلق حق العبد به كما في الكافي(٢)۔ وهوالموفق

## په دوه منزله عمارت کې يو منزل په طور د مسجد استعمالول شرعی مسجد نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې په پيښور فوجي چهاونۍ کې دوه منزله عمارت دې چې د هغې لاندې حصه د مسجد په طور استعمالولې شی او پنځه وخته مونځ پکې سره د جمعې ادا کولې شی او پورته حصه ئې د اوسيدو خای دې چې په هغې کې فوجيان اوسيږی آيا دا لاندې حصه مسجد کيدو سره پورته اوسيدل جائز دی؟ بينواتوجروا

المستفتي: شفيق الرحمن کوتها c/o مولانا عبيد الرحمن پشاور چهاؤنی ۲ ربيع الثانی ۱۴۰۱ھ

---

١) (فتاوىٰ عالمگيرية ٥:٣٢٠ الباب الخامس فى آداب المسجد)

٢) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣:٤٠٥ مطلب فى احكام المسجد)

**الجواب:** چونکې لاندې حصه عرفي مسجد دې چې دا مسجد شرعي نه دې، لهذا د دې مسجد په پورته حصه کې اوسيدل ممنوع نه دی، ونظيره مساجد البيوت فافهم(١) وهوالموفق

## د ذاتي کور د پاسه غير موقوف مسجد. عرفي مسجد دې شرعي نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې زيد په خپل ذاتي جائيداد کې لاندې کور جوړولو سره پورته د محلې د سهولت دپاره مسجد جوړ کړو، ټول اخراجات خپله ادا کوی او اهل محله په دې کې مونځونه ادا کوی او د بجلئ وغيره په اخراجات کې اهل محله هم کومك کوی، د زيد حق توليت برقرار دې، اوس زيد وائی چې دا مسجد ما خپله جوړ کړې دې هم زه به ئې استعمالوم عوام او د محلې خلقو ته د مونځ کولو اجازت نشته وغيره وغيره، نو آيا د زيد دپاره دا قسم رويه خپلول جائز دی؟ بينواتوجروا

المستفتی: ع.ح. قريش c/o محمد رمضان علوی ... ٢٧ جولائی ١٤٠١هـ

**الجواب:** دا مسجد مسجد عرفي دې مسجد شرعي نه دې، د دې اخستل او خرڅول جائز دی د دې د مونځ کونکو منع کول ناجائز نه دی.

کما يدل عليه ما فی ردالمحتار ٣٥٨:٤ طبع المصطفى البابی قال فی البحر وحاصله ان شرط کونه مسجدا ان يکون سفله وعلوه مسجد لينقطع حق العبد عنه لقوله تعالىٰ وان المساجد لله، انتهیٰ(٢) قلت: لان المدار على الموقوفية وههنا لم يتحقق لاوقف العقار ولاوقف السقف، فافهم.

---

(١) قال العلامة ابن نجيم: ومن اتخذ وسط داره مسجداً واذن للناس بالدخول فله بيعه ويورث عنه لانه لم يخلص لله تعالىٰ لبقاء حق العبد متعلقاً به.
(البحر الرائق ٤٢١:٥ کتاب الوقف فصل فی احکام المسجد)

(٢) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٤٠٦:٣ مطلب فی احکام المسجد)

**نوټ**: په داسې مسجد کې اعتکاف صحیح نه دی (۱) **وهوالموفق**

## د مسجد د کمیټئ د انتخاب طریقه کار

**سوال**: څه فرمائی علماء، دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته یو مرکزی جامع مسجد دې چې په هغې کې یو پیش امام او یو خطیب دې، د خطیب د میاشتې تنخواه دوه زره روپۍ ده خطیب د کمیټئ نه د زیاتې تنخواه مطالبه وکړه نو کمیټئ مسترد کړه، خطیب دا تهمت پورې کړه چې دا کمیټی خائنه ده حال دا چې هغه خپله مخلص دې، بیا هم خطیب بله کمیټی جوړول شروع کړل او صدر په دوه ډلو کې تقسیم شو،د یو صدرعالم دې او دویم عام سړې دې، آیا بغیر د تحقیق نه دا کمیټی ماتول د شریعت په رڼا کې جائز دی، آیا خطیب ددې د ماتولو اجازه لري؟ آیا ددې مسجد انتظام چلول د اهل محله حق دې اوکه د ټول ښهر دخلقو اوکه دمسجد د امام او خطیب حق دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: قاری غلام مصطفی شاه مرکزی جامع مسجد گلگت ... ۲۱ رمضان ۱۴۰۹ھ**

**الجواب**: که د دې جامع مسجد او د هغې د متعلق دکانونو واقف یا د هغه ولی موجود وی نو د هغوی رائې باندې دې دارومدار کیښودل شی، که دا کسان موجود نه وی نو د حاکم رائې دې معمول جوړه کړې شی، او د هغې نه افضل دا ده چې د دې جامع مسجد د متعلقه مونځ کونکو نه د اهل حل وعقد په رائې باندې فیصله وکړې شی. **فلیراجع الی الدرالمختار فصل یراعی شرط الواقف** (۲). **وهوالموفق**

---

۱) وفی المنهاج: اعلم ان المساجد التی بنیت علی الحوانیت المملوکة الغیر الموقوفة هی مساجد عرفیة لیست بمساجد شرعیة لما فی وقف البحر وحاصله ان شرط کونه مسجداً ان یکون سفله وعلوه مسجداً لینقطع حق العبد عنه لقوله تعالیٰ وان المساجد لله انتهی، فلا یصح الاعتکاف فی مثل هذه المساجد.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۷۴: ۴ باب المعتکف یخرج لحاجته ام لا)

۲) قال العلامة الحصکفی: ولایة نصب القیم الی الواقف... [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## د مسجد د کمیټئ د ارکانو د انتخاب دپاره شرائط او ضوابط

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې (۱) یو هم مسلک او صالح سړې چې په یو سرکاری عهده باندې فائز دې د حکومت نه د یو قطعه اراضی دپاره د تعمیر حاصله کړه او د دیندار او مخیر کسانو یو مشاورتی کمیټی جوړولو سره ئې د خپل اهتمام لاندې تعمیر شروع کړو کوم چې تکمیل ته رسیدلې دې، صاحب مذکور د ریټائرډ کیدو نه پس په بله تړلې علاقه کې رهائش اختیار کړې دې، آیا د شریعت په رڼا کې دا سړې اوس د کمیټئ ممبر جوړیدې شی؟

(۲) د ذکر شوی مسجد نور بعض ارکان منتظمه کوم چې په دې علاقه کې رهائش لری خو په نورو علاقو کې تجارت او ملازمت (مزدوری) کوی، او پنځه وخته مونځونه دلته نه ادا کوی صرف د جمعې یا د سحر او ماسخوتن د مانځه دپاره راځی او د مسجد اعانت کوی آیا صرف هم په دې وجه چې هغوی پنځه وخته مونځ دلته نه کوی په دې وجه د مسجد د کمیټئ ارکان نه شی جوړیدې؟

(۳) یو دیندار مخیر اهل حدیث کوم چې د شروع نه دلته د رهائشی کمیټئ ممبر دې او بې لالچه خدمت کوی آیا صرف د غیر حنفی کیدو د وجې نه د مسجد د کمیټئ ممبر نه شی جوړیدې؟

---

بقیه ازحاشیه گذشته] ثم لوصیه... ثم اذا مات المشروط له بعد موت الواقف ولم یوص لاحد فولایة النصب للقاضي، قال العلامة ابن عابدین: (الی الواقف) قال فی البحر... ثم ذکر عن التتار خانیة ما حاصله ان اهل المسجد لو اتفقوا علی نصب رجل متولیا لمصالح المسجد فعند المتقدمین یصح ولکن الافضل کونه باذن القاضی ثم اتفق المتاخرون ان الافضل ان لایعلموا القاضی فی زماننا لما عرف من طمع القضاة فی اموال الاوقاف الخ۔

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۴۴۸،۴۴۹ مطلب الافضل فی زماننا نصب المتولی الخ)

(۴) آیا په شریعت کې د مسجد د تولیت حقدار صرف هغه سړی دی کوم چې پنځه وخته په هغه مسجد کې مونځ کوي اګر چې په هغوی کې هیڅ صلاحیت نه وي او نه مالي خدمت کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجي وصی الدین ... اصغر سکیم راولپنډی

**الجواب:** د مسجد وغیره د متولي کیدلو دپاره (د کمیټۍ د رکن یا مشیر کیدو دپاره) عقل او بلوغ او قدرت شرط دي نه مقامي کیدل شرط دی او نه حنفي کیدل، بیشکه غوره دا ده چې امین او خاوند د رائې وغیره جوړ کړې شي. قال في الاسعاف ولا یولی الا امین قادر بنفسه اوبنائبه لان الولایة مقیدة بشرط النظر ولیس من النظر تولیة الخائن لانه یخل بالمقصود وکذا تولیة العاجز .... ویستوی فیه الذکر والانثی وکذا الاعمی والبصیر وکذا المحدود فی قذف اذا تاب لانه امین، قال العلامة الشامي والظاهر انها شرائط الاولویة لا شرائط الصحة ویشترط لصحته بلوغه وعقله لاحریته واسلامه (بحذف یسیر)، (ردالمحتار ۳:۵۳۲)[1]. وهوالموفق

## د مسجد د توسیع دپاره په اخستل شوی کور باندې د کرایه دارو قبضه جائز نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد د صحن سره متصل یو خالي مکان دې اهل مسجد پیسې ورکولو سره مذکوره کور د مسجد د انګړ د توسیع دپاره اخستلې دې، اوس کرایه دار قابضین دا مکان مسجد ته نه حواله کوي، او مقدمه بازۍ کولو سره د مسجد پیسې ضائع کوي آیا د دې کور استعمال کوم چې د مسجد یوه حصه ده جائز دې؟ داسې خلق کوم چې د مسجد په مقابله کې مقدمې کوي او صفا وائي چې مونږ دا کور نه پرېږدو، نو آیا دا خلق فاسقان دي، او که منافق او کافر؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی رحمٰن ګل راولپنډی ........ ۲۷ اګست ۱۹۷۵م

---

[1] (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۲۱،۴۲۲ مطلب فی شروط المتولی)

**الجواب:** کوم کور چې د مسجد د توسیع دپاره واخستلې شي هغه د مسجد په حکم کې وی لهذا د قابضین دپاره ضروری ده چې هغوی کور حواله کړي او د فسق او فجور نه دې بچ شي، د حکومت په اجازت او قانون سره د الله پاک په نزد حلال والې نه ټ اصلیږي. (١). وهوالموفق

## د مشترکه ځمکې د مسجد دپاره د وقف کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې پنځه کاله مخکې ما دوه منزله کور تعمیر کړې وو وروستو راته معلومه شوه چې په ګاونډ کې د مسجد د ځمکې څه ځای په کور کې شامل شوې دې، نه ما قصدا دا کار کړې دې او نه کمیټی انتظامیه ته دا معلومات شوې وو، اوس که د کور تعمیر راغورځولو سره دا ځمکه په مسجد کې شامله کړې شی نو د پوره کور د بلډنګ راغورځیدو خطره ده او دا غلطی سهوا شوې ده، هم دغه شان دې دا هم واضحه وی چې ۱: څو ملګرو چنده جمع کولو سره د دې ځمکې قیمت حکومت ته ادا کړې وو یعنی د مسجد دپاره د جمع شوی فنډ نه ادائیګی اونه کړې شوې. ۲: تقریبا اووهٔ یا اتهٔ کاله مخکې دا ځمکه د حکومت نه واخستلې شوه، زه ستاسو د فیصلې منتظر یم؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالحمید جناح روډ ایبټ آباد....۱۲۱ کتوبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** چې کله دې کسانو مشترکه طور د ذاتی مالونو نه دا ځمکه د مسجد دپاره اخستلې ده نو دا وقف مشاع دې کوم چې صحیح نه دې او د دې کسانو دپاره د دې ځمکې خرڅول جائز دی. **كما في الهندية ۲: ۳۷۳ وقف المشاع المحتمل للقسمة لا يجوز عند محمد وبه اخذ مشائخ بخاری وعليه الفتوى كذا في السراجية** (٢). **وهوالموفق**

---

(١) قال العلامة ابن الهمام: والمسجد خالص لله تعالىٰ وليس لاحد فيه حق قال الله تعالىٰ وان المساجد لله. (فتح القدير ۵: ۴۴۵ فصل فی احكام المسجد)
وقال العلامة ابن نجيم: ويجب رد عينه فی مكان غصبه لقوله عليه السلام على اليد ما اخذت حتى ترد ای على صاحب اليد. (البحر الرائق ۸: ۱۹۸ كتاب الغصب)

(٢) (فتاوىٰ عالمگيرية ۲: ۳۶۵ فصل فی وقف المشاع)

## بغیر د اجازت نه د بل وروړ حصه په مسجد کې د وقف کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې څلور ورونه دی د هغوی مور هر یو ته حصه ورکړې ده په هغوی کې یو وروړ د بل وروړ حصه د مسجد دپاره وقف کړې ده او حال دا چې هغه بل وروړ یې په ورکولو راضي ندی اوس که مسجد والا هغې لره زبردستی سره واخلی نو آیا په هغې کې مونځ صحیح دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** احسان الله مانکی صوابی..... ۲۶ جمادی الثانی ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** که دا کور مشترک غیر تقسیم شده وی نو د ټولو شریکانو د رضا نه بغیر د هغې په مسجد کې داخلول ناجائز دی او که دا کور صرف د یو وروړ حصه وی نو د هغه وروړ په رضا او اجازت سره د هغې په مسجد کې داخلول جائز دی. (۱) **وهوالموفق**

## د شاملات ځمکه کې د مسجد د آبادولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې دیوکلی په شاملات کې حکومت څه سرکاری عمارت یعنی هسپتال وغیره تعمیر کړی نو دهغه عمارت په انګړ کې د صلاة العیدین یا جمعه وغیره کولو څه حکم دې؟ که جائز وی نو په مسنون طریقه سره به ادا شوې وی او که د کراهت سره؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولانا محمد ادریس صدر ګورنمنټ (حکومت)

مدرسه عربیه چارباغ سوات... ۱۳ مئی ۱۹۷۶م

---

۱) وفی الهندیة: ومنها الملک وقت الواقف حتی لو غصب ارضاً فوقفها ثم اشتراها من مالکها ودفع الثمن الیه او صالح علی مال دفعه الیه لا تکون وقفاً کذا فی البحر الرائق ورجل وقف ارضاً لرجل آخر فی بر سماه ثم ملک الارض لم یجز وان اجاز المالک جاز عندنا کذا فی فتاوی قاضی خان.

(فتاوی عالمگیریة ۲:۳۵۳ کتاب الوقف الباب الاول)

**الجواب:** که دا شاملات د لاري په شان کاغذي ملکيت ولري شرعي ملکيت نې نه وي نو په دې کې مونځ کول مکروه نه دی اګرچې بغير د اجازت نه وي کنه نو بغير د اذن نه مکروه دی. (۱) وهوالموفق

## سابقه ګردواره لره په مسجد کې تبديل کولو سره په هغې کې ضروري تعمير او رد وبدل جائز دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو ګردواره په مسجد کې بدله کړې شوې ده او د حکومت په کاغذاتو کې مسجد ښودلې شوې دې اوس په هغې کې د تعمير او ردوبدل ضرورت دې د بعض خلقو خيال دې چې د هغې دپاره د حکومت نه اجازت اخستل ضروري دی آيا دا اجازت اخستل شرعا صحيح دی؟ که بغير د اجازت نه ئې جوړولې شي؟ بينواتوجروا

المستفتي: قاري محمد امين جامع مسجد ورکشاپ راولپنډي

**الجواب:** د ضرورت په وخت کې مناره وغيره جوړول جائز دی،

کما في الهندية ۲: ۴۴۸ ويجوزان يبين منارة من غلة وقف المسجدان احتاج اليها ليكون اسمع للجيران وان كانوا يسمعون الاذان بدون المنارة فلاكذا في خزانة المفتيين (۲).

**نوټ:** په ذاتي مالونوسره اهل محله هر تعميري کارکولې شي. (۳) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: وعبارة الحاوي القدسي والارض المغصوبة فان اضطر بين ارض مسلم وكافر يصلي في ارض المسلم اذا لم تكن مزروعة او لكافر يصلي في الطريق اى لان له في الطريق حقا كما في مختارات النوازل وفيها تكره في ارض الغير لو مزروعة او مكروبة الا اذا كانت بينهما صداق او رأى صاحبها لا يكره فلا بأس.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۲۸۰ مطلب تكره الصلوة في ارض المغصوبة)

۲) (فتاوىٰ عالمگيرة ۲: ۴۶۲ الباب الحادي عشر في المسجد وما يتعلق به)

۳) وفي الهندية: رجل اعطى درهما في عمارة المسجد او نفقة المسجد او مصالح المسجد صح- (فتاوىٰ عالمگيرية ۲: ۴۶۰ الباب الحادي عشر في المسجد وما يتعلق به)

## چرچ لره په مسجد بدلول او د هدایه د عبارت وضاحت

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په اسلامی ملک کې داسې ځای چېرته چې د عیسایانو چرچ وی او بیا هلته مسلمانان آباد شی او عیسائی اقلیت هم په هغوی کې موجود وی، آیا دې چرچ لره په مسجد باندې د بدلولو څه جواز شته؟ هم دغه شان د هدایه ﴿ باب الجزیة فصل فیما ینبغی لذمی ﴾ د دې عبارت څه مطلب دې؟ وان انهدمت البیع والکنائس القدیمة اعادوها الخ؟ بینوا توجروا

المستفتی: فلائټ لیفټیننټ فدا محمد ایجوکیشن ډائریکټر پیښور ... ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** چرچ لره په مسجد باندې بدلول اګر چې جائز دی ، ﴿ لحدیث النسائی : فأکسروا بیعتکم وانضحوا مکانها بهذا الماء واتخذوها مسجدا ﴾ [۱] چونکې دا عیسائیان نه مسلمانان شوې دی او نه د دې ځای نه ټول په ټول جلاوطن شوې دی لهذا د هغوی چرچ به په مسجد باندې نه شی بدلولې، قال فی فتح القدیر: واعلم ان البیع والکنائس القدیمة فی السواد لا تهدم علی الروایات کلها، (شامی باب الجزیة) [۲] او د صاحب هدایه مراد دا دې چې د دې وطن د دارالاسلام جوړېدو نه مخکې چې کوم چرچونه موجود وو نو د هغې ترمیم او اعاده ممنوع نه ده. [۳] وهوالموفق

---

۱ ﴾ (سنن النسائی ۱۱۴:۱ اتخاذ البیع مساجد باب المساجد)

۲ ﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۲۹۹ قبیل مطلب فی تمییز اهل الذمة فی الملبس)

۳ ﴾ قال العلامة ابن الهمام: وان انهدمت البیع والکنائس القدیمة اعادوها قال المصنف لان الابنیة لا تبقی دائماً ولما اقرهم الامام فقد عهد الیهم الاعادة ضمنا غیر انهم لا یمکنون من نقلها من مکان الی آخر لانه احداث وفی ذلک المکان المنقول الیه فلا یجوز الخ.
(فتح القدیر ۵:۲۹۹ فصل لا یجوز احداث بیعة الخ)

## د تقسیم هند په وخت د هندوانو په متروکه ځمکه کې
## د مسجد دپاره د حاصل کړې قطعه باره کې شرعي فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د قیام پاکستان په وخت هندو او سکه خپلې ځمکې پریښودلې او بهارت ته لاړل مسلمانان مهاجر جوړېدو سره پاکستان ته راغلل او د هندوانو او سکهانو په متروکه ځای باندې ئې استوګنه اختیار کړه، هم دغه شان د یو متروکه ځای انتخاب د اهل محله مهاجرین د مسجد دپاره او ډی سی هم د خلقو مخکې اجازت ورکړو ځکه چې د قیام پاکستان نه پس متروکه او د وقف املاک مالک ګورنمنټ (حکومت) جوړ شوې وو، لهذا د ډپټی کمشنر په اجازت باندې د مسجد تعمیر شروع کړې شو او اهل محله ټول ګواه دی چې ډپټی اجازت او د مسجد د نقشې اجازت ورکړې وو د مسجد دپاره منتخب ځای په درې حصو باندې مشتمل دې چې په هغې کې دوه حصې متروکه دی او یوه حصه وقف ده دپاره د دهرم سالې

په ۱۹۲۰ء کې حکومت د متروکه او وقف ملکیت قیمتونه وصولولو دپاره یو اداره قائم کړه خو په دې کال ۱۹۲۰ء کې د مسجد د ځای قیمت ادا کولو نه مخکې محکمه اوقاف په تحویل کې واخستله، کوم چې د اتلسو کالو پورې په حکومتی تحویل کې وو، بالآخر په ۱۹۷۸ء کې آزاد شو دې دوران د د مسجد د دکانونو ټوله آمدنی حکومت وصولوله اوس په دې حالاتو کې د حکومت دعوی دا ده چې د مسجد دپاره د منتخب کړی شوی ځای قیمت حکومت ته نه دې ادا کړې شوې، د زید دعوی ده چې چونکې د ځمکې قیمت نه دې ادا کړې شوې او په دې ځمکه کې یوه حصه د دهرم سالې دپاره وقف ده لهذا دا د مسجد په حکم کې نه دې بلکې د هندوانو درهم ساله ده، د بکر دعوی ده چې دا د مسجد په حکم کې دې، ځکه چې د مرکزی حکومت د نمائنده ډی سی په اجازت سره جوړ شوې دې چونکې قیمت نه دې ادا کړې شوې په دې وجه قیمت په اهل محله باندې واجب دې او د خالد خیال دا دې

چې چونکې د اتلسو کالو پورې مسجد د حکومت په تحویل کې پاتې شوې دې او د مسجد د دکانونو ګټه حکومت وصولوله په دې وجه اوس په اهل محله باندې ددې قیمت واجب نه دې، اوس سوال دا دې چې آیا دا مسجد دې او که دهرم ساله؟ او په اهل محله باندې قیمت واجب دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اکرم گل لانگریاتوالی گوجرانواله ... ۱۷ ربیع الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا مسجد شرعی مسجد دې حکومت د هغې د قیمت وصولولو اجازه نه لري.

اما الاول: فلوجود اذن الحاکم، قال الله تبارك وتعالیٰ: وما افأ الله علی رسوله منهم فما اوجفتم من خیل ولا رکاب ولکن الله یسلط رسله علی من یشاء (سورة الحشر)(۱) وجاز اتخاذ البیعة (وغیرها) مسجدا کما فی حدیث النسائی: فاکسروا بیعتکم واتخذوها مسجداً، (مشکواة شریف ۷۳)(۲) واما الثانی: فلان اتخاذ المساجد من فرائض الحکومة لما فی ردالمحتار ۳: ۴۹۵ فانه یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجدا من بیت المال او من مالهم ان لم یکن لهم بیت المال کذا فی فتح القدیر(۳) قلت لاسیما اذا قبض الغلة. وهوالموفق

## د عیدګاه د پاره باقاعده وقف شوې ځمکه باندې د مسجد جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو قطعه د ځمکې چې په درې کنالو باندې مشتمل ده د عیدګاه سره ملحقه کومه چې د مخکې نه د ښهر د کمیټۍ د طرف نه د عیدګاه دپاره وقف شوې ده هغې لره یو سړې اخستلو سره مسجد تعمیر کول غواړي آیا دا صحیح ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: غلام نبی قریشی دفتر زراعت ایبټ آباد .... ۱۹ جنوری ۱۹۷۶ء

---

۱) (سورة الحشر پاره ۲۸ آیت: ۶)

۲) (مشکواة المصابیح ۱: ۶۹ باب المساجد ومواضع الصلوة الفصل الثانی)

۳) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۳۹۳ قبیل مطلب قد یثبت الوقف بالضرورة)

**الجواب:** که د ځمکې دا حصه شرعی وقف وی نو دا به په عیدګاه باندې خرچ کولې شی نه په مسجد باندې، کما فی وقف الاشباه ۸۲ شرط الواقف یجب اتباعه لقولهم شرط الواقف کنص الشارع(۱). وهوالموفق

## د ریلوې په ځای کې د مسجد جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په ښهر جهلم کې یو مسجد چې د هغې محل وقوع په بازار کې د کیدو د وجې نه د مونځ کونکو کثرت دې او د مسجد ځای وړوکی او ناکافی دې تردې چې بعض وخت د ځای د نه ملاویدو د وجې نه خلق د اول جماعت د ختمیدو انتظار کوی د مسجد نه شاته مغربی طرف ته د ریلوې ځای دې د ریلوې حکامو نه د اخستلو کوشش وکړو خو د ریلوې حکام وائی چې د ریلوې د قانون مطابق د یو انچ ځمکې خرڅول هم ممنوع دی خو په کرایه باندې ملاویدې شی، تر د یو کم سلو کالو پورې به مسجد سره وی، ځای هم داسې دې چې د ریلوې په کار نه راځی او دا اعتراف د ریلوې حکام او مشران هم کوې چې اوس حال دا دې چې د مسجد کمیټی په دې ځای باندې د مسجد شکل جوړ کړې دې او چنده ئې هم وصول کړې ده، د کمیټئ والاارادہ ده چې د موجوده مسجد په ځای دې په طور د صحن مسجد استعمال کړې شی، اوس به د دې حکم د مسجد وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالودود مدرس جامعه حنفیه مدنی مسجد جهلم ښهر ۲ جولائی ۱۹۸۶ء

**الجواب:** که هغه ځای کې د مسجد ضرورت وی او حکومت د جوړولو دپاره تیار نه وی نو عوام مسجد جوړولې شی. کما یدل علیه ما فی رد المحتار ۳۹۵/۳ یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجدا من بیت المال او من مالهم ان لم یکن لهم بیت مال(۲) وهوالموفق

---

۱) (الاشباه والنظائر ۱۹۴ کتاب الوقف مبحث استبدال الوقف)

۲) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳:۳۹۳ کتاب الوقف)

## د روډ په غاړه باندې د محکمه پی ډبلیو ډی په ځمکه باندې د جوړ شوی مسجد مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د پی ډبلیو ډی شارع عام چې د هغې ټول پلنوالې تقریبا دوه سوه فټه دې او پوخ سړک چې په هغې باندې شپه او ورځ موټر ګرځي د هغې پلن والې تقریبا شپیته فټه دې د پوخ سړک دواړو طرفونو ته کچه سړک دې کوم چې اوولس فټه ښی طرفته دې او اویا فټه ګس طرف ته، د سړک په څه حصه باندې ونې ولاړې دی دا لاره د دې پوخ سړک نه زیاتې ده، بعض ځایونو کې قابل استعمال او اکثر ځایونو کې قابل استعمال نه ده، د سړک په دې زیاتې حصه باندې اهل محله تقریبا ۱۵ یا شل کاله مخکې یو مسجد جوړ کړې دې چې په هغې کې باقاعده پنځه وخته مونځ او د جمعې او اخترونو مونځ کولې شی، د مسجد مذکوره د وجې نه په لاره تیریدونکو او تلونکو ته هم څه ضرر اوتکلیف نه وی بلکې موټران ښه په آسانئ سره تیریږی او په فتاوی عالمګیریه ۴۰۶/۲ مطبوعه نورانی کتب خانه پشاور باندې دا عبارت لیکلې شوې دې، ذکر فی المنتقی عن محمد رحمه الله فی الطریق الواسع بنی فیه اهل المحلة مسجداً وذلك لا یضر بالطریق فمنعهم رجل فلا بأس ان یبنوا کذا فی الحاوی قوم بنوا مسجداً واحتاجوا الی مکان یتسع المسجد واخذوا من الطریق وادخلوه فی المسجد ان کان یضر باصحاب الطریق لا یجوز وان کان لا یضر بهم رجوت ان لا یکون به بأس کذا فی المضمرات. لهذا بعض مفتیانو حضراتو د مسجد د جواز حکم ورکړې دې اوس د پوښتنې خبره داده چې مسجد مذکورلره پی ډبلیو ډی والا راغورځولې شی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اسحاق سلیمی ګرها موړ وهاړی

**الجواب:** من جانب مولانا عبدالرحمن صاحب!

مسجد مذکور شرعا مسجد دې چې د هغې ورانول او خرابول بالکل جائز نه دی لکه چې د جزئیات مذکوره فی السوال او لاندې جزئیات نه ښه واضح دې خو اهل محله لره د متعلقه محکمې نه اجازت اخستل پکار دی، او انهدام مسجد کلی طور باندې شرعی نقطه نظر سره یو ناجائز فعل دې چې په هغې

باندې فقهاء امت متفق دی، په شامی کې دی: اما جعل كل المسجد طريقا فالظاهر انه لايجوز قولا واحدا(۳۸۳/۳) معلومه شوه چې د انهدام مسجد په عدم جواز باندې اجماع ده او په دې کې اختلاف نشته لهذا په محکمه والو باندې لازم ده چې هغوی د دې جومات جوړولو اجازت ورکړي. ﴿ وان بنى للمسلمين كمسجد ونحوه لا ينقض ﴾ (در مختار ۳۷۲/۵) وهكذا في تكملة البحر الرائق ۳۹۵/۸، والله اعلم بالصواب.

المجيب: عبدالرحمٰن عفا الله عنه.

**الجواب:** من جانب مفتي اعظم مولانا محمد فريد صاحب دامت بركاتهم!
دا جواب صحيح دې د دې مسجد راغورځول صحيح نه دی، خصوصا چې قوم د حکومت ډیوټی پوره کړې ده. كما في ردالمحتار ۳: ۴۹۵ يجب ان يتخذ الامام للمسلمين مسجدا من بيت المال اومن مالهم ان لم يكن بيت المال كذا في فتح القدير(۱). وهوالموفق

## د سابقه مسجد څمکه د نوی مسجد د آبادئ نه بهر کولو سره بیا هم د مسجد په حکم کې ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو زوړ مسجد وو نقشه یې زمونږ سره ده چې د هغې په مغربی دیوال کې کوږ والې وو اوس مستطیل کولو سره نوې تعمیر کړې شوې دې او تقریبا نوی فټه سره د مخکې دیوال د قبلې طرف ته پلنوالې او شمالا او جنوبا پنځویشت فټه اوږد والی والا ځای د مسجد نه بهر پریښودلې شوې دې چې په هغې کې سابقه محراب او اول صف د مخکې مسجد شامل دې اوس مطلوبه خبره داده چې ایا متروکه څمکه د مسجد نه علاوه د نورو مقاصدو دپاره استعمالیدې شي، مثلا د طالبانو کمرې یا دکانونه یا د اهل محله د ماشومانو د تعلیم دپاره برنډه وغیره؟ بينواتوجروا

المستفتي: حکیم عبدالحمید صاحب... ۲۰ مئی ۱۹۷۴ء

(۱) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳۹۳ قبيل مطلب قد يثبت الوقف بالضرورة)

**الجواب:** د مفتی به قول په بناء دا مخصوص ځای همیشه دپاره د مسجد په حکم کې دې، په دې باندې دکان یا کور جوړول حرام دی،

لما فی الدر المختار ۳: ۵۰۳ ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عند الامام والثانی الی قیام الساعة وبه یفتی[1] وبمعناه فی جمیع کتب الفتاوی[2] ووجه الدلالة ظاهر۔ وهو الموفق

## د مسجد د ورانیدلو نه پس دوباره د آبادئ یا په څه ځمکه باندې د کښت او کروندې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې تقریبا درې کناله ځمکه باندې مسجد آباد وو، د مسجد آبادی ورانه شوه او د مسجد ځمکه د یو سړی په نوم وه هغه په بل چا خرڅه کړه کوم سړی چې دا ځمکه واخستله هغه په نیمه ځمکه باندې مسجد تعمیر کړو او باقی نیمه ځمکه ئې د مسجد په مفاد یعنی د امام د تنخواه وغیره دپاره په کرونده یعنی اجاره باندې ورکړه، آیا د دې باقی ځمکې کرونده جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: لطیف الرحمٰن اکوړه خټک ....... ۲ جولائی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** د مفتی به قول په بناء به دا ځمکه د مسجد په حکم کې وی، په دې باندې کرونده کول جائز نه دی، کما فی الدر المختار: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عند الامام والثانی ابداً الی یوم القیامة، وبه یفتی، فی رد المحتار

---

[1] (الدر المختار علی هامش رد المحتار ۳: ۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد اوغیره)

[2] وفی الهندیة: واذا خرب المسجد واستغنی اهله وصار بحیث لا یصلی فیه عاد ملکا لواقفه او لورثته حتی جاز لهم ان یبیعوه او یبنوه داراً وقیل هو مسجد ابداً وهو الاصح کذا فی خزانة المفتیین۔
(فتاوی عالمگیریة ۲: ۴۵۸ الباب الحادی عشر فی المسجد)

۵۱۳:۳ وکذا لوخرب ولیس له ما یعمر به وقد استغنی الناس عنه لبناء مسجد آخر، فافهم(۱). وهوالموفق

## د پخوانی مسجد په بدلون کې د دوچند ځمکې وغیره ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ مسجد اوس تنګ شوې دې چا چې د دې دپاره ځمکه وقف کړې وه هغه وائی چې که تاسو د دې ځای نه دا مسجد منتقل کولې شئ نو زه به د دې په بدل کې دوچند ځمکه درکړم، په دې شرط چې زوړ مسجد به په خپل استعمال کې راولم د دې مسئلې شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ګل بر خان کاتب چنده اخوره کبل سوات.... ۱۹ جمادی الثانیة ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د مفتی به قول په بناء باندې به زوړ مسجد تر قیامته پورې مسجد وی د هغې نه به کښت او پټې نه شی جوړولې، لما فی شرح التنویر: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عند الامام والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتی، حاوی القدسی (علی ردالمحتار ۴:۳۵۸)(۲). وهوالموفق

## د سرکاری نهر دپاسه د مسجد جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د سرکاری نهر دپاسه که مسجد جوړ کړې شی نو آیا په هغې کې مونځ جائز دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری عبدالحمید شریک دوره حدیث

**الجواب:** په دې کې لمونځ کول جائز دی. وفی الاجناس وفی نوادر هشام قال سألت محمد بن الحسن عن نهر قریة کثیرة الاهل لا یحصی عددهم وهو نهر قناة

---

۱) (الدر المختار مع ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

۲) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد)

اونهرواد لهم خاصة واراد قومان يعمروا بعض هذا النهر ويبنوا عليه مسجداً ولا يضر ذلك بالنهر ولا يتعرض لهم احد من اهل النهر قال محمد رحمه الله يسعهم ان يبنوا ذلك المسجد للعامة او المحلة كذا في المحيط، هندية ۳: ۴۴۴ (۱). وهوالموفق

## په سرکاري ځمکه کې د حکومت د طرف نه د مسجد دپاره مقرر شوی ځای کې د مسجد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د بهټو صاحب په دور حکومت کې د غريبانانو په مطالبه باندې د هغوی د کورونو جوړولو دپاره ځای ورکړې شوې وو کوم چې د پنډئ او ټيکسلا ترمينځه دې تراوسه پورې څه مکانات جوړ شوې دی او څه نه په دې مقام باندې حکومت د مسجد دپاره هم ځای مختص کړې دې بعض سرکاری کاغذات هم موجود دی خو چا سره چې کاغذات دی هغه موجود نه دی، اوس يو سړې مسجد جوړوی خو هغه سره فکر دې چې د مسجد دپاره بنه دې يا نه او ځای هم داسې دې چې حکومت ته د دې ضرورت نشته، يعنی شک صرف په جوړولو کې دې کنه نو حکومت دا ځای: مسجد دپاره متعين کړې دې ددې څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: محمد طيب حاجی آباد اسلام آباد.... ۱۴ شوال ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په کوم مقام چې د مسجد ضرورت وی نو په داسې ځای کې حکومت باندې لازم دی چې هغه مسجد جوړ کړی، كما في ردالمحتار ۳: ۳۳۹ طبع مصطفى البابي الحلبي، فانه يجب ان يتخذ الامام للمسلمين مسجداً من بيت المال او من مالهم ان لم يكن لهم بيت مال كذا في فتح القدير (۲).

پس که حکومت په دې ځای کې د مسجد د تيارولو دپاره تيار نه وی نو کم از کم د مداخلت او اعتراض نه دې اجتناب وکړی، او که حکومت اجازت ورکړې وی نو بيا د شک سوال نشته په هغې باندې تعمير صحيح دې وهوالموفق

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۴۵۶ الباب الحادی عشر فی المسجد وما يتعلق الفصل الاول)

۲) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۳۹۳ مطلب قد يثبت الوقف بالضرورة)

## د چا په ځمکه کښې بغیر د اجازت نه د جوړ کړې شوی مسجد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې یو سړی بل ته یو پلاټ د ځمکې په طور د رهائش ورکړه، دې رهائش کونکی د رهائش نه علاوه په دې کښې د مسجد تعمیر هم کړې دې او حال دا چې د ځمکې مالک پکښې د مسجد اجازت نه ورکوي اوس د دې مسجد څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولوی رقیب خان وزیرستان... ۱۰ نومبر ۱۹۸۹ء**

**الجواب:** د چا په ځمکه کښې بغیر د اجازت نه تعمیر شوي مسجد، شرعی مسجد نه دې، د هغې ورانول جائز دی. **لعدم صحة وقف ارض الغير (۱) ولكراهة الصلاة في ارض الغير بلا اذن المالك (۲) وهوالموفق**

## د مسجد د چندې نه د مسجد د پاره د اخستل شوې ځمکې د بدلون یا خرڅولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې قدیمی جامع مسجد ګنبدتل کښې یوه حصه د ځمکې د مسلمانانو په چنده باندې اخستلې شوې ده چې د هغې آمدن په مسجد باندې خرچ کیږی بیا یو سړی د مسجد دپاره دوه کناله ځمکه وقف کړه، اوس د مسجد نوې تعمیر شروع شوې دې چې په هغې کښې تر اوسه پورې چنده ختم شوې ده نو آیا دا وقف شوې ځمکه د مسجد دپاره خرڅیدلې شی؟ هم دغه شان جامع مسجد لره قبلې طرف ته مخامخ کولو دپاره که د هغه وقف شوې ځمکې نه په څه ځمکه کښې بدلون وکړې شی نو آیا دا جائز ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: حبیب ګل تل کوهاټ... ۲۲ جولائی ۱۴۰۱ھ**

---

۱) وفى الهندية: رجل وقف ارضا لرجل آخر فى برسماه ثم ملك الارض لم يجز وان اجاز المالك جاز عندنا. (فتاوىٰ عالمگيرية ۲:۳۵۳ كتاب الوقف الباب الاول)

۲) قال العلامة الحصكفى: وكذا تكره فى اماكن... وارض مغصوبة او للغير. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱:۲۸۰ مطلب فى الصلاة فى الارض المغصوبة)

**الجواب:** په کومو ښهرونو کې چې زنانه ته میراث نه شي ورکولې اونه د هغوی تملیک کولې شي نو د هغه ښهرونو اوقاف رواجي اوقاف دي اسلامي نه دي، دویم دا چې کوم مسجد د اهل مسجد په چندې یا د مسجد په غلو سره اخستلې شوې ده نو په هغې کې هر قسم تصرف جائز دې.

كما في الذخيرة وقيل ان كان اهل المسجد اشتروا عقاراً بغلات المسجد للمسجد، هل لهم بيعه لعمارة المسجد، قال فيه اختلاف المشائخ وينبغي ان لا يكون في هذا الفصل اختلاف المشائخ لانه لا ولاية لاهل المسجد في شراء العقار للمسجد فلم يصح شراؤهم اصلا للمسجد، ويصح بيعهم بلا خلاف بخلاف مسئلة المتولي، وفي فوائد نجم الدين النسفي رحمة الله عليه اهل مسجد اشتروا عقاراً بغلة المسجد ثم باعوا العمارة اختلف المشائخ في جوازه والصحيح انه يجوز كذا في الغياثية، فافهم (هندية ۲:۴۶۴)(۱)۔ وهوالموفق

## په غیر مملوکه یا مشترکه ځمکه بغیر د اجازت نه مسجد جوړول صحیح نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید او عمرو دواړه ورونه دي په خانداني جائیداد کې دواړه برابر شریک او حقدار دي په دواړو کې اختلاف پیدا شوه او اختلاف ئې د ځمکې په هره حصه باندې پیدا شوه، په متنازعه ځمکه باندې عمرو مسجد هم جوړ کړو او دا د هغه سیاسي چال وو، آیا په دې مسجد کې مونځ کیدې شي؟ او د دې متنازعه ځمکې به څه حال وي؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نور عمل شاه چوا سیدان شاه پنډ داد خان جهلم ... ۲ جولائی ۱۹۸۵ء

**الجواب:** د داسې یکطرفه بیاناتو د وجې نه مونږ د فیصلې کولو نه معذور یو خو په طور د فتوی دا لیکلې شو چې په غیر مملوکه یا مشترکه ځمکه کې

---

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۶۴ قبیل الباب الثاني عشر في الرباطات والمقابر والخانات)

د باقاعده اجازت نه بغیر مسجد جوړول جائز نه دی. (۱) او په داسې مسجد کې مونځ کول مکروه تحریمي او ګناه ده. (۲). وهوالموفق

## د مسجد په نوم باندې د وقف شوې کور د پاره د مسجد د خرچ نه د مقدمې پیروی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوې کونډې زنانه خپل ځای د مسجد په نوم باندې بغیر د اکراه او جبر نه وقف کړو او وقف نامه ئې په سرکار باندې ولیکله، یونیم کال پس دهغه کونډې خپلوانو هغې کونډې ته وویل چې وقف نامه دې منسوخ کړې، خو زنانه په خپله فیصله باندې اقرار کولو، ددې نه پس دغه لواحقینو په عدالت دیوانی کې ددې کونډې په نوم باندې جعلي دعوی وکړه چې وقف نامه دې منسوخ کړې شی، دمسجد انتظامیه ته په خبر کیدو باندې هغوی د کونډې نه تپوس وکړو چې آیا تا دعوی کړې ده؟ هغه کونډۍ وویل چې ما هیڅ دعوی نه ده کړې او نه مې د دعوې اراده ده دا د خپلوانو کارنامه ده اوس سوال دا دې چې په صورت مذکوره کې دا کونډه زنانه د دې وقف نه رجوع کولې شی؟ بله دا چې آیا د مسجد انتظامیه د دې ځمکې دپاره کومه چې د مسجد دپاره وقف شوې ده په مسجد کې د دې مقدمې دفاع او د مسجد فنډ په دې خرچ کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: حافظ عبدالستار خطیب اٹک بنهر ...... ۱۵ رمضان المبارک ۱۴۰۵

**الجواب:** په شرط د صدق دا وقف تام او لازم دې په دې کې واپسی نه شی کیدې، کما فی ردالمحتار ۴:۳۳۹ مطبع مصطفی البابی الحلبی (قوله وعلیه

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: ومن شرائطه الملک وقت الوقف فوقفتها لا تکون وقفاً. (البحر الرائق ۵:۳۱۴ کتاب الوقف)

۲) قال العلامة الحصکفی: وکذا تکره فی اماکن... وارض مغصوبة او للغیر. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱:۲۸۵ مطلب فی الصلاة فی الارض المغصوبة)

الفتوی) أي على قولهما يلزمه قال في الفتح والحق ترجيح قول العلماء بلزومه لان الاحاديث والآثار متظاهرة على ذلك واستمر عمل الصحابة والتابعين ومن بعدهم على ذلك فلذا ترجيح خلاف قوله اه ملخصاً(١).او چونکې چنده ورکونکی چنده د مسجد په مفاد او د مسجد د ضروریاتو دپاره ورکوی لهذا د دې چندې نه په دې مقدمه باندې خرچ کول جائز دی. (٢) وهو الموفق

## د مسجد د پاره وقف شوې ځمکه د امام ابو یوسف رحمة الله علیه په نزد د مسجد په حکم کې ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د مسجد دپاره ځای وقف کړې دې او د هغې بنیادونه یو یو ګز اوچت کړې شوې دی او اوسه پورې په هغې کې د جمعې مونځ نه دې شوې، خو هغې ته نزدې یو بل سړې په یو داسې ځای کې یو ځای وقف کول غواړی کوم چې د اول ځای نهم زیات دې، پس که اول ځای خرڅولو سره یو بل ځای اباد کړی نو آیا دا به جائز وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: رحیم شاه باچا چارسده ..... ٤ فروری ١٩٧٥ء

**الجواب:** دا ځمکه د امام ابویوسف رحمة الله علیه په نزد د مسجد په حکم کې دې د دې اخستل او خرڅول صحیح نه دی، کما فی الدر المختار وبقوله جعلته موقوفاً مسجداً عند الثاني، وفي ردالمحتار ٣: ٥١١ وفي الدر المنتقى وقدمر في التنوير والدرر والوقاية وغيرها قول ابي يوسف وعلمت ارجحيته في الوقف والقضاء(٣).وهو الموفق

---

١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣٩٢:٣ كتاب الوقف مطلب قد يثبت الوقف)

٢) قال العلامة الحصكفي: ويبدأ من غلته بعمارته ثم ما هو اقرب لعمارته كامام مسجد ومدرس مدرسة ثم السراج والبساط كذلك الى آخر المصالح.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ٤١٣:٣ مطلب يبدأ بعد العمارة بما هو اقرب اليها)

٣) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٤٠٥:٣ مطلب في احكام المسجد)

## د مسجد ځمکه به تر قیامته پورې مسجد وي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د علاقه مکران په کلو کې غیرآباده ځمکې پرتې دی کومې چې د چا ملکیت هم نه دي، دا د حکومت زیر تحویل از د بندوبست لاندې دی عام خلق بغیر د څه اجازت نامې نه په خپلې مرضۍ سره د ضرورت موافق کورونه جوړوی او هم دغه شان مسجدونه هم تعمیر کوی څو کاله مخکې په یو میدانی علاقه کې په یو جامع مسجد او نږدې دینی مدرسه جوړه کړې شوه، په مسجد کې جمعه قائم کړې شوه او پنځه وخته مونځ پکې کولې شی، دې کال د یو غیر مقلد په ذریعه د بهرنه فنډ جمع کړې شو، او د پخوانی مسجد سره متصل د لس دولس قدم په فاصله باندې یو پوخ مسجد تعمیر کوی ځکه چې پخوانې مسجد د کچه خښتو دې اوس مې اراده ده چې دا پوخ مسجد د مانځه دپاره استعمال کړې شی او پخوانې مسجد د شاخ په طور د مدرسه حفظ او ناظره دپاره مخصوص وی، آیا دا فیصله جائز ده او که هغه هم هغه شان مسجد دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا عبدالحلیم نظر آباد مکران ... ۱۸ شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** مسجد لره غیر مسجد منل ناجائز دی مسجد به ترقیامته پورې مسجد وی. کما یشیر الیه ما فی شرح التنویر: ولو خرب ما حوله واستغنیٰ عنه یبقی مسجداً عند الامام والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتیٰ حاوی القدسی، ردالمحتار ۴: ۳۵۸ مصطفی البابی الحلبی (۱). وهوالموفق

## د مسجد په وقف کړې شوې ځمکه کې آبادي پریښودل او د هغه ځمکې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلی کې بهر په یو بانډه (دشته) کې د پنځویشت کالو نه یو مسجد آباد دې اوس د بانډې (دشتې) اوسیدونکی په دې ګمان چې یو خو مذکوره مسجد وړوکې دې دویمه خبره دا ده چې د آبادۍ نه لرې دې په دې وجه د کورونو سره

(۱) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳: ۴۰۶ مطلب فی ما لو خرب المسجد اوغیره)

متصل د ځمکې یوه حصه د بل مسجد د تعمیر دپاره وقف کړې شوې ده، چې د هغې په بنیادونو باندې درې ځلور ورځې کار هم کړې شوې دې، وروستو هغوی ته ووئیل شو چې که تاسو دا دویم مسجد آباد کړو نو اول مسجد به وران او غیر آباد شي، پس د مجوزه مسجد تعمیر ترک کولو سره ئې د اول مسجد د توسیع اراده وکړه، اوس پوښتنه داده چې د دې دویم مجوزه مسجد دپاره چې کومه ځمکه وقف کړې شوې ده چې په هغې کې نه مسجد جوړ شوې دې او نه مونځ شوې دې په دې ځای باندې د کرونديٰ وغیره څه حکم دې؟

المستفتی: عبدالوهاب بائز خرکی مردان...... ۲۴ مارچ ۱۹۷۶ء

**الجواب:** که دا ځمکه د یو سړی ملکیت وی او باقاعده د لاري انتظام وکړې شو نو دا زيات احوط کار دې چې په دې ځمکې باندې د مسجد احکام جاری کړې شی. **کما فی البحر ۵:۱۹۷ فالحاصل ان الترجیح قد اختلف والاخذ بقول ابی یوسف احوط واسهل(۱)** او که دا ځمکه د دوه یا ډیرو کسانو ترمینځه شریکه وی یا پرې د لارې انتظام نه وی نو دا وقف به کالعدم وی **کما فی الهندیة ۲:۳۷۳ وقف المشاع المحتمل للقسمة لایجوز عند محمد رحمه الله وبه اخذ مشائخ بخاری وعلیه الفتوی کذا فی السراجیة(۲) والباقی واضح۔ وهوالموفق**

## د وقف علی المسجد دکان بل ځای ته د بدلولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو مسجد مخې ته دوه واړۀ دکانونه دی هر یو دکان مربع ځلور فټه او پوخ دې او مسجد لره شان اورېد دې او د هغې په نیمه حصه کې د چا دکان دې، اوس مونږ سره متصل د یو دکان تبادله د مسجد دپاره په وقف دکانونو سره کول غواړو چې

---

۱) وقال العلامة ابن نجیم: واکثر المشائخ علی قول ابی یوسف ورجح فی فتح القدیر قول ابی یوسف بانه الاوجه.
(البحر الرائق ۵:۴۲۱ فصل فی احکام المسجد)

۲) (فتاوی عالمگیریة ۲:۳۶۵ فصل فی وقف المشاع)

د صحن نه صحیح مسجد جوړ شي او د مسجد د جوړونکي هم دا خوښه ده نو آیا دا بدلون جائز دي؟ بینواتوجروا

المستفتي: مولانا محمد یونس تهانه لاچی کوهاټ...... ۱۹۸۳ء | ۲ | ۱۵

**الجواب:** د وقف علی المسجد بدلون د هغه دکان نه جائز دي چې کله د مسجد مصلحت په هغې کې وي یدل علیه ما فی الهندیة ۲:۳۹۹ وفی القنیة مبادلة دارالوقف بدار اخری انما تجوز اذا کانت فی محلة واحدة وتکون المحلة المملوکة خیرامن محلة الموقوفة وعلی عکسه لایجوز(۱)۔ وهوالموفق

## په مملوکه یا مقبوضه ځمکه کې د مسجد جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه ځمکه چې د هغې اکثر حصه مملوکه ده او بعض پکې مقبوضه هم ده په دې باندې تقریبا سل کاله تیر شوې دي په سرکاری کاغذات کې خو ټوله ځمکه مملوکه ده او اوس په مملوکه او مقبوضه ځمکه کې تمیز او فرق هم ناممکن دې په داسې ځمکه کې د مسجد د جوړولو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: گل احمد قریشی بیکو خیل بنون..... ۱۲ ذوالقعده ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** که غیر مملوکه ځمکه کومه چې اوس مقبوضه ده مغصوبه نه وي یعنی موات یا شاملات وي نو په هغې کې مسجد جوړول جائز دي لوجود شرائط الوقف لجواز بناء المسجد فی الطریق العامة عند عدم الضرر بالمارة کما جاز فی المملوک فلیراجع الی الهندیة ۲:۴۴۴(۲)۔ وهوالموفق

---

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۰۰ باب ما یتعلق بالشرط فی الوقف)

۲) وفی الهندیة: ذکر فی المنتقیٰ عن محمد فی الطریق الواسع بنی فیه اهل المحلة وذلک لا یضر بالطریق فمنعهم رجل فلا بأس ان یبنوا۔
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۵۶ الباب الحادی عشر فی المسجد وما یتعلق به)

## نوې مسجد جوړول مشروع او مخکې مسجد به برقرار وي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یوې محلې آبادی تقریبا په پنځوس شپیتو بالغ کسانو باندې مشتمل ده د دې محلې مسجد د سلو کالو نه مخکې تعمیر شوې موجود دې اوس اهل محله بل مسجد جوړول غواړی کوم چې به په محله کې دننه وی او سابقه مسجد د محلې په آخری سرحد باندې دې او د مجوزه او سابقه مسجد ترمینځه فاصله تقریبا درې سوه گزه ده، بله دا چې په دې صورت کې به سابقه مسجد غیر آباد شی نو په دې صورت کې د نوی مسجد جوړولو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالعزیز بکوټی کوهاله مری..... ۱۹ ستمبر ۱۹۷۶ء

**الجواب:** نوې مسجد جوړول مشروع دی. لعموم حدیث من بنی لله مسجداً بنی الله له بیتاً فی الجنة اوکما قال علیه الصلاة والسلام(۱) خو پخوانې مسجد به ترقیامته پورې مسجدوی، یعنی په هغې باندې به د مسجد احکام جاری کیږی، کما فی شرح التنویر: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتی، حاوی القدسی، فافهم، شرح التنویر علی هامش ردالمحتار۳: ۳۸۱(۲) لنډه دا چې پخوانې مسجد به نه شی شهید کولې. وهوالموفق

## د مونځ کونکو په موجودگئ د زوړ مسجد تحویل او اخستل خرڅول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یوه علاقه کې زوړ مسجد د پلار نیکهٔ د وختو نه آباد کړې شوې دې د هغې نه شاوخوا

---

۱) وفی الهندیة: ذکر فی المنتقیٰ عن محمد فی الطریق الواسع بنی فیه اهل المحلة وذلک لا یضر بالطریق فمنعهم رجل فلا بأس ان یبنوا.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۴۵۶ الباب الحادی عشر فی المسجد وما یتعلق به)

۲) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

مستقل څو كورونه آباد دى، په ګرمئ يخنئ كې همدلته اوسيږى، خو د دې مسجد نه په دوه درې فرلانګ فاصله باندې څو كورونه آباد شوې دى اوس هغه لرې خلق وائى چې مونږ خپل كورونو ته نزدې مسجد ابادول غواړو وجه دا ده چې يو مسجد مونږ نه لرې دې بله دا چې د مقبرې په مينځ كې آباد دې، او مونږ د شپې هلته د تلو نه ويريږو، او حال دا چې نزدې خلق د مسجد په دې انتقال كولو باندې خوشحاله نه دى، د دې اختلاف په صورت كې فيصله څنګه كولې شى، كه انتقال جائز وى نو د سابقه مسجد كانې او لرګى بل مسجد ته انتقال كيدې شى يا نه؟ يا ئې خرڅولې شو يا نه؟ او كومه ځمكه چې پاتې شى نو مقبرې ته د نزدې كيدو د وجې نه په هغې كې مړى دفن كيدې شى يا نه؟ **بينوا توجروا**

**المستفتى: الف، ب، ت... ١٥ دسمبر ١٩٧٤ء**

**الجواب:** واضحه دې وى چې د اهل محله دپاره د مسجد نړول دپاره د مضبوطولو دى، **كما فى ردالمحتار** ج ٣ ص ٥١٢ (١) خو د مونږ كونكو باوجود د يو مسجد تحويل يا خرڅول جائز نه دى. **كما يفهم من الشامية ٣: ٥١٢ وفى جامع الفتاوى: لهم تحويل المسجد الى مكان آخر، ان تركوه بحيث لا يصلى فيه، ولهم بيع مسجد عتيق لم يعرف بانيه وصرف ثمنه فى مسجد آخر (٢، ٣). وهو الموفق**

---

١) قال العلامة ابن عابدين: عن الهندية مسجد مبنى اراد رجل ان ينقضه ويبنيه أحكم ليس له ذلک لانه لا ولاية له مضمرات الا ان يخاف ان ينهدم ان لم يهدم تتارخانية وتاويله ان لم يكن البانى من اهل تلک المحلة واما اهلها فلهم ان يهدموه ويجددوا بناء ه ويفرشوا الحصير ويعلقوا القناديل لكن من مالهم لا من مال المسجد الخ۔
(ردالمحتار هامش الدر المختار ٣: ٤٠٥ مطلب فى احكام الميت)

٢) (ردالمحتار هامش الدر المختار ٣: ٤٠٥، ٤٠٦ قبيل مطلب فيما لو خرب المسجد او غيره)

٣) اقول الظاهر ان المراد بما فى جامع الفتاوى انقاض المسجد فافهم۔ (مفتى سيف الله حقانى)

## د مسجد د ځمکې بدلون او د دويم مسجد د جوړولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو مسجد سره نزدې د پخوا نه څو کورونه آباد کړې شوې وو هغوی سره بعض نور خلق هم آباد شوې دی، بيا هغه وروستو راتلونکو خلقو دوه درې فرلانګ لرې استوګنه اختيار کړه، اول خلك د مسجد سره اوسيږی او لرې اوسيدونکو د هغه خلقو د رضا نه بغير مسجد داسې ځای ته منتقل کړو چې د دواړو په مسافت کې مساوی دې، آيا د مسجد دا انتقال جائز دې؟ هم دغه د مخکې مسجد والا ميدان باندې آبادې کول يا مقبره جوړول جائز دی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: مولانا فضل مولی دلبوړی مدرس حقانيه ... ٤ دسمبر ۱۹۷٤ء**

**الجواب:** دويم مسجد جوړول جائز دی، خو په اول مسجد باندې به ترقيامته پورې د مسجد احکام جاری وی، **يدل عليه ما فی الدرالمختار هامش ردالمحتار ۳:۵۱۳: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه يبقی مسجداً عند الامام، والثانی ابداً الی قيام الساعة وبه يفتی**[1]۔ **وهوالموفق**

## د زوړ مسجد د معطل کولو په صورت کې د نوی مسجد جوړولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې په پنډۍ کې د سول هسپتال په احاطې کې يومسجد دې اوس هسپتال راغورځولوسره نوې تعمير شروع کړې شوې دې په موجوده تعمير کې څه وارډونه بند شوې دی اوڅه پکې جوړيږی، د دې نوی تعمير د نقشې مطابق دې مسجد ته د تلو راتلو ټولې لارې بندې شوې دی چې د هغې د وجې نه به مسجد پخپله وران شی، اوس مسئله دا ده چې آيا د دې مسجد ځای د بل مسجد دپاره وقف کيدلې شی او د دې قديم مسجد ملبه په دې نوی مسجد کې استعماليدلې شی؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: حافظ غلام محمد خطيب ډسټرکټ سول هسپتال**

**راولپنډی ... ۱۰ رمضان المبارك ۱۴۰۳ھ**

---

۱) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فی ما لو خرب المسجد او غيره)

**الجواب:** دا زوړ مسجد دې په خپل حال باندې مسجد (معطل) برقرار وساتلې شی او مسجد جدید دې د ضرورت مطابق په بل ځای کې جوړ کړې شی. (۱) وهوالموفق

**په غیر موقوف ځای کې د جوړ کړې شوی مسجد د بدلون او ملبې حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو ټیکیدار پنځه جریبه بارانی ځمکه په اجاره باندې واخستله، ټیکیدار په خپلې مرضۍ سره په دې ځمکه باندې مسجد جوړ کړو د ځمکې مالک نه وه وقف کړې، پنځه کاله پس مالک دا ځمکه په ټیکیدار باندې د انتقال سره خرڅه کړه او هغه مسجد ئې هم په هغه باندې خرڅ کړو اوس ټیکیدار وائی چې دا مسجد بټۍ سره نژدې دې او په ټرکونو وغیره سره ئې د خرابیدلو خطره ده لهذا که زه په بل ځای کې مسجد جوړ کړم او دا پخوانې مسجد شهید کړم نو د هغې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: شیر بهادر قدیم کلې پیښور ۱۰۰ جون ۱۹۷۶ء

**الجواب:** د دې مخکې مسجد ځمکه د مسجد ځمکه نه ده، په دې ځای باندې بټۍ وغیره جوړول جائز دی **لعدم صحة الواقف علی عقاره** (۲) خو په

---

۱) قال العلامة الحصکفی: ولو خرب ماحوله واستغنیٰ عنه یبقی مسجداً عند الامام والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتی حاوی القدسی۔

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۴۰۶ مطلب فی احکام المسجد)

۲) قال العلامة الحصکفی: بنی علی ارض ثم وقف البناء قصداً بدونها ان الارض مملوکة لا یصح وقیل صح وعلیه الفتویٰ، سئل قاریٔ الهدایة عن وقف البناء والغراس بلا ارض فاجاب الفتویٰ علی صحة ذلک ورجحه شارح الوهبانیة واقره المصنف معللا بانه منقول فیه تعامل فیتعین به الافتاء۔

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۴۲۷ مطلب وقف البناء بدون ارض)

دې چې کومه آبادي ده هغه وقف ده نو دا يا د دې قيمت يا خو په بل مسجد کې خرچ کول ضروري دي. (۱) لصحة وقف البنـاء. وهوالموفق

## د مسجد د ملبو په نورو ځايونو کې د استعمالولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړي مسجد جوړ کړې وو، اوس هم دا سړې بعض نور کورونه جوړول غواړي په دې وجه هغه مسجد له د نوی تعمير او پوخ جوړولو د وجې نه شهيد کړې دې، آيا د دې مسجد ملبه په نورو مکاناتو کې استعمالول صحيح دي. بينواتوجروا

المستفتي: حاجي محمد مانکی صوابي...... ۲۰ فروری ۱۹۸٦ء

**الجواب:** که د مسجد دا ملبه د مسجد ضرورت نه وي نو د مردارو مقاماتو نه علاوه په نورو مقاماتو کې د دې استعمال جائز دې (ماخوذازشامي) (۲) وهوالموفق

## د زوړ مسجد نه لاندې دکانونه جوړولو سره يورته د مسجد د تعمير حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو مسجد له راغورځولو سره د هغې په ځاى باندې دکانونه جوړ کړې شي او په هغې دپاسه د نوی مسجد تعمير وکړې شي، دا جائز دي يا نه؟ که جائز وي نو د دکانونو نفع پورته مسجد ته ورکول جائز دي يا نه؟ حال دا چې راغورځولې شوې مسجد د پنځوس کالو نه دلته آباد وو؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوی محمد ادريس صدر دار العلوم گورنمنټ چارباغ سوات.. ۱۳ مئ ۱۹۷٦

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: وظاهره انه لا يجوز صرف وقف مسجد خرب الى حوض وعكسه وفى شرح الملتقى يصرف وقفها لا قرب مجانس لها.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۰۷ مطلب فى نقل انقاض المسجد ونحوه)

۲) قال العلامة ابن عابدين: (قوله الى اقرب مسجد او رباط) وظاهره انه لا يجوز صرف وقف مسجد خرب الى حوض وعكسه وفى شرح الملتقى يصرف وقفها لا قرب مجانس لها.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۰۷ مطلب فى ما خرب المسجد او غيره)

**الجواب:** دا کور به تر قیامته پورې مسجد وی، د دې کور په احاطه کې دکانونه جوړول جائز نه دی، دا ایجاد او استیجاد دواړه حرام دی.

یدل علی الاول ما فی الدرالمختار: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عند الامام، والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتی، هامش ردالمحتار ۵۱۳:۳(١) قلت فعند محرم الاستغناء ومحرم خراب ما حوله یکون مسجداً بطریق اولی، وفی الهندیة ۴۴۹:۲ قیم المسجد لایجوز له ان یبنی حوانیت فی حد المسجد اوفی فناءه لان المسجد اذا جعل حانوتاً ومسکنا تسقط حرمته وهذا لایجوز والفناء تبع المسجد فیکون حکمه حکم المسجد کذا فی محیط السرخسی(٢). وفی الدرالمختار ولا ان یجعل شیئاً منه مستغلاً. (هامش الرد ۵۱۳:۳)(٣) وبهذا ما فی سائر الفتاوی. وهوالموفق

## د مسجد د پاره په وقف شوې ځمکه کې ډاکخانه جوړول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د مسجد دپاره ځمکه وقف کړې وه، اوس د ځمکې یعنی د مسجد په یو کنج کې د حکومت د طرفنه ډاکخانه جوړولې شی، د میاشتې کرائی به مسجد ته ملاویږی خو ملکیت به مستقل د حکومت وی، آیا د مسجد وقف شوې ځمکه د حکومت د اغراضو او مقاصدو دپاره ورکول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: حمد الله فاضل حقانیه... ۱۰ ربیع الاول ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** کومه ځمکه چې د مسجد دپاره وقف کړې شوې ده په هغې کې سوا د مسجد د متعلقه امورو نه مثلاً دکان یا ډاکخانه وغیره جوړول د واقف په

---

١) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴۰۶:۳ مطلب فی احکام المسجد)
٢) (فتاوی عالمگیریة ۴۶۲:۲ الباب الحادی عشر فی المسجد وما یتعلق به)
٣) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴۰۶:۳ مطلب فی احکام المسجد)

نیت سره مخالفت کیدو سره ناجائز دی، یدل علیه ما فی رد المحتار ۳/۳۶۷ (۱) وما فی الاشباه والنظائر ۱۸۳. (۲) وهوالموفق

## د مسجد په څمکه کې لاره جوړول او
## په هغې باندې قبضه کول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د خپلو کرایه دارو دپاره او د خپل تلل راتلل دپاره د مسجد د څمکې نه لاره جوړه کړې ده، زید د مسجد انتظامیه راطلب کړو او وې ویل چې مونږ دا لاره بندوو څکه چې په مین روډ باندې د مسجد دروازه خلاصه شوې ده، زید وویل چې د لارې په بندولو سره به ما او زما کرایه دارو ته تکلیف وی، په دې وجه زه د دې پریښودلو تیار نه یم، خو د څمکې د دې تکړې چې کوم قیمت وی زه د هغې د ورکولو دپاره تیار یم حال دا چې زید سره متبادل بله لاره هم موجود ده انتظامیه خلکو وویل چې شرعا مونږ د خرڅولو اجازه نه لرو په دې وجه د دې نه لاس واخله خو هغه دهمکیانې ورکوی او خپل سامان ئې په دې لاره باندې ایښې دې د دې شرعی حکم راولیږئ. بینواتوجروا

**المستفتی:** مسجد انتظامیه بازار کل برگ لاهور... ۱۶ اپریل ۱۹۸٤ء

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت په انتظامیه باندې شرعا ضروری دی چې

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: وما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص وهو حکم لا دلیل علیه سواء کان نصه فی الواقف نصا او ظاهراً وهذا موافق لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه کما صرح به فی شرح المجمع للمصنف.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۹۷ مطلب ما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص)

۲) قال العلامة ابن نجیم: شرط الواقف یجب اتباعه لقولهم: شرط الواقف کنص الشارع ای فی وجوب العمل به وفی المفهوم والدلالة کما بیناه فی شرح الکنز الافی مسائل.
(الاشباه والنظائر لابن نجیم ۱۹۴ کتاب الوقف)

په دې لاره باندې تلل راتلل بند کړی. كما في شرح الكبير ٥٢٧ ولا يتخذ طريقاً (١)
او د اصرار په وخت په حکام وغیره باندې ضروري دی چې هغه مجبور کړی.
وهوالموفق

## د مسجد حصه ځمکه په سړک کې شاملول غوره نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد يوه حصه چې په هغې مسجد جوړ وی د سړک دپاره ورانول او هغه د قوم په مفاد کې وی نو دا کار شرعا څنګه دی؟ بينواتوجروا

المستفتی: عباس خان املوک دره تیمره ګره تالاش ..... ۲۵ اګست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** د دې په نسبت چې د مسجد يوه حصه ورانه شی غوره دا ده چې د طرف مقابل دکان یا کور وغیره وران کړې شی؟ (٢) وهوالموفق

## د مسجد په زیاتی ځای کې لاره جوړول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ضیاء الاسلام په خپل ملکیت سره د مسجد دپاره په محله ایوب آباد کې څه ځمکه وقف کړه، د محلې خلقو د مسجد بنیاد کیښودلو او غلطی کولو سره شارع عام هم په هغې کې شامل کړې شو، چې د هغې پلن والې دویشت فټه دې اوس د مسجد مذکوره په مشرقی طرف کې یوه قطعه د ځمکې د طارق او عتیق په نامه ده هغوی د محلې د آبادو دپاره د دې مغربی تکړې طرف ته لاره پریښودله چونکې شارع عام د دې نه مخکې نورو بعض اشخاصو د کور جوړولو په وخت په خپل کور کې د څه حده پورې ورك کړو، هم په دې وجه اهل محله په

---

١) قال العلامة ابراهيم الحلبی : وروى ابن ماجة انه عليه السلام قال خصال لا تنبغی فی المسجد لا يتخذ طريقاولا يشهر فيه سلاح الخ.
(غنية المستملی المعروف بالكبيری ١:٥٢٧ فصل فی احكام المسجد)

٢) وفی الهندية : ان ارادوا ان يجعلوا شيئاً من المسجد طريقا للمسلمين فقد قيل ليس لهم كذلک وانه صحيح كذا فی المحيط.
(فتاوی عالمكيرية ٢:٤٥٧ الباب الحادی عشر فی المسجد وما يتعلق به)

مسجد کې هم دا لاره ورکه کړه او عوامو متبادل لاره اختیار کړه، خو متبادل لاره ناکافی ده د ناکافی کیدو په وجه د مسجد مذکوره نه د مشرق طرف ته پنځه فټه اخستل دی، کوم ځای چې د مسجد نه د مفاد عامه دپاره (شارع عام) حاصلولې شی هغه ځای صرف د څپلو ویستلو او استنجاء خانو دې، یعنی په هغه ځای باندې مونځ نه شی کولې د دې نه علاوه د مسجد صحن هم فراخه دې نو آیا زمونږ دپاره دا عمل جائز دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: سبز علی واهل محله ایوب آباد اکوړه خټک... ۱۷ ربیع الثانی ۱۴۰۲هـ

**الجواب**: په صورت مسئوله کې د دې مخصوص ځای په لاره کې داخلول جائز دی، خصوصا چې کله دا مخصوص ځای په مسجد کې د داخلې شوې لارې بدل وي. یدل علی اصل المسئلة ما فی الشامیة ۳: ۵۳۰ بعد ذکر القول الاول وهو عدم الجواز ثم نقل عن العتابیة عن خواهرزاده اذا کان الطریق ضیقاً والمسجد واسعاً لا یحتاجون الی بعضه تجوز الزیادة فی الطریق من المسجد لان کلها للعامة، والمتون علی الثانی وهو المعتمد(۱)۔ وهوالموفق

## د مسجد طرف ته د عامې لارې نه علاوه د خاص لارې ویستل مضر او ممنوع دی

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د خلقو د مسجد لاره وه او مونږ به ډیر په آسانۍ سره مسجد ته تلو او د محلې خلقو به هم څه نه ویل بیا مونږ د مسجد سره هم په هغه ځای کې یوه کمره جوړه کړه او د هغې سره مو د مسجد طرف ته یوه کړکۍ پریښوده چې زمونږ د مسجد طرف ته لاره وی خو د محلې خلقو مونږ د دې نه منع کړو چې مسجد ته نوې لاره مه جوړوئ، آیا شرعا مونږ دا کړکۍ نه شو لګولې **بینواتوجروا**

**المستفتی**: شیر زمان ټالک دی آئی خان

---

(۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۴۲۰ مطلب فی جعل شیئ من المسجد طریقاً)

**الجواب:** د مسجد طرف ته د عامې لارې نه علاوه نورې خاص خاص لارې جوړول بالعاقبت مضر دی اوپه ظاره کې د حدیث نه هم منع معلومیږي، ﴿لاتبغی خوخة الاخوخة ابی بکر﴾ اوکماقال (رواه البخاری وغیره) (۱) وهوالموفق

## د غیر آباد مسجد لرګي او کاڼي وغیره په بل مسجد کې د لګولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د کلی آبادی بل ځای ته منتقل کیږي او زوړ کلی لره غیر آباد پریښودلو سره په بل ځای کې نوې کلې جوړیږي، خلق پخوانی کورونه راغورځولو سره د هغې نه کاڼي او لرګي اوړي اوپه نوی کورونو کې ئې لګوي، آیا دا خلق د خپل کلی مسجد لره راغورځولو سره د هغې کاڼي او لرګي راوړلو سره په بل مسجد کې استعمالولې شي؟ ځکه چې اوس هغه وران ځای کې د مسجد پاتې کیدل بیکاره دی. بینواتوجروا

المستفتی: الف، ب، ج.. ۱۹ اګست ۱۹۷٤ء

**الجواب:** د مفتی به قول په بناء به مسجد تر قیامته پورې مسجد وی، د دې ورانول به جائز نه وی، خو که لرګي وغیره ضائع او خپله د ختمیدلو خطره وی نو د هغې بل مسجد ته ورکول یا یا د محلې د بااثره خلقو په مشورې سره د هغې خرڅول جائز دی او رقم دې په بل مسجد کې خرچ کړې شی. اماالاول فلمافي الدر المختار: ولوخرب ماحوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عندالامام والثانی

---

۱) عن ابن عباس قال خرج رسول الله ﷺ فی مرضه الذی مات فیه عاصباً رأسة بخرقة فقعد علی المنبر فحمد الله واثنی علیه ثم قال انه لیس من الناس احدا من علی فی نفسه وماله من ابی بکر بن ابی قحافة، ولو کنت متخذا من الناس خلیلاً لا تخذت ابابکر خلیلاً ولکن خلة الاسلام افضل سدوا کل خوخة فی هذاالمسجد غیر خوخة ابی بکر-
(صحیح البخاری ۱:۶۶ باب الخوخة والممر فی المسجد)

ابداً الی قیام الساعة وبه یفتیٰ (هامش ردالمحتار ۳: ۵۱۳)(۱) وفی ردالمحتار: وفی الفتاوی النسفی سئل شیخ الاسلام عن اهل قریة رحلوا وتداعی مسجدها الی الخراب وبعض المتغلبة یستولون علی خشبة وینقلونه الی دورهم هل لواحد لأهل المحلة ان یبیع الخشب بأمر القاضی ویمسك الثمن یصرفه الی بعض المساجد اوالی هذا المسجد قال نعم (۳: ۵۱۴)(۲)۔ وهوالموفق

## د مسجد د لرګو اخستل او خرڅول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد لرګی او تیر وغیره خرڅولو سره حاصل شوې پیسې په مسجد خرچ کړی شی نو دا طریقه صحیح ده؟ آیا د مسجد د لرګو په بل ځای کې استعمال جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد یوسف اکوړه خټک رکن دار العلوم ..... ۱۹۶۹ء

**الجواب:** غوره دا ده چې دا لرګی وغیره هم په دې مسجد کې خرچ کړې شی، خو د دې مسجد په داسې طرز د آبادولو اراده وی چې په هغې کې د لرګو ضرورت نه وی نو په دې صورت کې د دې خرڅول او د مشتری په خپلو ضروریاتو کې خرچ کول جائز دی.

قال العلامة الشامی: والمراد بآلات المسجد نحو القندیل والحصیر بخلاف انقاضه لما قدمنا عنه قریباً من ان الفتوی علی ان المسجد لا یعود میراثاً ولا یجوز نقله ونقل ماله الی مسجد آخر (ردالمحتار ۳: ۵۱۳)(۳) وقال وفی فتاوی النسفی سئل شیخ الاسلام عن اهل قریة رحلوا وتداعی مسجدها الی الخراب وبعض

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

۲) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۴۰۷ مطلب فی نقل انقاض المسجد ونحوه)

۳) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۴۰۷ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

المتغلبة يستولون على خشبه وينقلون الى دورهم هل لواحد لاهل المحلة ان يبيع الخشب بأمر القاضى ويمسك الثمن ليصرفه الى بعض المساجد او الى هذا المسجد قال نعم (ردالمحتار ۳:۵۱۴) (۱)۔ واضحه دې وی چې که دا لرګی وغیره خرچ نه کړې شی نو د څه مودې تیریدلو نه پس به ضرور دا ضائع شی او یا به ئې غله یوسی او یا به ئې واقفین په خپلو ضروریاتو کې ولګوی. لهذا د هغې په خرچ کولو کې څۀ باک نشته. وهوالموفق

## د مسجد دپاسه د رهائی کور تعمیر ممنوع دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې په مسجد دپاسه استوګنه اختیار کړی آیا په هغې کې استوګنه جائز ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولانا نور الحق مغلکی نوښهر

**الجواب:** د مسجد دپاسه د امام وغیره د اوسیدو دپاره کور جوړول منع دی. کما فی شرح التنویر: اما اذا تمت المسجدية ثم اراد البناء منع (هامش ردالمحتار ۵۱۲/۳) (۲) وهوالموفق

## د مسجد د پاسه د طلباء دپاره کمرې جوړول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد دپاسه د طالبانو دپاره د قیامګاه جوړولو څه حکم دې؟ د اکثریت رائې د خلاف ده که شرعا څه ګنجائش وی نو خبر مو کړئ؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مفتی بدر منیر حقانی بټ خیله اماندره ملاکند.... ۹ جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د مسجد کومه حصه چې د مانځه دپاره متعین شوې ده د هغه حصې اوچت والې نه ښکته او پورته او متعلقاتو نه علاوه په نورو ځایونو کې

---

(۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۷ قبيل مطلب فى نقل انقاض المسجد ونحوه)

(۲) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فى احكام المسجد)

تعمیر کول جائز دی یدل علیه مافی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۵۱۲:۳ لوبنی فوقه بیتاً للامام لا یضر لانه من المصالح امالو تمت المسجدیة ثم اراد البناء منع(۱)۔ وهوالموفق

## وقف علی المسجد کور خرڅول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې چې زمونږ په مسجد کې اوس د څه مودې نه د جمعې مونځ شروع شوې دې خو ځای تنګ دې یو صالح سړی د مسجد نه شاته بالکل متصل یو کور واخستلو او د مسجد د توسیع دپاره یې وقف کړې دې، وروستو د مسجد سره متصل شمالی طرف ته بل کور اخستلو سره وقف کړې شو شمالی کور راغورځولو سره په مسجد کې شامل کړې شو، خو مغربی دیوال لره خرڅولو سره په بل ځای کې دکانونه د مسجد د آبادولو دپاره د مصلحت کار دی چې د هغې ګټه به په مسجد او مدرسه باندې لګولې شی، آیا دا طریقه صحیح ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حافظ بشیر احمد نعمانی حافظ آباد ګجرانواله.....۱۱ اپریل ۱۹۸۴ء

**الجواب:** په ظاهره کې مغربی ځای وقف علی المسجد دې د هغې خرڅول بهر حال ناجائز دی که د مسجد د ضروریاتو دپاره وی او که د مدرسې د ضروریاتو دپاره وی (هندیة ۳۵۰/۲)(۲) وهوالموفق

## د مسجد په دیوال کې د بهر طرف نه
## د درسګاه د پاره د الماریٔ جوړولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد د دیوال

---

۱) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۴۰۶:۳ مطلب فی احکام المسجد)

۲) وفی الهندیة: وعندهما جس العین علی حکم ملک الله تعالیٰ علی وجه تعود منفعته الی العباد فیلزم ولا یباع ولا یوهب ولا یورث کذا فی الهدایة.

(فتاویٰ عالمگیریة ۳۵۰:۲ کتاب الوقف الباب الاول)

بل طرف ته نژدې دینی درسګاه ده اوس د مسجد په دیوال کې بهر طرف ته په درسګاه کې قرآن کریم او سیپارو دپاره الماریٔ جوړول جائز دی یا نه؟

بینواتوجروا

المستفتی: مولانا رحیم الله باچا اضاخیل نوښهر ....... ۲۳ ربیع الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په موقوف څیزونو کې معروف تصرف نه علاوه نور تصرفات جائز نه وی، زمونږ په علاقو کې د مساجدو په داخلی حصه کې الماریٔ جوړول متعارف دی نه په خارجی حصه کې. (۱) وهوالموفق

## د سل کاله پخوانی مسجد په انګړ کې دکانونه جوړول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو مسجد سل کاله شوې دی اوس د دې مسجد په انګړ کې دکانونه جوړول جائز دی یا نه؟ که دکانونه جوړ شوې وی نو په هغې کې به د میښې او غوا غوښه خرڅول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: اهالیان خورغاره جلبځ صوابۍ ...... ۲۷ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** په وران شوی مسجد کې دا قسم کارونه کول تول په تول حرام دی. (۲) وران مسجد به هم ترقیامته پورې مسجد وی.

---

۱) یدل علیه ما قال فی الشامیة: ولا یوضع الجذع علی جدار المسجد وان کان من اوقافه قلت وبه علم حکم ما یصنعه بعض جیران المسجد من وضع جذوع علی جداره فانه لا یحل ولو دفع الاجرة.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۶ مطلب فی احکام المسجد)

۲) وفی الهندیة: قیم المسجد لا یجوز له ان یبنی حوانیت فی حد المسجد او فی فنائه لان المسجد اذا جعل حانوتا ومسکنا تسقط حرمته وهذا لا یجوز والفناء تبع المسجد فیکون حکمه حکم المسجد کذا فی محیط السرخسی.
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۶۲ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد وتصرف القیم)

(شرح تنویر علی هامش ردالمحتار ۵۱۳/۳) (۱) وهوالموفق

## په مسجد یا د هغې په حدودو کې دکانونه جوړول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو محلې د مسجد متفرق اخراجات د اهل محله د استطاعت نه خارج دی اوس دا خبره قابل غور دې چې د مسجد د ځمکې نه یوه حصه بیله کړو او په هغې باندې دکانونه آباد کړې شی، د ځمکې دا حصه اګر چې د حد بندئ لحاظ سره په دې حصه کې شامله ده چېرته چې مونځ کولې شی خو عملا دغه حصه د مانځهٔ دپاره نه ده استعمال شوې آیا د مذکوره نوعیت د ځمکې حصه د دکانونو د تعمیر دپاره استعمالول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: پیش امام د خیرآباد هوتی مردان ....... ۵ مئی ۱۹۷۳ء

**الجواب:** د مسجد په دې حصه کې دکانونه جوړول جائز نه دی لما فی الهندیة ۴۴۹:۲ قیم المسجد لا یجوز له ان یبنی حوانیت فی حد المسجد او فنائه لان المسجد اذا جعل حانوتاً ومسکناً تسقط حرمته وهذا لا یجوز والفناء تبع المسجد فیکون حکمه حکم المسجد کذا فی محیط السرخسی (۲) وبمعناه فی البحر (۳) والفتح فلیراجع۔ وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصکفی: ولو خرب ماحوله واستغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام والثانی ابدآ الی قیام الساعة وبه یفتی حاوی القدسی، وقال العلامة ابن عابدین: فلا یعود میراثا ولا یجوز نقله ونقل ماله الی مسجد آخر سواء کانوا یصلون فیه اولا وهو الفتویٰ حاوی القدسی واکثر المشائخ علیه مجتبی وهو الاوجه فتح۔(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد)

۲) (فتاویٰ عالمگیریة ۴۶۲:۲ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد وتصرف القیم الخ)

۳) قال العلامة ابن نجیم: وفی المجتبیٰ لا یجوز لقیم المسجد ان یبنی حوانیت فی حد المسجد او فنائه۔ (البحر الرائق ۵:۴۱۸ فصل من بنی مسجد الم یزل الخ)

## د مسجد د پاره په وقف ځمکه کې د مسجد د امام د پاره د کور د آبادولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه ځمکه د مسجد دپاره وقف کړې شوه وروستو د مسجد تعمیر وشو خو ځمکه خالی پرېښودلې شوه وروستو په دې خالی ځمکه کې د امام دپاره کمره جوړه کړې شوه. د دې کمرې او د مسجد ترمینځه باقاعده دیوال موجود دې په هغې کې کله هم مونځ نه دې شوې اوس د خلقو خیال دې چې د دې کمرې په ځای کې یعنې په دې خالی ځای کې د مسجد د امام دپاره کور تعمیر کړې شی نو آیا د مذکوره کور آبادول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: زیارت گل پیر پیائی نوښهر ... ۲٤ فروری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** که دا ټوله ځمکه صرف د مانځه دپاره وقف شوې نه وی بلکې د نورو مصالحو د مسجد دپاره هم موقوف وی نو په دې خالی ځای کې د امام دپاره کور جوړول جائز دی (۱) کنه نو ناجائز دی (۲) وهوالموفق

## د مسجد د پاسه د بیت الخلاء جوړولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد دپاسه د لاړې طرف ته پورته که په چت باندې بل وروکې ځای جوړ کړې شی او په دې چت باندې بیت الخلاء وغیره جوړه کړې شی نو آیا دا جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: سردار علی حاجی ابراهیم پېښور ..... ۲۱ ربیع الاول ۱٤۰۱هـ

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: لو بنی فوقه بیتا للامام لا یضر لانه من المصالح اما لو تمت المسجدیة ثم اراد البناء منع ولو قال عنیت ذلک لم یصدق تاتر خانیة.
(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:٤۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد)

(۲) وفی الهندیة: البقعة الموقوفة علی جهة اذا بنی رجل فیها بناء ووقفها علی تلک الجهة یجوز بلا خلاف تبعاً لها فان وقفها علی جهة اخری اختلفوا فی جوازه والاصح انه لایجوز.
(فتاوی عالمگیریة ۲:۳٦۲ الباب الثانی فیما یجوز وقفه ومالا یجوز ووقف المشاع)

**الجواب:** د مسجد په حدودو کې بيت الخلاء جوړول ناجائز دی اګر که په پورته حصه کې يا لاندې حصه کې وی.

قال الله تعالیٰ: طهر بيتی للطائفين والقائمين والركع السجود (سورة الحج) (١)

وفی حكمه سائر المساجد، وقال رسول الله ﷺ: وان تنظف وتطيب (رواه ابوداؤد) (٢) وفی شرح التنوير: وكره تحريما الوطی فوقه والبول والتغوط لانه مسجد الى عنان السمآء وفی ردالمحتار وكذا الى تحت الثرىٰ د هامش ردالمحتار ١:٦١٤ (٣). وهوالموفق

## د مسجد اضافی ځای لره د خطيب په کور کې د شاملولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د محکمه اوقاف په کنټرول کې يو مسجد دې چې په هغې کې د مقرر شوی خطيب کور هم دې خطيب صاحب لس فټه پلن او شپيتۀ فټه اوږد د ځمکې احاطه په ځمکه کې شامل کړې دې آيا دا جائز ده؟ بينواتوجروا

المستفتی: حاجی غلام قادر اسلام آباد کالج فارګرلز اسلام آباد ... ١٧ جولائی ١٩٨٣ء

**الجواب:** که دا ځای د مونځ د کولو حصه نه وی او متعلقه متولين په دې باندې اعتراض نه کوی نو هيڅ باک نشته کنه نو بيا به ناجائز وی. (٤)

وهوالموفق

---

١) (سورة الحج پاره: ١٧ آيت: ٢٦)

٢) (سنن ابی داؤد ١:٦٦ باب اتخاذ المساجد فی الدور)

٣) (الدرالمختار مع ردالمحتار ١:٤٨٥ مطلب فی احکام المسجد)

٤) قال العلامة الحصكفی: لو بنی فوقه بيتاً للامام لا يضر لانه من المصالح اما لو تمت المسجدية ثم اراد البناء منع.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٣:٤٠٦ مطلب فی احکام المسجد)

## د مسجد په غیر آباد حصه ځمکه کې د کروندې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد په احاطه کې کوم چې د پخوا نه غیر آباد پروت دې اوس د مسجد امام په دې خالی ځمکه کې یوه ګرځولو سره هغه آباده کړه، او هموارولو سره ئې ترې خس او ازغی صفا کړی دی او د کروندې قابله کړې ئې ده او په هغې کې ئې د سبزئ د کرلو اراده ظاهره کړې ده آیا په دې کې شرعا سبزی کرل او کرونده کول جائز دی؟ بینوا الحق وتوجروا عن الحق

المستفتی: عبدالله خلیفه دربار نادان شهید اکبر پوره نوښهر

**الجواب:** که دا ځای د مسجد د احاطې نه خارج وی یعنی د هغه حصې نه کومه چې د مسجد دپاره وقف شوې دې نو په دې کې هیڅ ممانعت نه دې راغلې او که په مسجد یا د مسجد په احاطه کې داخل وی نو ممنوع دې خصوصا چې کله د ذاتی منفعت دپاره وی، لان المساجد لم تبن لذلك (الحدث)(۱) ویدل علیه ما فی ردالمحتار ۱: ۶۱۸ وان کان لنفع نفسه بورقه او ثمره یکره انتهی مختصراً(۲) وفی الهندیة: قیم المسجد لایجوزله ان یبنی حوانیت فی حد المسجد او فناء ه لان المسجد اذا جعل حانوتاً او مسجدا تسقط حرمته، انتهی (۳: ۲۴۱)(۳) قلت وکذلك جعله مزرعة۔ وهوالموفق

## د مسجد د دوه هالونو ترمینځه د لارې په صورت کې د اقتداء مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو جامع

---

۱) (صحیح مسلم ۱: ۲۱۰ باب النهی عن نشد الضالة فی المسجد، وابوداؤد ۱: ۸۰ باب فی کراهیة انشاد الضالة)

۲) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱: ۴۸۹ مطلب فی الغرس فی المسجد)

۳) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۴۶۲ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد وتصرف القیم)

مسجد په شمالي ګاونډ کې د مسجد د توسیع دپاره زیات ځای حاصل کړې شو چې په هغې کې یو هال تعمیر کولو سره په مسجد کې شامل کړې شي او په جمعه وغیره کې چې کله د مسجد هال ډک شي نو مونځ کونکي دې په شمالي هال کې ودریدلو سره جماعت سره مونځ ادا کړي خو د موجوده مسجد او مذکوره حال ترمینځه شرقا او غربا ګلئ تیریږي اوس بعض حضرات وائی چې ذکر شوې ګلئ به د اقتداء د جواز دپاره مانع وی؟. اوس صحیح مسئله څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: مولاناغلام حبیب نقشبندی دار العلوم حنفیه چکوال جهلم ٦ ستمبر ١٩٧٢ء

**الجواب:** که دا لاره تنګه وی نو په هغې کې بار اوړونکي سرې او ریړه وغیره نه شي تیریدلې نو د هغه حائل کیدل د اقتداء نه مانع نه دی او که دا لاره وسیع وی نو د هغې حائل کیدل مانع نه وی خو که په دې لاره کې د مونځ په وخت درې څلور کسان ولاړ وی نو بیا هم مانع عن الاقتداء نه دې

قال صاحب الدر المختار: ویمنع من الاقتداء من النساء... اوطریق تجری فیه عجلة الا اذا اتصلت الصفوف الخ (بألاختصار) ردالمحتار (١: ٥٤٥، ٥٤٨)(١)

وبمعناه في الشرح الكبير وغيره(٢)۔ وهوالموفق

## د مسجد لرګی اخستلو سره استعمالول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ١: د مسجد خرڅ

---

١) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ٤٣٣، ٤٣٢: ١ باب الامامة)

٢) قال العلامة ابراهيم الحلبي: والصحيح ان لا يمكن فيه سير الزورق فهو صغير لا يمنع وما يمكن فيه فهو كبير لكن ذكر في التاتار خانية عن المنتقى للحاكم الشهيد انه انما يمنع في هذه الحالة اذا كان الناس يمرون فيه فان كانوا لا يمرون لا يمنع انتهى، ولا يخلو عن نظر لانه حينئذ بمنزلة الطريق الذي تمر فيه العجلة وهو مانع مطلقا فينبغي ان يمنع۔
(غنية المستملي المعروف بالكبيرى ٤٥٢ فصل في الامامة)

شوی لرګی وغیره کوروښو ته وړولو سره سیزل جائز دي یا نه؟ ۲ که لرګي سیزلې شوې وی نو په سیزونکی باندې څه جرم عائد کیدلې شی چې د هغې کمې پوره کړې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نثار احمد خان پوتهه شریف کوه مری... ۹ اپریل ۱۹۶۹ء

**الجواب:** ۱: چونکې د اخستلو نه پس دا د مشتری ملکیت جوړ شوې دې لهذا د دې احترام باقی پاتې نه شو ۲: د دې قیمت ادا کول او په مسجد کې خرچ کول ضروری دی (۱) وهوالموفق

**د یو مسجد دپاره اخستلې شوې سیمنټ او بل مسجد ته د قرض ورکولو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د یومسجد د آبادولو دپاره پنځوس بورۍ سیمنټ پراته دی او د نورو مسجدونو والاکه لس بورۍ سیمنټ په طور د قرض واخلی، نو د دې شرعی حیثیت څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: حافظ محمد قاسم حقانی میکانکی روډ کوئټه... ٤ جمادی الاول ۱٤۰۲ھ

**الجواب:** محلې د اهل حق وعقد یا متولی د هغوی د مالونو نه قرض ورکولې شی خصوصا چې کله په دې قرض ورکولو کې په هلاک او بربادیدو سره حفاظت موجود دې.یدل علیه ما فی الهندیة: ۲: ٤٥۰ اما المال الموقوف علی المسجد الجامع ان لم تکن للمسجد حاجة للمال فللقاضی ان یصرف فی ذلك (النائبة والحادثة) لکن علی وجه القرض،فافهم(۲).وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: وفی فتاوی النسفی سئل شیخ الاسلام عن اهل قریة رحلوا او تداعی مسجدها الی الخراب وبعض المتغلبة یستولون علی خشبه وینقلونه الی دورهم هل لواحد لاهل المحلة ان یبیع الخشب بامر القاضی ویمسک الثمن لیصرفه الی بعض المساجد او الی هذا المسجد قال نعم. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۰۷ مطلب فی انقاض المسجد او نحوه)

۲) (فتاوی عالمگیریة ۲:٤٦٤ قبیل الباب الثانی عشر فی الرباطات والمقابر الخ)

## په جومات باندې د فدیه، عشر او زکوٰة نه علاوه باقي تبرع او خیرات خرچ کولې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مړ کیدونکي پسې په طور د خیرات او صدقې رقم د مسجد په فنډ کې ورکړې کیدې شي؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: عزیز الرحمٰن کټوزئي چارسده

**الجواب:** په مسجد باندې فدیه، عشر او زکاة نه شي خرچ کیدلې (1) تبرع او خیرات خرچ کیدلې شي. **وهوالموفق**

## د مسجد په نوم باندې جبري چنده اخستل جائز نه دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته یو بدمعاش سړې دې اکثر خلق د مجبورئ د وجې نه د هغوی نه ویریږي او په خپل کلي کې د مسجد په بهانه باندې چنده راټولوي او هم د دې مسجد په نوم باندې په چندو سره هغه د ځان دپاره یو بلډنګ او کور هم جوړ کړې دې نو آیا د مسجد دپاره زبردستي چنده راټولول جائز دي؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: عاشق حسین شاهور سرویکي، وزیرستان ... ۲۵ اپریل ۱۹۷۲ء

**الجواب:** جبري چنده اخستل اګرچې دمعطي د ذات حوالې سره وي، ناجائزدي، (قال رسول الله ﷺ: لايحل مال امرء الابطيب نفس منه)(2) **وهوالموفق**

---

(1) قال العلامة الحصكفي: تمليكاً لا اباحة كما مر لا يصرف الى بناء نحو مسجد ولا الى كفن ميت وقضاء دينه... لعدم التمليك وهو الركن.
(الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲:۶۹ باب المصرف)

(2) (مشكواة المصابيح ۱:۲۵۵ باب الغصب والعادية الفصل الثانى)

## د مسجد د تعمیر د پاره د عوامو نه د چندې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا د مسجدونو د تعمیر دپاره په مختلفو طریقو سره چنده جمع کولې شی آیا د دې شرعا جواز دې؟ آیا د مساجدو تعمیر د اسلامی حکومت فریضه ده او که د عام مسلمانانو؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** معراج شبقدر فورټ چارسده .....۱۱ جولائی ۱۹۸٤ء

**الجواب:** چونکې تر اوسه پورې موجوده حکومت د انګریزانو په نقش قدم باندې ولاړ دې، لهٰذا د انقلاب نه مخکې د عوامو نه چنده دپاره د مسجد تعمیر جائز ده. (۱) عوام بغیر د مطالبې نه د مړی په تجهیز او تکفین کې هم حصه نه اخلی. وهوالموفق

## په مسجد کې د چنده کولو او ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مسجد کې د جمعې په ورځ باندې چې کومه چنده بیلولې شی د هغې په باره کې دوه رائې دی یو طرف ته علماء کرام وائی چې دا په سوال کې داخل ده چې د هغې په پاره کې منع راغلې ده چې په مسجد کې سوال کول او ورکول جائز نه دی، د دویم طرف علماء کرام وائی چې په دې سره د دین تقویت راځی او په دې سره اصلاح المسلمین مطلوب دې، دې باره کې ستاسو څه فتوی ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولوی عبدالعزیز کوهستانی...۲۱ جولائی ۱۹۷۹ء

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: فانه یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجداً من بیت المال او من مالهم ان لم یکن لهم بیت مال کذا فی فتح القدیر۔ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۳۹۳ قبیل مطلب قد یثبت الوقف بالضرورة)

وایضاً یدل علیه حدیث جریر: تصدق رجل من دیناره من درهمه من ثوبه من صاع تمرة حتی قال ولو بشق تمرة الی آخر الحدیث۔ (مشکواة المصابیح ۱:۳۳ کتاب العلم)

**الجواب:** چنده د استعانت نوم دې چنده ارباب اقتدار هم کوی په دې کې ذلت نه وی (۱) په خلاف د سوال کې فقهاء کرامو په مسجد کې سوال کول او سائل ته ورکول په بعض وختونو کې ممنوع گرځولي (۲) د دې نه د اعانت او استعانت د عدم جواز تخریج کول صحیح نه دی. **وهوالموفق**

## د مسجد د تعمیر د پاره په مسجد کې چنده غوښتل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد د تعمیر دپاره په مسجد کې چنده جائز ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: ډاکټر هدایت الله چار باغ سوات.. ۲۵ ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

---

۱) یدل علیه ما فی الشامیة: فانه یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجدا من بیت المال ومن مالهم ان لم یکن لهم بیت مال کذا فی فتح القدیر۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳۹۳:۳ مطلب قد یثبت الوقف بالضرورة)

وایضاً یدل علیه حدیث جریر: قال کنا فی صدر النهار عند رسول الله ﷺ فجاء قوم عراة محتابی النمار اوالعباء متقلدی السیوف... لما رای بهم من الفاقة فدخل ثم خرج فامر بلالا فاذن واقام فصلی ثم خطب... تصدق رجل من دیناره من درهمه من ثوبه من صاع بره من صاع تمرة حتی قال ولو بشق تمرة الی آخر الحدیث۔ (مشکوٰة المصابیح ۳۳:۱ کتاب العلم)

وفی المسلم: عن جریر رضی الله تعالیٰ عنه قال خطب رسول الله ﷺ فحث علی الصدقة بمعنی حدیث جریر۔ (صحیح مسلم ۳۴۱:۲ باب من سن سنة حسنة)

۲) وفی الهندیة: فاما تخطی السوال فمکروه بالاجماع فی جمیع الاحوال کذا فی البحر الرائق، المختار ان السائل اذا کان لا یمر بین یدی المصلی ولا یتخطی رقاب الناس ولا یسأل الناس الحافا ویسأل لامر لابد منه لا بأس بالسوال والاعطاء ولا یحل اعطاء سوال المسجد اذا لم یکونوا علی تلک الصفة المذکورة کذا فی وجیز الکردری۔

(فتاوی عالمگیریة ۱۴۸:۱ الباب السادس عشر فی صلاة الجمعة)

**الجواب:** په مسجد کې چنده کول منع نه دي چې کله د خطبې دوران کې نه وي او د مونځ کونکو مخې ته د تیریدلو خطره هم نه وي

یدل علیه ما رواه مسلم عن جریر مرفوعاً، تصدق رجل من دیناره ومن درهمه، الحدیث (مشکواة ۱: ۳۴ کتاب العلم)(۱) وما روی ان النبی ﷺ امر بالتصدق علی سلیك الغطفانی عند الخطبة فمنسوخ محمول علی قبل حرمة الکلام فی الخطبة(۲). وهوالموفق

## د صاحب استطاعت خلقو د مسجد دپاره د چندې ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو کلی د خلقو استطاعت مسجد لره د کچه جوړولو دې خو هغوی د دې دپاره د یو بل نه چنده غواړی چې پوخ مسجد جوړ کړی آیا دا جائز ده؟ که د پوخ مسجد د جوړولو استطاعت ئې هم وی خو بیا هم چنده غواړی د دې څه حکم دې؟

بینواتوجروا

المستفتی: عبدالله فاضل حقانیه...... ۱۷ مئی ۱۹۸۳

**الجواب:** چونکې د موجوده دور خلق که صاحب استطاعت هم وی یا غیر اهل استطاعت، په مساجد جوړولو او نورو انتظاماتو کې په رضا او رغبت سره حصه نه اخلی، لهذا د دې کارونو دپاره چنده غوښتل قابل اعتراض نه

---

۱) (مشکواة المصابیح ۱: ۳۳ کتاب العلم الفصل الاول)

۲) قال فی منهاج السنن: والرابع انه منسوخ بما ذکرنا کما جنح الیه العینی تبعا للطحاوی. (منهاج السنن شرح الترمذی ۳: ۶۰ باب فی الرکعتین اذا جاء الرجل والامام یخطب)

وقال الشیخ البنوری: ولشیخنا العثمانی فی فتح الملهم بسط شاف فی هذه المسألة وجنح البدر العینی تبعاً للطحاوی الی القول بالنسخ بان الصلاة والکلام کان عند اباحة الافعال فی الخطبة وزاد شیخنا العثمانی القول بتعارض ادلة الحظر والاباحة وترجیح ادلة الحظر. (معارف السنن ۴: ۳۸۱ قبیل باب ماجاء فی کراهیة الکلام والامام یخطب)

دي، کنه نو د مانځه د ترک یا د جماعت د ترک دپاره به عذرونه کوی (۱)

وهوالموفق

## د تربیلا ډیم د متاثره مساجدو د حکومتی رقم حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د متاثرین تربیله ډیم د مسجدونو قیمتونه د هم هغه مسجدونو د متاثره آبادۍ والا خلقو ته ورکولې شی د دې صورت دا وی چې د متاثر اوسیدونکو په اتفاق سره څو رکنی کمیټی تشکیل کیدو سره د محکمې د طرف نه د دې کمیټۍ د چوکیانو په صورت کې هغه رقم ورکولې شی چې هغوی ئې په متاثره آبادۍ کې تقسیم کړی، آیا په دې صورت کې رقم په ذاتی تصرفات کې استعمالول صحیح دی؟ په دې سره صرف د مساجدو تعمیر وکړې شی او که په بل مسجد کې خرج کړې شی؟ او که په متاثر آبادۍ کې خرج کړې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد وارث الوره هری پور هزاره.... ۲۲ مئ ۱۹۷۲

---

۱) قال العلامة ابن عابدين : فانه يجب ان يتخذ الامام للمسلمين مسجداً من بيت المال او من مالهم ان لم يكن لهم بيت مال كذا فى فتح القدير.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳۹۳:۳ قبيل مطلب قد يثبت الوقف بالضرورة)

ويدل ايضا عليه ما فى الحديث: عن جرير قال كنا فى صدر النهار عند رسول الله ﷺ فجاء قوم عراة محتابى النمار اوالعباء متقلدى السيوف عامتهم من مضر بل كلهم من مضر فتحمر وجه رسول الله ﷺ لما رأى بهم من الفاقة فدخل ثم خرج فامر بلالاً فاذن واقام فصلى ثم خطب فقال... تصدق رجل من ديناره من درهمه من ثوبه من صاع بره من صاع تمرة حتى قال ولو بشق تمرة الى آخر الحديث.

(مشكواة المصابيح ۳۳:۱ كتاب العلم)

وفى رواية مسلم فحث على الصدقة بمعنى حديث جرير.

(صحيح مسلم ۳٤۱:۲ كتاب العلم باب من سن سنة حسنة)

**الجواب:** اگر چې د مفتی به قول په بناء باندې به مسجد د همیشه دپاره د مسجد په حکم کې وی، **کمافی الهندیة۲/۳۲۵**(۱) **والدرالمختارعلی هامش ردالمحتار(۳/۵۱۳)**(۲) خو د ضرورت د وجې نه په غیر اصح قول باندې فتوی ورکول هم جائز دی، **کمافی ردالمحتار:۱/۶۹**(۳) او د حکومت حکم په ضرورت کې داخل دې پس د امام محمد رحمه الله په قول باندې به عمل کولې شی او د دې مسجد قیمت به باقاعده تقسیم کولې شی یعنی د ځمکې قیمت به وقف کننده یا د هغوی شرعی وارثانو ته ورکولې شی. **وهوالموفق**

## په تربیلا ډیم کې د ډوبو شوو مساجدو په بدله کې د حکومتی رقم مصرف

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په تربیلا ډیم کې چې کومې ځمکې او کورونه ډوب شوې دی حکومت د هغې رقم خلقو ته

---

۱) وفی الهندیة: فی فتاوی الحجة لو صار احد المسجدین قدیما او تداعی الی الخراب فاراد اهل السکة بیع القدیم وصرفه فی المسجد الجدید فانه لا یجوز اما علی قول ابی یوسف فلان المسجد وان خرب واستغنی عنه اهله لا یعود الی ملک البانی واما علی قول محمد رحمه الله وان عاد بعد الاستغناء ولکن الی ملک البانی وورثته فلا یکون لاهل المسجد علی کلا القولین ولایة البیع والفتویٰ علی قول ابی یوسف انه لا یعود الی ملک مالک ابداً کذا فی المضمرات.
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۵۸ الباب الحادی عشر فی المسجد وما یتعلق به)

۲) قال العلامة الحصکفی: ولو خرب ماحوله واستغنیٰ عنه یبقی مسجدا عند الامام والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتی حاوی القدسی وعاد الی الملک ای ملک البانی او ورثته. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

۳) قال العلامة ابن عابدین: وفی المعراج عن فخر الائمة لو افتی مفت بشیی من هذه الاقوال فی مواضع الضرورة طلبا للتیسیر کان حسنا...وذلک من مواضع الضرورة.
(ردالمحتار ۱:۵۵ مطلب لا یجوز العمل بالضعیف حتی لنفسه)

ورکوی په هغه کورونو کې مساجد هم دی چې د هغې پیسې هم ملاویږی اوس د مساجدو په بدله کې چې کومې پیسې ملاویږی هغه دې قوم په خپل مینځ کې تقسیم کړی یا په دې سره نور نوی مساجد آباد کړی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: عبدالهادی متاثرین تربیله ډیم**

**الجواب:** په دې رقم سره به مسجد آبادولې شی، دا پیسې به نه شی تقسیمولې، **لعدم صحة بیع المسجد علی قول ابی یوسف رحمه الله وهوالمفتی به کما فی جمیع الفتاوی(۱) فیؤخذ هذا المال تعاونا لا تبادلا فافهم وتدبر.(۲)**

**وهوالموفق**

## د عبدالقادر جیلانی رحمة الله علیه په نوم سالانه خیرات په مسجد کې خرج کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مونږ هر کال د شیخ عبدالقادر جیلانی رحمة الله علیه په نوم باندې خیرات کوو او دغې ورځې ته مونږ یوولسمه وایو، په هغې باندې زمونږ تقریبا دولس سوه روپئ خرج کیږی تیر کال مونږ دا کار ونکړې شو په دې وجه په دې کال یوځائې خیرات کول غواړو، یعنی سل روپئ به خیرات کوو، اوس مسئله دا ده چې زمونږ مسجد تعمیر

---

۱) قال العلامة الحصکفی: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عند الامام والثانی ابدا الی قیام الساعة وبه یفتی حاوی القدسی، قال ابن عابدین: فلا یعود میراثا ولا یجوز نقله ونقل ماله الی مسجد آخر سواء کانوا یصلون فیه او لا وهو الفتوی حاوی القدسی واکثر المشائخ علیه مجتبی وهو الاوجه فتح.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

۲) یدل علیه ما فی الشامیة: وفی جامع الفتاوی لهم تحویل المسجد الی مکان آخر ان ترکوه بحیث لا یصلی فیه ولهم بیع مسجد عتیق لم یعرف بانیه وصرف ثمنه فی مسجد آخر. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۵ مطلب فی احکام المسجد)

غواړي نو آیا موږ دا پیسې د مسجد په تعمیر باندې خرچ کولې شو؟ آیا د دې ثواب به د حضرت روح ته ملاو شي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: حمید الله آرمز ډیلرز خیبر بازار پشاور.... ۱۹۷۲ء | ۹ | ۲

**الجواب**: ایصال ثواب اګر چې د طعام په صورت کې هم کیدې شی خو د مسجد د آبادولو په شکل کې غوره دې ځکه چې د مسجد آبدول صدقه جاریه دي (۱) **قال رسول الله ﷺ: اذا مات الانسان انقطع عنه عمله الا من ثلاثة الا من صدقة جارية (رواه مسلم) (۲)**.

**نوټ**: نذر لغیر الله حرام دي (۳) او ایصال ثواب جائز دي او هغې لره د زمانې او وقت سره خاص کول د حرمت سبب دي (۴) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة التفتازاني: وفي دعاء الاحياء للاموات وصدقتهم اى صدقة الاحياء عنهم اى عن الاموات نفع لهم خلافاً للمعتزلة... وقد توارثه السلف... وعن سعد بن عبادة انه قال يا رسول الله ان ام سعد ماتت فأى الصدقة افضل قال الماء فحفر بئراً وقال هذا لام سعد... والاحاديث والآثار في هذا الباب اكثر من ان تحصىٰ. (شرح العقائد النسفية ۱۷۲ دعاء الاحياء للاموات وصدقتهم)

۲) (الصحيح لمسلم ۲:۴۱ باب ما يلحق الانسان من الثواب بعد وفاته)

۳) قال العلامة الحصكفي: واعلم ان النذر الذي يقع للاموات من اكثر العوام... تقربا اليهم فهو بالاجماع باطل وحرام، قال ابن عابدين: (باطل وحرام) لوجوه منها انه نذر لمخلوق والنذر للمخلوق لا يجوز لانه عبادة والعبادة لا تكون لمخلوق الخ- (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۳۹ مطلب في النذر الذي يقع للاموات)

۴) قال العلامة ابن البزاز الكردري: ويكره اتخاذ الطعام في اليوم الاول والثالث وبعد الاسبوع والاعياد- (فتاوى البزازية على هامش الهندية ۴:۸۱ كتاب الصلوة الفصل الخامس)

## د مسجد د فنډ نه د مړ شوی امام د بنځې د امداد وغیره حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په مسجد کې د ډیر وخت نه میاشتنی چنده دپاره د مسجد د اخراجاتو چې د هغې نه د مسجد د امام تنخواه هم ورکولې شی، دوه کاله مخکې امام صاحب د الله پاک په قضاء سره وفات شوې دې د هغوی یو رشته دار خپل ځان پیش کړو او تنخواه ئې وصولوله او دا تنخواه به ئې کونډې او د هغوی بچو ته ورکوله، هغوی دوه درې میاشتې مخکې په تنخواه کې اضافه هم کړې وه، چونکې د مسجد رجسټر هم د حافظ صاحب سره دې لهذا د خپلې تنخواه په ځای په هغې کې د وفات شوی امام بنځې لیکله، د خلقو دپاره دا خبره قابل اعتراض وه او هغوی ته ووئیل شو چې تاسو د بیا دپاره تنخواه په خپل نوم باندې وصولوئ بیا تاسو ته اختیار دې چې چاته ئې حواله کوئ چې جواز قائم شی، خو حافظ صاحب وائی چې زه خو مفت تعلیم ورکوم تاسو چې کوم رقم ورکوئ کونډې او د هغې بچو ته ورکوئ اوس د دې په باره کې څو سوالات دی!

۱: آیا د مسجد د امام په وفات کیدو باندې د مسجد د فنډ نه د هغه وارثانو ته د میاشتې پیسې ورکول جائز دی؟

۲: که جائز نه وی نو آیا اهل محله په خپله چنده د هغوی امداد کولې شی؟

۳: که اهل محله خپله ووائی چې که امام تنخواه اخلی یا نه اخلی مونږ د هغوی تخواه لره فرض کولو سره د مسجد د فنډ نه کونډې او د هغې بچو ته ورکولو په حق کې یو آیا دا به جائز وی؟

۴: که منتظم د فنډ په دې ناجائز فیصله کې لیت ولعل کوی نو آیا هغه حق په جانب دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: ماسټر عبدالله ډیره اسماعیل خان... ۹ ستمبر ۱۹۷۴ء

**الجواب:** محترم! د دې ټولو امورو د جواز او عدم جواز دارومدار په چنده ورکونکی یا د هغوی د طرف نه کوم چې متولی مقرر کړې شوې دې په مرضئ

باندې ده، ﴿لان هذا المال لم يخرج عن ملكهم﴾ (١) فافهم. وهوالموفق

## د مسجد د فنډ نه د غسل خانو وغيره د تعمير مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد په احاطه کې درې غسل خانې او درې د استنجا ځايونه او يو سبيل اودس په اتو نلکو باندې مشتمل نزدې جوړ شوې دې د پخوا زمانې نه د شرعی مسجد د حطيم نه دا مقامات خارج وو اوس د مسجد نوې تعمير شوې دې خو مذکوره غسل خانې وغيره تر اوسه پورې هم په هغه زوړ طرز باندې قائم دی، لهذا د مسجد کميټئ دا رائې پيش کړه چې چونکې د مسجد په ځلورو ديوالونو کې ماشومان په پاک او ناپاکو لاسونو سره دلته اوبه څښی چې د هغې قوی امکان دې چې د غسل په وخت د پاکئ او ناپاکئ فرق نه شی کيدې، دويم دا چې د کوهی بوقې لره د اوبو د سبيل طرف ته د اوبو اچولو دپاره استعمالولې شی او د غسل کولو والاد غسل خانو طرف ته، هم دغه شان ډير کسان شاته د اودس کولو دپاره ولاړ وی ځکه چې اتۀ نلکې کافی نه دی او مونږ کونکې زيات دی په دې وجه د مسجد غسل خانې د مسجد د احاطې نه بهر د مسجد د مصالح دپاره منتقل کړې شی.

---

١) چونکې د چندې رقم د خرچ کولو نه مخکې د عطيه کوونکو ملك وی. يدل عليه ما فی الملتقط : اذا جمع دراهم لكفن ميت ففضل او كفنه غيره يصرف الى المعطين فان لم يوجدوا يصرف الى كفن مثله فان تعذر ذلک يتصدق به.
(الملتقط فی الفقه الحنفية ٢٧ مطلب فی جواز امامة الصبی)

لهذا دا دهغوی په اجازت يا د متولی په رضا باندې موقوف دې. يدل عليه ما فی الهندية : ويبدأ من غلاته بما فيه من عمارتها واجور القوام عليها واداء مؤنها فما فضل من ذلک يصرف الى عمارة المسجد ودهنه وحصيره وما فيه مصلحة المسجد على ان للقيم ان يتصرف فی ذلک على ما يرى واذا استغنیٰ هذا المسجد يصرف الى فقراء المسلمين فيجوز ذلک كذا فی الظهيرية.
(فتاویٰ عالمگيرية ٢:٤٦٠ الفصل الثانی فی الوقف على المسجد وتصرف القيم)

استنجا خانو او سبیل لره د اوبو د مشین په ذریعه د پائپ یا نلکې په ذریعه دوارو طرفونو ته نکلې لګولو سره اورد کړې شی، د دې دپاره اتفاق وشو چې چونکې د مسجد دپاره وقف شوی خمکه کې (بازارونو کښ) دولس دکانونه درې ګیراجونه او یو کور جوړ شوې دې چې د هغې نه د میاشتې یو سل شپیتۀ روپۍ ګټه حاصلیږی په دې درې وارو ګیراجونو کې یو ګیراج کوم چې بالکل د مسجد نه بیرونی دروازې طرف ته واقع دې او هغې سره متصل د قوم پخوانۍ وقف شوې کوهې هم موجود دې په دې وجه قوم او کمیټۍ دوارو دا ګیراج د غسل خانو دپاره منتخب کړې دې (چه د هغې امدن اووۀ روپۍ د میاشتې دې) چې یو خو غسل خانې بهر منتقل شی او دویم دا چې بهر کوهې کوم چې وقف دې هم پوره طریقې سره په استعمال کې راوستلې شی. او د مسجد په پاکوالی کې به اضافه کولې شی، خو په دې تبوله معامله کې تبول قوم سوا د سوا د درې څلورو کسانو نه متفق دی دې درې څلور کسانو ویلې دی چې د مسجد ګټه په بیرونی غسل خانو باندې نه شی خرچ کیدلې حال دا چې موجوده غسل خانې هم د پخوا زمانې نه د مسجد د وقف شوې ګټې د اخراجاتو د لاندې وې او د قوم اکثریت دا وویل چې مونږ دا کار د مسجد د پاکوالی او د مونځ کونکو د سهولت، په جماعت کې د اضافې او د مسجدونو د اصلاح دپاره کوو

د جناب عالی په خدمت عرض دې چې آیا د مساجدو د اصلاح دپاره دا غسل خانې بهر تعمیر کیدلې شی یا نه، حال دا چې قدیم غسل خانې هم د پخوا زمانې نه د مسجد په احاطه کې د شرعی مسجد نه بهر جوړې شوې دی او صرف د مسجد ګټه په هغې باندې خرچ کیدله. که دا بهر منتقل کیدې شی او د مصالح د وجې نه په هغې باندې خرچ کیدې شی نو د لویو کتابونو په حوالې سره جواب ولیکۍ او که نه شی آبادیدلای نو آیا قوم د دې دپاره چنده ورکړی او که نه؟ **بینوا وتوجروا**

المستفتی: محمود الحسن اختر لچه غلام پشاور ..... ۲ رمضان المبارک ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** که د دې غسل خانو وغیره سره بل څه اهم تعمیر متعلقه مسجد نه وی نو بیشکه د دې غسل خانو وغیره تعمیر د دې فنډ نه جائز دې

في الدرالمختار: ويبدأ من غلته بعمارته ثم ماهو اقرب لعمارته كامام مسجد ومدرس مدرسة يعطون بقدر كفايتهم ثم السراج والبساط كذلك الى آخر المصالح انتهى(١)۔ اودا بېشکه د وخت په مصلحاتو کې داخل دی. وهوالموفق

## د يو مسجد چنده په بل مسجد کې لګول
## او د مسجد فنډ په مسجد کې جمع کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: زمونږ په کلی کې ډېر مساجد دی چې په هغې کې یو لوی جامع مسجد دې د اخترونو مونځ په هغې کې کولې شی د مسجد امام هم یو دې اوس د مسجد چنده په بیلو بیلو دکانونو بندې جمع کیدلې شی نو آیا د یو مسجد چنده په بل مسجد باندې خرچ کیدلې شی؟ مشرانو فیصله کړې ده چې د مسجدونو سابقه جمع شوې پیسې د دکاندارانو نه اخستلو سره په نیشنل بینک کې جمع کړې شی چې د هغې نه منافع یا سود وصولولو سره په مسجد باندې خرچ کړې شی، آیا دا طریقه جائز ده؟ بینواوتوجروا

المستفتی: عبدالرشید جهلم ... ۱۹۷۴ء\۱۱\۲۳

**الجواب:** ۱: که دا رقم د چندې وی نو د چنده ورکونکو یا د هغوی د وکیل په اجازت سره په بل مسجد باندې خرچ کول صحیح دی. **لعدم خروجه عن ملكهم بخلاف الموقوف على المختار**(٢)

---

١) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳:۴۱۲،۴۱۳ مطلب يبدأ من غلة الوقف بعمارته)

٢) قال العلامة ابن عابدين : قال الزيلعي وعلى هذا حصير المسجد وحشيشه اذا استغنى عنهما يرجع الى مالكه عند محمد وعند ابي يوسف ينقل الى مسجد آخر وعلى هذا الخلاف الرباط والبئر اذا لم ينتفع بهما، وصرح في الخانية بان الفتوىٰ على قول محمد قال في البحر وبه علم ان الفتوىٰ على قول محمد في آلات المسجد وعلى قول ابي يوسف في تابيد المسجد، والمراد بالآت المسجد نحو القنديل والحصير بخلاف انقاضه لما قدمنا عنه قريباً من ان الفتوىٰ على ان المسجد لا يعود ميراثا ولا يجوز نقله ونقل ماله الى مسجد آخر۔ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۷ مطلب في ما لو خرب المسجد او غيره)

۲: چې کله ئې په نوور طریقو سره حفاظت ممکن وی نو په بینک کې ساتل به حرام وی اګر چې بغیر د سود نه وی، لکونه تعاوناً علی المعصیة (۱) او ربا یعنی سود ساتل بهر حال حرام دی.

**نوټ**: په موجوده بینکونو کې منافع او سود یو څیز دې. وهوالموفق

## د یو مسجد چنده په بل مسجد کې د خرچ کولو حکم

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو مسجد دپاره چنده جمع شوې ده کومه چې د مسجد د ضروریاتو نه زیاته ده او د دې محلې خلق هم ټول مالدار دی نو آیا د دې مسجدونو چنده په نورو مسجدونو کې خرچ کول جائز دی؟ بینواوتوجروا

المستفتی: حافظ فصیح اللسان ابو ظهبی یو اے ای... ۲ ذوالقعده۱۴۰۲ھ

**الجواب**: د چنده ورکونکو په اجازت سره او هم دغه شان د هغوی د وکیلانو په اجازې سره په بل مسجد باندې صرف کیدلې شی، لبقاء ملکهم علی عطیاتهم الآن کما کان (۲) وهوالموفق

## د مسجد د ګاونډیانو دپاره تنګه کوڅه د مسجد نه وضع کول

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو مسجد د ګاونډیانو د کورونو ضروریاتو لاره ډیره تنګه ده د بار او د خرګاډی د بوتلو قابله نه ده، یعنی د مسجد دې ګاونډیانو ته ډیر زیات تکلیف دې که د

---

۱) قال الله تعالیٰ: ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان- (سورة المائدة آیت: ۲پاره: ۶)

۲) یدل علیه ما فی الدر: وعن الثانی ینقل الی مسجد آخر باذن القاضی ومثله فی الخلاف المذکور حشیش المسجد وحصره مع الاستغناء عنهما وکذا الرباط والبئر اذا لم ینتفع بهما فیصرف وقف المسجد والرباط والبئر والحوض الی اقرب مسجد او رباط او بئر او حوض- (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳:۴۰۷ مطلب فی ما لو خرب المسجد او غیره

مسجد نه لږه شان حصه په دې لاره کې شامله کړې شي نو د ګاونډیانو به ډیر کار جوړ شي او مسجد هم وسیع دې نو د دې څه حکم دې؟ بینواوتوجروا

المستفتی: خلیفه عبدالله ناداں شهید اکبر پوره نوښهر ..... ۱۱ اکتوبر ۱۹۷۲ء

**الجواب:** لاره په مسجد کې داخلول جائز دی خو د مسجد نه لاره جوړول چې کله عامه لاره وی نو د راجح قول په بناء باندې ناجائز دی.او د مسجد نه خاص لاره جوړول د چا په نزد هم جائز نه دی.فی ردالمحتار ۳:۳۸۳ وان اراد اهل المحلة ان يجعلوا شيئا من المسجد طريقا للمسلمين فقد قيل ليس لهم ذلك وانه صحيح ثم نقل عن خواهرزاده اذا كان الطريق ضيقا والمسجد واسعا لا يحتاجون الى بعضه تجوز الزيادة فى الطريق من المسجد لان كلها للعامة انتهى والمتون على الثانى فكان هو المعتمد،انتهى ما فى ردالمحتار(۱).وهوالموفق

### د مسجد د دیوال سره متصل په خپل کور کې غسل خانه جوړول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په خپل کور کې د مسجد د دیوال سره متصل غسل خانه جوړول څنګه دی؟ د غسل خانې شکل به داسې وی، چې یو دیوال به په مسجد کې وی او باقی درې دیوالونه به مونږ خپله جوړوو؟ بینواوتوجروا

المستفتی: مهریش خان مهمند ایجنسی...یکم شوال ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که دا غسل خانه د مسجد د متعلقات نه نه وی نو د دې مسجد د دیوال نه صرد د پردې د حاصلولو په صورت کې دا کار قابل اعتراض نه دې (۲) وهوالموفق

---

۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۲۰ مطلب فی جعل شیئ من المسجد طریقاً)

۲) چونکې په دې صورت کې د مسجد په دیوال باندې نه تیر کینبودلې شی او نه د دې نه څه انتفاع حقیقی اخستلې شی بلکې صرف... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د مسجد په څمکه کې د مردارو اوبو ناله جوړول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مسجد کې دننه د صف نه لاندې یوه پلیته ناله چې په هغې هر قسم مردارې اوبه او متیازې وغیره د ټول کلی راځی جوړول جائز دی یا نه؟ **بینواوتوجروا**

**المستفتی: محمد زرین اوچ ضلع دیر**

**الجواب:** که دا ناله زړه نه وی نو د مسجد د لاندې د هغې مطلقاجوړول جائز نه دی، که پاکې اوبه وی او که ناپاکې،

لان الفقهاء صرحوا بعدم جواز التصرف فی علو المسجد وسفله بما لایکون راجعاً الی مصالح المسجد فلیراجع الی ردالمحتار ۳:۵۱۲ (۱). وهوالموفق

---

بقیه ازحاشیه گذشته] په طور د پردې د دې دیوال استعمالول جائزدی او په عرف کې دا قسم انتفاع استیفاء حق نه شی شمار کولې او نه په مستقبل کې په دې دیوال باندې د ملکیت د دعوې څه خطره موجود ده لهذا دا قسم انتفاع (پرده حاصلول) مباح دی په دې شرط چې د مسجد دیوال ته په اوبو سره یا بل څه څیز سره نقصان ونه رسیږی. هم دغه شان دا پرده حاصلول هم یو قسم د ذاتی استعمال د راوړلو په صورت کې دی، په دې وجه حتی الامکان د دې نه ځان ساتل غوره دی. وفی الشامیة: ونقل فی البحر قبله ولا یوضع الجذع علی جدار المسجد وان کان من اوقافه قلت وبه علم حکم ما یصنعه بعض جیران المسجد من وضع جذوع علی جداره فانه لا یحل ولو دفع الاجرة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۰٦ مطلب فی ما لو خرب المسجد او غیره)

(۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله او جعل فوقه بیتا الخ) ظاهره انه لا فرق بین ان یکون البیت للمسجد اولا الا انه یؤخذ من التعلیل ان محل عدم کونه مسجدا فیما اذا لم یکن وقفاً علی مصالح المسجد وبه صرح فی الاسعاف فقال واذا کان السرداب او العلو لمصالح المسجد او کانا وقفا علیه صار مسجداً... وحاصله ان شرط کونه مسجداً ان یکون سفله وعلوه مسجداً لینقطع حق العبد عنه لقوله تعالیٰ... وان المساجد لله بخلاف ما اذا کان السرداب والعلو موقوفا لمصالح المسجد فهو کسرداب بیت المقدس هذا هو ظاهر الروایة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۰٦ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

## د مسجد پکې یا بل څیز په کور کې د استعمالولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد د امام په کمره کې دوه د بجلۍ یا د عام استعمال نور څیزونه د دوه نه زیات موجود وی په مسجد کې یو پکې یا د عام استعمال په څیز باندې گزاره ممکن ده، په دې کې اضافی پکې یا بل څه اضافی څیز د مسجد امام په خپل کور کې د استعمال دپاره اوړی آیا دا جائز ده؟ آیا د مسجد د امام دا تاویل د شریعت په نزد مسموع دې یعنی شرعا جواز لری چې بل پکی په حجره کې لگیدلې وی نو لازما به چلیږی، او هم دغه شان به په مسجد باندې زیاته خرچه راځی یا به ئې غل وغیره غلا کولو سره یوسی. الی غیرذلك من التاویلات. بینوا وتوجروا

المستفتی: میاں خلیل گل فاضل خیر المدارس زیارت کاکا صاحب ... ۲٤ جولائی ۱۹۷۳ء

**الجواب:** که چنده ورکونکی او د محلې د مشرانو اجازت نه وی نو د امام دا کار ناجائز دې، لعدم اذن الملاك ومن قاموا مقامهم ... که دا څیزونه موقوف شرعی وی نو دا کار به بهر حال ناجائز وی، ونظیره ما فی الهندیة ۱۱٦:۱ ولا یحمل الرجل سراج المسجد الی بیته ویحمل من بیته الی المسجد کذا فی الخلاصة(۱).وهوالموفق

## د مسجد د توسیع د پاره د اخستلې شوې ځمکې د بدلولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مسجد انتظامیه د مسجد د فنډ نه د مسجد د توسیع په غرض سره د جنوب طرف ته د ځمکې یوه حصه واخستله او د مبیعه ځای سره نیمه مرله بائع د مسجد دپاره وقف کړه، هم دغه شان په مسجد کې توله څلور نیمې مرلې ځمکه شامل کړې شوه، خو تر اوسه پورې په دې کې فرض مونځ د جماعت سره نه

(۱) (فتاوی عالمگیریة ۱۱۰:۱ فصل کره غلق باب المسجد)

دې ادا کړې شوې، اوس د مسجد په عمارت کې د برنډې ذکر شوې حصه د ځمکې سره نږدې لګیدلې ده او د کمرې حصه د مسجد د امام د ذاتی رهائشی کور سره نږدې ده، په کمره کې د جنوب طرف برنډې سره سره د فراخولو دپاره د هغه کور څه حصه پکاره ده چې امام صاحب د مسجد د نوې اخستلې شوې ځمکې په عوض ورکولو باندې تیار کړی، آیا انتظامیه د مسجد د مفاد په خاطر د مسجد د نوې اخستلې شوې ځمکې څه حصه بدلولې شی؟ بینواوتوجروا

**المستفتی:** حفیظ الله مسجد یارا خیل کوتها صوابی.......٦ جمادی الثانی ١٤٠٢ھ

**الجواب:** که اخستلې شوې حصه ځمکه زبانی طور نه وی وقف کړې شوې نو په دې حصه کې دا مسئوله بدلون جائز دې. لعدم تحقق ما یزول به الملك وما تتم به الوقف، فلیراجع الی الشامیة ٣/٥١١، ٥١٣.(١) وهوالموفق

## د جومات نه د پخوانۍ زمانې نه کورونو ته جاری د اوبو نلکې (پائپونه) په نیشت حساب دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د جومات نه اته نلکې (پائپونه) کورونو ته تلې دی خو د هغی بعضې نلکې (پائپونه) خرابی شوې دی او د هغې نه اوبه بهیږی د دې خرابتیا د وجې نه د جومات عمارت هم خرابیږی لهذا مونږ هغه نلکې (پائپونه) ختمې کړې، اوس هغه

---

(١) قال العلامة الحصکفی: وشرعاً حبس العین علی حکم ملک الواقف... عنده... وعندهما هو حبسها علی حکم ملک الله تعالی... ورکنه الالفاظ الخاصة کارضی هذه صدقة موقوفة... والملک یزول عن الموقوف باربعة بقضاء القاضی... او بالموت اذا علق به او بقوله وقفتها فی حیاتی وبعد وفاتی موبداً الخ.

(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ٣٩٩،٣٩١:٣ کتاب الوقف)

خلق دوباره د نلکو (پائپونو) د لگولو مطالبه کوی آيا هغه خلق په دې نلکو (پائپونه) لگولو کې په حقه دی؟ بينواتوجروا

المستفتي: سيد نذير اضاخيل نوښهر ... ۱۷ ربيع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** جومات د الله پاك كور دې په دې کې د جومات د حقونو نه علاوه د چا حق هم نشته، د بې علمۍ د وجې نه چې د اوبو وغیره حق د مخکې نه راروان وو هغه به د ناجائز کيدو د وجې نه باطل او کالعدم وی.

لما في شرح المجلة ۲۲ الضرر لا يكون قديماً ولهٰذا قالوا لا عبرة للقديم المخالف للشرع القويم فلوكان لدار مسيل ماء على الطريق العام ويحصل منه للمارين ضرر فاحش فلا يعتبر قدمه ويؤمر صاحبه برفعه(۱).وهوالموفق

## د جومات د ټينكۍ نه د اوبو پائپ په كور كې د لگولو حكم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې په صدر بازار نوښار کې يو جومات واقع دې په دې جومات کې کوهې دې او د کوهی دپاسه ټينكۍ جوړه شوې ده چې په هغې کې د بجلۍ د موټر په ذريعه اوبه جمع کولې شی (يعنی د مونځ كونكو د استعمال دپاره) يو سړې چې د هغه جائيداد د جومات سره نزدې دې خواهش لرى چې د جومات دټينكۍ نه د كور د استعمال دپاره پائپ ولگولې شی او ورسره به د اوبو معاوضه هم وركوى، آيا شرعا دې سړی ته د جومات د ټينكۍ نه پائپ تلې شی؟ بينواتوجروا

المستفتي: كميټى مسجد رضوان نوښار ... ۳۰ ذی قعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا معامله ناجائز ده د موقوف كوهی نه د موقوف پائپ په ذريعه وتلې شوې اوبه كومې چې په موقوف ټينكۍ کې جمع شوې وی هغه

---

(۱) (شرح المجلة لسليم رستم باز ۲۲: ۱ الماده: ۷)

موقوف دی.(۱) دغه شان دا بیع یا اجاره بذات خود هم منع ده. لعدم یقین المبیع اوالماء الخارج(۲) وهوالموفق

## د جومات پکې کور ته د وړلو، د جومات په دیوال باندې د چهت اچولو او د زړو پوزکو د استعمالولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: یو سړی د جومات دپاره یو پکې ورکړو د هغه پکی د جومات د امام دپاره په کور کې استعمالول څنګه دی؟

۲: د جومات د ملکیت په یو کور کې یوه کمره جوړول دی چې د هغې دیوال د جومات د انګڼې د چاردیوارئ دیوال دې نو د ذکر شوې کمرې هم د دې جومات په دیوال باندې دیوال اچول صحیح دی؟

۳: د جومات د زړو پوزکو استعمال په دې کور کې څنګه دې چې د کمرو په چهتونو باندې واچولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شبیر احمد غزنی خیل بنوں..... ۹ شوال ۱۴۰۲ھ

---

۱) وفی الهندية: واذا جعل السقاية للشرب فاراد ان يتوضأ منها اختلف المشائخ فيه واذا وقف للوضوء لا يجوز الشرب منه وكل ما اعد للشرب حتى الحياض لا يجوز منها التوضؤ كذافی خزانة المفتيين (فتاوىٰ عالمگيرية ۴۶۵: ۲ الباب الثانی عشر فی الرباطات والمقابر)

۲) په شرح مجله کې دی، واعلم ان اكثر ما ورد على خلاف القياس من الاحكام الشرعية مبنی على الحاجة كالبيع بالوفاء... وكذا دخول الحمام لما كان زمان المكث فيه ومقدار ما يصب من الماء غير معلوم فالقياس يقتضى عدم الجواز وقد جوز لحاجة الناس، (شرح المجله للآتاسی ماده: ۳۲) ددې نه معلومه شوه چه د حاجت او ضرورت په وخت اګرچې د اوبو مقدار وغیره معلوم نه وی دا بیع یا اجاره جائز ده، لیکن په تپوس کړې شوی صورت کې هیڅ حاجت او ضرورت نشته. لما فی شرح المجلة: الضرورات تقدر بقدرها يعنی كل فعل او ترک جوز للضرورة فالتجويز على قدرها ولا يتجاوز عنها- (ماده: ۲۲) په دې وجه به دا مسئله په خپل اصل یعنی په (نامعلوم مبیع) باندې به مبنی وی- (ازمرتب)

**الجواب:** ۱: که دا پکې موقوف (وقف شوې) وی نو په دې کور کې به ئې استعمال ناجائز وی، ونظیره ما فی الهندیة ۴۶۹/۲ متولی المسجد لیس له ان یحمل سراج المسجد الی بیته وله ان یحمله من البیت الی المسجد(۱)

۲: چې هر کله دا کمره د جومات د متعلقات نه ده نو په دې کار کې هیڅ باك نشته

۳: په دې کې هیڅ باك نشته چې کله د دې پوزکو په اخستلو کې څوك شوق نه لری. یدل علیه ما فی الهندیة ۴۴۶/۲. (۲) فلیراجع...وهوالموفق

## د جومات د چهت وغیره په لیو کولو کې د سوټو استعمال

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات د چت وغیره په لیو کولو کې د سوټې استعمال جائز دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی رحیم گل بتګرام..... ۷ اګست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** د ضرورت د وجې نه جائز ده.

کما فی ردالمحتار ۶۱۴:۱ عن الهندیة یکره ان یطین المسجد بطین قد بل بماء نجس بخلاف السرقین اذا جعل فیه الطین لان فی ذلک ضرورة وهو تحصیل غرض لایحصل الا به کذا فی السراجیة(۳).وهوالموفق

---

۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۴۶۲:۲ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد وتصرف القیم)

۲) وفی الهندیة: وفی المنتقی بواری المسجد اذا خلقت فصارت لا ینتفع بها فاراد الذی بسطها ان یأخذها ویتصدق بها او یشتری مکانها اخری فله ذلک وان کان هو غائبا فاراد اهل المحلة ان یأخذوا البواری ویتصدقوا بها بعد ما خلقت لم یکن لهم ذلک اذا کانت لها قیمة وان لم تکن لها قیمة لا بأس بذلک کذا فی الذخیرة.
(فتاویٰ عالمگیریة ۴۵۸:۲ الباب الحادی عشر فی المسجد وما یتعلق به الفصل الاول)

۳) (فتاویٰ عالمگیریة ۳۱۹:۵ الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة والمصحف)

## د جومات په ملکیت کې ونې لګولو سره د هغې د ملکیت وغیره مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات امام د جومات په انګڼ کې یوه اونه وکرله، دوه درې کاله ئې د هغې خیال ساتلو، اوبه وغیره ئې ورکولې، بیا پخپله لویه اونه شوه، څه موده پس د جومات امام د امامت نه معزول شو اوس دا اونه په قیمتی لرګی باندې مشتمل ده ایا د دې معزول امام په دې اونه کې څۀ حصه شته یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد معصوم کرتوپه سرخیل

**الجواب:** که دې سابقه امام د کرلو په وخت دا صراحت نه وی کړې چې دا اونه ما د ذاتی مفاد دپاره کرلې ده نو دا اونه یا د هغې قیمت به په جومات کې خرچ کیږی. **یدل علیه مافی الهندیة ۲:۴۸۸ سئل نجم الدین عن رجل غرس تالة فی مسجد فکبرت بعد سنین فاراد متولی المسجد ان یصرف هذه الشجرة الی عمارة بئر فی هذه السکة والغارس یقول هی لی، فانی ما وقفتها علی المسجد قال الظاهر ان الغارس جعلها للمسجد فلا یجوز صرفها الی البئر، ولا یجوز للغارس صرفها الی حاجة نفسه(۱)۔ وهوالموفق**

## په جومات کې کرلې شوې ونې به په جومات باندې خرچ کولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې دننه یوه لویه اونه ده، آیا د جومات د ضروریات او عمارت د جوړولو دپاره د هغې خرڅول جائز دی؟ دا اونه د جوماتیو امام کرلې وه او دا امام د دې جومات د محلې والو نه نۀ دې، او اوس وفات شوې دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولانا پیر غلام... ۱۳ مئی ۱۹۷۵

(۱) (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۷۷ الباب الثانی عشر فی الرباطات والمقابر والحانات الخ)

**الجواب:** دا اونه یا قیمت به په دې جوماتٍ کې خرج کولې شی.

كما في الهندية ۲: ۴۵۵ واذاغرس شجرا في المسجد فالشجر للمسجد(۱) وفيها ايضاً ۴۵۶ سئل نجم الدين عن رجل غرس تالةً في مسجد فكبرت بعد سنين فاراد متولی المسجد ان يصرف هذه الشجرة الى عمارة بئر في هذ السكة والغارس يقول هي لي فاني ما وقفتها على المسجد قال الظاهر ان الغارس جعلها للمسجد(۲). وهوالموفق

## په سرکاری مسجد کې سابقه قابض امام او د حکومت د طرف نه په مقرر شوی امام کې کوم يو افضل دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د جمرود هائی سکول په احاطه کې د حکومت منظور کړې شوې جومات دې چې هغې سره نزدې د بازار او ګاډو يوه اډه ده د جومات په تعمير کې د حکومت او د بازار د خلقو حصه ده لاتر اوسه پورې د حکومت د طرف نه څه تنخواه او امام مقرر نه دې په دې وجه د سکول د عربئ معلم د امامت فرائض پوره کول. اوس حکومت د دې جومات دپاره باقاعده تنخواه دار امام مقرر کولو سره راليږلې دې خو سابق قابض امام چې د عربئ معلم دې مصلې پرېښودلو ته تيار نه دې او عام خلق هم د هغه حمايت کوی اوس شرعا دا امامت د چا حق دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: اللازكل ... جمرود**

**الجواب:** چونکې دا معلم اجير خاص دې په دې وجه د هغه دپاره د ډيوټئ دوران بل مزدوری جائز نه دې. كما في الدر المختار: ۵/۵۹، وليس للخاص ان يعمل لغيره ولو عمل نقص من اجرته بقدر ما عمل، فتاوى النوازل(۳)

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۴۷۴ والمسائل التى تعود الى الاشجار التى فى المقبرة)

۲) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۴۷۷ قبيل الباب الثالث عشر فى الاوقاف التى يستغنى عنها الخ)

۳) (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۵: ۴۸ باب ضمان الاجير)

خو د تعطیلات او تفریح په وخت غیر سرکاری مزدوری منع نه دي. لعدم اضاعة حق الحبس، پس که دا امام د مخکې نه د تمام یا اکثر قوم غوره کړې شوې یا تر اوسه پورې ټول یا اکثر اهل حل وعقد په دې باندې راضی وی نو دا به نه شی لرې کولې، خو د سرکاری تنخواه حقدار به نه وی. كما في الدر المختار على هامش ردالمحتار ۱: ۵۲۲ اوالخيار الى القوم فان اختلفوا اعتبر اكثرهم فافهم(۱) وفي شرح الاشباه ۲: ۴۰۲ ان الامام ليس له ان يخرج شيئا من يد احد الا بحق ثابت معروف(۲). وهوالموفق

## د جوماتونو د پاره د وقف شوې ځمکو (سیرۍ) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې زمیندارو د مالکانو ځمکې جبرا قبضه کړې دی اوس د جوماتونو دپاره د وقف شوې ځمکو څه مسئله ده؟ ځکه چې په دې علاقه کې د مساجد دپاره سیرۍ وقف شوې دی چې د هغې ګټه او حاصلات د جوماتونو امامان حاصلوی د جومات امامان چې زاړه دی او هم دغه شان وروستو راغلی امامان په دې سیرۍ باندې د خپل ملکیت دعوی کوی او وائی چې سیرۍ د مساجد نه وی د امامانو وی، اوس د جومات داسې امامان چاته چې جومات د امامت په عوض کې ورکړې شوې دی او اوس دعوی کوی چې دا سیرۍ زمونږ ملکیت کې دی که قوم دا امامان د امامت نه لرې کړی لکه چې اوس اوس شوې دی دی او حکومت د سیرۍ دا ځمکې د هغوی ملکیت تسلیم کړی نو آیا دا به د جومات سره زیادت نه وی؟ او آیا په دې دروغ ویلو، منافقت او ناجائز حیلو د وجې نه به په هغوی پسې مونځ جائز وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: ا، ب، ت، ۳ مئی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** محترم المقام دامت برکاتهم! السلام علیکم نه پس دې واضح

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴۱۳:۱ باب الامامة)

۲) (الحموی علی الاشباه ۲۵۲:۳ فوائد وقواعد شتی)

وی چې کومه سیری د جومات په نوم وی نو امام وغیره یو سړی هم د هغې مالك کیدې نه شی، لکونه وقفاً علی المسجد(۱) او کومه سیری چې امام ته ورکړې شوې وی نو امام به د هغې مالك وی، او په هغې کې به د میراث حصې جاری کیږی، ونظیره العمری(۲) الا اذا ثبتت کونها عاریة(۳)

وهوالموفق

## د مسجد امام ته بعضې ځمکه د امامت او خدمت په بدل کې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړی یا قبیله د خپلو علماء کرامو او د دین د مشرانو دپاره د ځمکې یوه حصه د امامت په بدل کې یا د دین د خدمت په بدل کې ورکړی چې دا خلق د معاش د فکر نه لرِ آزاد وی نو دا ځمکه په کوم شمیر کې داخله ده یعنی هبه ده او که وقف؟ او که دواړه نه وی نو آیا بیا ځلویښت پنځوس کاله یا د دې نه زیاته

---

۱) وفی الهندیة : وعندهما حبس العین علی حکم ملک الله تعالیٰ علی وجه تعود منفعته الی العباد فیلزم ولا یباع ولا یوهب ولا یورث کذا فی الهدایة وفی العیون والیتیمة ان الفتویٰ علی قولهما۔
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۳۵۰ کتاب الوقف الباب الاول)

۲) قال العلامة المرغینانی : والعمری جائزة للمعمرله حال حیاته ولورثته من بعده لما رویناه معناه ان یجعل داره له مدة عمره واذا مات ترد علیه فیصح التملیک ویبطل الشرط وقد بینا ان الهبة لا تبطل بالشروط الفاسدة۔
(هدایة ۳:۲۹۴ باب الرجوع فی الهبة)

۳) قال العلامة الموصلی : العاریة هی هبة المنافع ولا تکون الا فیما ینتفع به مع بقاء عینه وهی امانة۔
(الاختیار لتعلیل المختار ۲:۷۴ کتاب العاریة)

موده د امامت فرائض پوره کولو سره د دې ځمکې د حصې قیمت نه ادا کیږي، ځکه چې دا یوه اوږده زمانه خدمت دې چې د هغې د وجې نه تقریبا د هغې قیمت او معاوضه ادا کیږي لکه د سیدنا شعیب علیه السلام خپلې لور له په نکاح باندې ورکول د اتو یا لسو کالو په عمر کې شوې وو، شرعي حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: صاحبزاده محمد عارف باغیچه ډهیرئ تحصیل وضلع مردان ٢٧ محرم ١٤٠٣ھ

**الجواب:** کومه ملکانه (سیرئ) چې امام ته په دې اعتماد ورکړې شوې وې چې دا به نسل در نسل زمونږ د امامانو وي، نو د عرف سابق په بناء به دا مثل عمري وي پس د دې ملکانې مالك د امام جوړ شوې دې، دا هبه کوونکو ته نه شي واپس کیدې په دې کې به د میراث برخې جاري کیږي. (١) وهوالموفق

## د مسجد او امام په نوم د سیرئ (زمکی ورکولو) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې وفات شو. هغه بعضې سیرئ (ځمکه) د جومات په نوم ولیکله یعنی وقف کړې ئې ده او بعض ئې د جومات د امام په نوم اوس وارثان هغې له اخستل غواړي نو آیا دا واپسی جائز ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: تاج محمد... هنزه گلگت

**الجواب:** کومه سیرئ (ځمکه) چې د جومات په نوم لیکلې شوې ده هغه د

---

(١) قال العلامة المرغيناني: والعمرىٰ جائزة للمعمر له حال حياته ولورثته من بعده لما رويناه، معناه ان يجعل داره له مدة عمره واذا مات ترد عليه فيصح التمليک ويبطل الشرط ،وقدبينا ان الهبة لا تبطل بالشروط الفاسدة- (هداية ٢٩٤: ٣باب الرجوع فى الهبة)

وقال العلامة الموصلى: العمرى جائزة للمعمر حال حياته ولورثته من بعد مماته ويبطل الشرط وهى ان يجعل داره له عمره فاذا مات ترد عليه لما تقدم من الحديث ولما روى انه عليه الصلاة والسلام: اجاز العمرى وابطل شرط المعمر.

(الاختيار لتعليل المختار ٧١: ٢ فصل فى العمرى والرقبى)

وقف على المساجد کیدو د وجې نه د چا ملکیت نه دی په هغې کې به د میراث حصې نه جاری کیږی. **لخروجها عن ملك الواقف على القول الاصح والاقوى.** (۱) او کومه سیرئ (ځمکه) چې د امام په نوم باندې مندرج ده نو هغه په هبه او عاریت کې متردد ده، په ظاهره کې په هبه کې لیکلې شوې معلومیږی په هغې کې به د میراث حصې جاری کیږی. **لانها كالعمرى فى الرجوع (عند العزل) فيفسد الشرط وتصح الهبة** (۲) بهرحال په کاغذاتو کې چې کوم کیفیت لیکلې شوې وی د هغې نه دا تردد زائل کیدې شی. **فليراجع وهوالموفق**

## د مسجد د پاره د وقف شوې ځمکې (سیرئ) حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې چې کوم جومات دې د هغې دپاره وقف ځمکې دی کوم سړې چې دلته امامت کوی او د دې وقف ځمکې حاصلات وصولوی او تقریبا اووۀ اته علماء کرامو په دې طریقه باندې امامت کړې دې، تقریبا دوه کالې مخکې مولوی محمد رحیم وفات شو د هغې نه پس د هغوی ورور مولوی عبدالحلیم وفات شو، د هغوی په اولاد کې د امامت قابل څوک نشته او نه ترې د بیا دپاره د دې امید کیدې شی، اوس دا موقوفه ځمکه څوک استعمالولې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** اهالیان کالابن ایبټ آباد ... ۱۵ جنوری ۱۹۷۵ء

---

۱) وفى الهندية: وعندهما حبس العين على حكم ملك الله تعالىٰ على وجه تعود منفعته الى العباد فيلزم ولا يباع ولا يوهب ولا يورث كذا فى الهداية وفى العيون واليتيمة ان الفتوىٰ على قولهما كذا فى شرح الشيخ ابى المكارم للنقاية.
(فتاویٰ عالمگیرية ۲:۳۵۰ كتاب الوقف الباب الاول)

۲) قال العلامة المرغيناني: والعمرىٰ جائزة للمعمرله حال حياته ولورثته من بعده لما روينا ومعناه ان يجعل داره له مدة عمره واذا مات ترد عليه فيصح التمليک ويبطل الشرط لما روينا وقد بينا انه الهبة لا تبطل بالشروط الفاسدة- (هداية ۳:۲۹۴ باب ما يصح رجوعه ومالا يصح رجوعه)

**الجواب:** که دا ځمکه جومات ته وقف شوې وی نو د جومات د امام نه علاوه بل څوك دا نه شی استعمالولې. (۱) او که یو امام ته په طور د هبه دا سیرئ (ځمکه) ورکړې شوې وی نو په دې کې به باقاعده د میراث حصې جاری کولې شی. (۲) **وهوالموفق**

## د مسجد دننه دروازه کومه چې لږه شان اوچته ده

## د امام ودریدل او د مقتدیانو په انګڼ کې ودریدل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات په مینځنئ حصه کې درې دروازې دی چې د هغې مخې ته د جومات انګڼ دې، دا درې دروازې د انګڼ نه درې ګوتې اوچت دې اوس که د امام مصلی په دریو دروازو کې دننه کیښودلې شی او مقتدی حضرات په صحن کې نزدې صف بندی وکړی نو دا درې ګوتې اوچت والې د دروازو د مونځ دپاره نقصانی دې یا نه یعنی په مانځه کې به څه کراهت وی یا نه؟ آیا دا انګڼ او درې دروازې یو محل کیدې شی یا دا به جدا جدا محل ګڼلې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالکریم پیښور

**الجواب:** د فقهاء کرامو په نزد دا اوچت والې غیر معتبر دې په دې سره کراهیت نه پیدا کیږی دغه شان دا ځای نه بیل مکان دې او نه محراب دې او

---

(۱) قال العلامة الحصكفي: وعندهما هو حبسها على ملك الله تعالى وصرف منفعتها على من احب ولو غنيا فيلزم فلا يجوز له ابطاله ولا يورث عنه وعليه الفتوى.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳:۳۹۲ كتاب الوقف)

(۲) قال العلامة المودود الموصلي: العمرى جائزة للمعمر حال حياته ولورثته من بعد مماته ويبطل الشرط وهى ان يجعل داره له عمره فاذا مات ترد عليه لما تقدم من الحديث ولما روى انه عليه السلام اجاز العمرى وابطل شرط المعمر.
(الاختيار لتعليل المختار ۲:۷۱ فصل فى العمرى والرقبى)

نه د اشتباه باعث دي لهذا په دې کې د امام قیام مکروه نه دې. فی الدر المختار: وانفراد الامام علی الدکان وقد الارتفاع بذراع ولاباس بما دونه وقیل مایقع به الامتیاز الاوجه ذکر الکمال وغیره انتهی (۱) او په موجوده صورت کې دا اوچت والې نه د شان امتیاز پیدا کوی او نه د یو ګز مقدار ته رسیږی هم دغه شان چونکې د امام په مینځنی ور کې قیام کول په ظاهر کې د محراب د قیام سره مشابه دی لهذا احتیاط په بچ کیدو کې دې.

یدل علیه تعلیل الوالوالجیة وغیرها بحیث قالوا اذالم یضیق المسجد بمن خلف الامام لاینبغی له ذلك لانه یشبه تبائن المکانین (۲). وهوالموفق

## په مسجد باندې د رشوت د رقم خرچ کول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې د سرکاری قانون مطابق د ګاروو په منډۍ او د لارۍ په اډه باندې بولی وشوه. د ګاروو منډۍ کومه چې د ډیرې مودې نه د یو سړی په نوم باندې ده په دې کال د څلور پنځو نوې اخستونکو سره مخامخ شو څو متعلقه کسانو د مفاهمت صورت پیدا کړو او په څو شرطونو باندې ئې فیصله وکړه چې د ګاروو منډۍ به د سابقه اخستونکی سره وی، او هغه به د قیمت د ورکولو نه علاوه د پولیس سټیشن سره ملحقه بازار والاجامع جومات د مرمت او تعمیر نه علاوه درې زره روپۍ په طور د قیمت ورکوی. منډۍ خو په دې طریقه هغه سره پاتې شوه خو د جومات دپاره د رقم ورکول د هغه مجبوری وی د نه غوښتلو باوجود ئې هغه رقم ورکړو او څو خله ئې د دې ناراضتیا اظهار هم وکړو خو هغه د معاهدې پابند وو، اوس په دې جومات کې د داسې قسم رقم لګولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوفی ګل اختر بریلوی

---

۱) الدر المختار علی هامش ردالمختار ۱: ۴۷۸ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

۲) (ردالمختار هامش الدر المختار ۱: ۴۷۷ باب مایفسد الصلاة ومایکره فیها)

**الجواب:** دا درې زره روپۍ رشوت دي د دې پیسو د جومات په مرمت کې صرف کول معصیت دي لانّ الاصل ان اخذ العوض علی الحقوق المجردة حرام کما صرح به فی بیوع شرح التنویر مثل حق الشفعة(۱) قلت: والحق المسئول هوالحق المجرد مثل حق الشفعة فیکون حکمه کحکمه، فافهم. وهوالموفق

**په سرکاری مساجد کې بجلی او سوئی ګیس د مسجد امام استعمالولې شي**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو جومات کوم چې په حکومتی تحویل کې دې په هغې کې د لګیدلې بجلۍ او سوئی ګیس وغیره بل حکومت ادا کوی آیا د دې جومات امام په خپله حجره کې کومه چې په جومات کې دننه د لوني هال سره ملحقه دي او د هغې دروازه هم د جومات د لوئې هال طرف ته کهلاویږی، آیا د جومات امام په دې حجره کې بجلی او سوئی ګیس استعمالولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد انور مدنی مسجد کنټونمنټ مسجد نوښهر ... ۱۷ نومبر ۱۹۸۶ء

**الجواب:** چونکې د ښهرونو د قومی جوماتونو د کمیټیانو عرف او معمول دا دې چې کوم سهولیات د مونځ کونکو دپاره برابرولې شي نو هغه سهولیات د امام دپاره په داخلی رهائش ګاه کې هم برابرولې شي، لهذا په سرکاری مساجدو کې هم داسې سهولیات د جومات د امام دپاره برابرول جائز دی (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصکفی: وفی الاشباه لا یجوز الاعتیاض عن الحقوق المجردة کحق الشفعة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴: ۱۵ مطلب لا یجوز الاعتیاض عن الحقوق المجردة)

۲) قال العلامة ابن عابدین: یجوز صرف شیئ من وجوه مصالح المسجد للامام اذا کان یتعطل لولم یصرف الیه یجوز صرف الفاضل عن المصالح للامام الفقیر باذن القاضی ولو زاد القاضی فی مرسومه من مصالح المسجد والامام مستغن وغیره یؤم بالمرسوم المعهود تطیب له الزیادة لو عالماً تقیا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۴۵۸ مطلب لیس للقاضی ان یقرر وظیفتها فی الوقف)

## د فرقه سلفیه نجدیه په مقابل کې د بل مسجد د تعمیر حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو جومات چې په هغې کې سلفیه او نجدیه قسم خلق دی د هغوی په مقابله کې د بل جومات د تعمیر په شریعت کې اجازت شته یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نیاز محمد قریشی فورټ سنډیمن ..... ۲۳ مارچ ۱۹۷۶ء

**الجواب:** چونکې سلفیه نجدیه ډله متشددین بې ادبه بایمان دی، لهذا د هغوی جومات به جومات ضرار نه وی چې کله د نجدیت د اشاعت نه علاوه د نور اغراض فاسده نه خالی وی، فقهاء کرام (مثلا علامه شامی، هندیه وغیره) د مصلحت په وخت د یو جومات تقسیم ته جائز ویلې دې نو انفصال به په درجه اولی جائز وی، په دې کې هیڅ تحدید نه مصرح دې او نه پرې دلیل شته (۱) وهوالموفق

## د مسجد د امام د اجازت نه بغیر د نوی راغلی د پاره د امامت یا وعظ یا تقریر کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې اهل محله یو سړې د جومات امام جوړ کړو، اوس که یو مفتی یا لوئې عالم راشی نو آیا د جومات د امام د اجازت نه بغیر امامتی کولې شی؟ وعظ یا تقریر کولې شی؟ که په دې صورت کې د فتنې ویره وی نو کومه ډله به په حق ګڼلې شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حافظ محمد طفیل مدنی مسجد گوندل منډی اټک ... ۲۲ شعبان ۱۴۰۱ھ

---

(۱) قال العلامة ابن نجیم المصری :واذا قسم اهل المحلة المسجد وضربوا فیه حائطاً ولکل منهم امام علی حدة مؤذنهم واحد لا بأس به والاولیٰ ان یکون لکل طائفة مؤذن کما یجوز لاهل المحلة ان یجعلوا المسجد الواحد مسجدین فلهم ان یجعلوا المسجدین واحداً لاقامة الجماعات اما للتدریس او للتذکیر فلا.
(البحر الرائق ۲:۶۲ باب ما یفسد الصلاة وما یکره فیها)

**الجواب:** د جومات د امام د اجازت نه بغیر امام جوړیدل مکروه او ممنوع دی. (۱) خو افضل دا ده چې کله یو غوره سړې راشی نو د جومات د امام دپاره مستحب ده چې هغه غوره ته اذن ورکړی (۲) **وهکذا فی الوعظ والتذکیر. وهوالموفق**

**جماعت اسلامی والو لره په مساجدو کې د تقریر وغیره نه د منع کولو حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د تبلیغی جماعت والو یو جومات او ورسره یو درسګاه ده چې په هغې کې د تبلیغ کار کیږی د جماعت اسلامی کسانو هم په دې کې کار شروع کړې دې او وائی چې د دین د کار نه مونږ څوك نه شی منع کولې، چې کله هغوی هلته د بیان وغیره دپاره اجتماع وکړه نو مونږ هغوی منع کړل نو هغوی په تهانه کې رپورټ وکړو او وېې ویل چې دې باره کې مونږ سره شریعت وکړی، او حال دا چې جومات او د جومات امام ټول د تبلیغی جماعت والو دې او ټول انتظام ئې تبلیغی جماعت والا کوی او په تبلیغی جماعت کې ئې یو قسم منافرت او اختلاف اچولې دې نو آیا هغوی لره دلته په جومات کې د کار کولو نه منع کول جائز دی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: مولوی محمد حسن واړئ بازار ضلع دیر ...... ۲۷ رجب ۱٤۰۱ھ**

**الجواب:** د جماعت اسلامی سره متعلقه علماء باندې نور علماء (اهل سنت)

---

۱) قال رسول الله ﷺ لا یؤمن الرجل فی سلطانه.

(مشکواة المصابیح ۱۰۰:۱ باب الامامة الفصل الاول)

۲) قال العلامة ابن عابدین: وفی التتارخانیة جماعة اضیاف فی دار یرید ان یتقدم احدهم ینبغی ان یتقدم المالک فان قدم واحدا منهم لعلمه وکبره فهو افضل، واذا تقدم احدهم جاز لان الظاهر ان المالک یأذن لضیفه اکراماً له.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:٤۱۳ باب الامامة)

بدظن دي دا علماء نه خپله د مولانا مودودي په تفردات باندې رد کوي او نه د نورو علماء کرامو رد برداشت کوي، پس داسې مداهنين علماء لره په داسې مساجدو کې چېرته چې د هغوی د مخالفين تسلط وي د درس او بيان موقع ورکول فساد ته دعوت ورکول دي ولا يبعد ان يهيج بقول علی اخرجوا هذا المبتدع(۱) وبمنعهم کل موذعن المسجد علی وجه الدلالة.(۲) وهوالموفق

## د محراب ملهی نقش ونګار مکروه دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې په عصر حاضر کې د اکثر مساجدو د محرابونو د ډول او زينت دپاره رنګدار او د آئينې شيشې لګولې شي چې په هغې کې د مونځ کونکو عکس په نظر راځي آيا دا په مانځه کې مخل دي؟ بينواتوجروا

المستفتي: حافظ هدايت الرحمن مانکل صوابۍ... ۹ محرم ۱٤۰۳ھ

**الجواب:** فقهاء کرامو په محراب کې نقش ونګار ته ممنوع ويلې دي چې ملهی واقع نه شي، او دا اقدام چونکې واضح طور ملهی دي لهذا دا کار مکروه دي. (۳) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن نجيم: حکاه النووی فی شرح المهذب لما روی ان عليا رأی مؤذنا يثوب فی العشاء فقال: اخرجوا هذا المبتدع من المسجد۔
(البحر الرائق ۱:٤۵۳ باب الاذان مبحث ويثوب)

۲) قال العلامة الحصکفی: ويمنع منه وکذا کل موذ ولو بلسانه۔
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:٤۸۹ قبيل مطلب فی الغرس فی المسجد)

۳) قال العلامة ابن عابدين: ولذا قال فی الهندية وکره بعض مشائخنا النقش علی المحراب وحائط القبلة لانه يشغل قلب المصلی ومثله يقال فی حائط الميمنة او الميسرة لانه يلهی القريب منه۔
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:٤۸۷ مطلب فی احکام المسجد)

## د مسجد په دیوال باندې کیناستل نه ممنوع دی او نه مطلوب

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د جومات چار دیواری د جومات د صحن نه دوه نیم فټه اوچت دې خلق چې کله د مانځه دپاره راځی نو د مانځه په انتظار کې په چار دیوارئ باندې کینی آیا دا کیناستل جائز دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: شیر ولی خان...... تخت نصرتی کرک

**الجواب:** په دې چار دیوارئ باندې کیناستل نه ممنوع دی او نه مطلوب. خو جومات نه د تماشې ځای دې او نه د ګپ شپ. (۱) **وهوالموفق**

## مسجد ته د بت خانې ویلو او د توهین کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې جومات ته د بت خانې ویلو څه حکم دې؟ هم دغه شان د جومات د بې عزتئ او توهین کولو څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد فضل خالق لاټولی کوهستان

**الجواب:** ۱: په جومات کې چې ترڅو پورې شرکیات او قبر پرستی نه وی نو هغې ته بت خانه ویل حرام او د کفر سبب دې (۲)

---

۱) قال العلامة ابراهیم الحلبی: فالحاصل ان المساجد بنیت لاعمال الآخرة مما لیس فیه توهم اهانتها وتلویثها مما ینبغی التنظیف منه ولم تبن لاعمال الدنیا ولو لم یکن فیه توهم تلویث واهانة علی ما اشاره الیه قوله علیه السلام فان المساجد لم تبن لهذا فما کان فیه نوع عبادة ولیس فیه اهانة ولا تلویث لا یکره والا کره.
(غنیة المستملی المعروف بالکبیری ۵۲۷ فصل فی احکام المسجد)

۲) قال الملا علی قاری: من استخف بالقرآن او بالمسجد او نحوه مما یعظم فی الشرع کفر. (شرح فقه الاکبر للقاری ۱۶۷ فصل فی القراة والصلاة)

۲: د یو جومات توهین او بې عزتي ناجائز ده خو د جومات ضرار توهین جائز بلکې واجب دې (۱) خود جومات ضرار تعین دهرچا کارنه دې (۲) وهوالموفق

## په مسجد کې د اوده کيدو او رهائش اختيارولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱ په جومات کې اوده کيدل جائز دی؟

۲: آيا په جومات کې مستقل رهائش ساتل جائز دی؟

۳: په جومات کې د رهائش د ناجائز کيدو په صورت کې يو داسې سړې په جومات کې د رهائش نه منع کول کوم چې په جومات کې مستقل رهائش کوی جائز ده يا نه؟ که هغه سړې په جومات کې په وسيدو باندې ضد کوی نو د هغه دپاره يا زمونږ دپاره څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: الحاج عمر حيات ميلاد پارک بنون

**الجواب:** ۱ په جومات کې د معتکف او مسافر نه علاوه د نورو خلقو اوده کيدل غوره نه دی چې کله قصدا و ارادة وی. **كما فى الاشباه والنظائر ۳۸۴ والاكل والنوم لغير غريب ومعتكف.** (۳)

---

۱) قال العلامة ملا جيون : فلما قفل (رسول الله ﷺ) من غزوة تبوک سالوه اتيان المسجد فنزلت عليه فقال عليه السلام لوحشى قاتل حمزة ومعن بن عدى وغيرهما انطلقوا الى هذا المسجد الظالم اهله فاهدموه واحرقوه ففعل وامر ان يتخذ مكانه كناسة يلقىٰ فيه الجيف والقمامة- (التفسيرات الاحمدية ۴۷۷: ۱ سورة التوبة)

۲) قال الشيخ مولانا مفتى محمد شفيع رحمه الله : دغسې د ريا او نمودنې دپاره يا د ضد او عناد د وجې نه يو مسلمان جمات جوړکړی اګرچې جوړونکی ته به د جومات ثواب نه ملاويږی بلکه ګنهګار به وی، خو هغې ته به د قرآن د اصطلاح والامسجد ضرار نه وئيلې کيږی. بعضې خلق چه داسې قسم جوماتونو ته مسجد ضرار وائی دا صحيح نه ده- (معارف القرآن ۴۶۳: ۴ سورة التوبة)

۳) (الاشباه والنظائر ۳۶۰ القول فى احكام المسجد)

۲ په جومات کې رهائش اختیارول مکروه دی (۱)

۳ د دې متعلق سوال په تفصیل سره راولیږئ چې مونږ په جواب درکولو باندې قادر شو وهوالموفق

## په وقف مسجد کې څوک د مانځه یا درود شریف لوستلو نه منع کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته وقف عام جومات دې او یو سړې هم په هغه محله کې آباد دې او هم د دې محلې په جومات کې مونځ کوی اوس د محلې د جومات د کمیټې صدر او نور خلق هغه له جومات ته د راتلو نه منع کوی او د درود شریف لوستلو نه ئې هم منع کوی او دا منع کول صرف د ضد د وجې نه دی د دې منع کولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد صفدر ... گھرئ افغانان راولپنڈی .... ۲۰ مارچ ۱۹۹۰ء

**الجواب:** د درود او ذکر نه منع کول ظلم دې خو د اهل بدع د شعار نه منع کول عدل دې (قرآن) (۲) وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله واکل ونوم ... الخ) واذا اراد ذلک ینبغی ان ینوی الاعتکاف فیدخل ویذکر الله تعالیٰ بقدر مانوی او یصلی ثم یفعل ما شاء (فتاویٰ هندیه). (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:٤۸۹ مطلب فی الغرس فی المسجد)

وفی الهندیة: ولا بأس للغریب ولصاحب الدار أن ینام فی المسجد فی الصحیح من المذهب والاحسن ان یتورع فلا ینام کذا فی خزانة الفتاویٰ.

(عالمگیریه ۵:۳۲۱ الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة)

(۲) قال الله تعالیٰ: ومن اظلم ممن منع مساجد الله ان یذکر فیها اسمه وسعی فی خرابها. (سورة البقرة آیت: ۱۱۵ پاره: ۱)

وقال الله تعالیٰ: وان المساجد لله فلا تدعوا مع الله احداً.

(سورة الجن آیت: ۱۸ پاره: ۲۹)

## په مساجدو کې دنيوي خبرې کول ممنوع دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې د عوامو د يو بل سره کيناستل او خبرې کول څنګه دي؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: علی اکبر آزاد کشمير......۱۹ اکتوبر ۱۹۷۸ء

**الجواب:** د قرآن [1] او حديث [2] په رڼا کې په جوماتونو کې د معتکف نه علاوه د نورو خلقو دپاره دنيوي کلام ممنوع دې [3] **وهوالموفق**

## په مسجد کې د جهنډې اوچتولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې دلته يو چشتی عامل دې او په جومات کې خپله نخښه يعنی جهنډا خوزول غواړی او د جومات امام هغه د جهنډې خوزولو نه منع کوی. چشتی عامل وائی چې ماته د خپل مرشد د طرف نه د دې اجازت ملاؤ شوې دې چې زه په جومات کې جهنډا اوخوزوم اوس د چشتی عامل او امام ترمينځه په دې خبره باندې اختلاف دې او حال دا چې چشتی عامل د جهنډې د خوزولو په وخت داسې څه حرکت هم نه کوی کوم چې د شريعت خلاف وی نه په جومات کې او نه د جومات نه بهر. په دې باره کې د شريعت څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: مولوی محمد جان... سپين کوټ چارسده....۱۹ جنوری ۱۹۶۹ء

---

[1] قال الله تعالیٰ: وان المساجد لله فلا تدعوا مع الله احداً. (سورة الجن پاره: ۲۹ آيت: ۱۸)

[2] عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده قال نهى رسول الله ﷺ عن تناشد الاشعار فی المسجد وعن البيع والاشتراء فيه وان يتحلق الناس يوم الجمعة قبل الصلاة فی المسجد. (مشكوٰة المصابيح ۷۰: ۱ باب المساجد ومواضع الصلاة)

[3] وفی الهندية: ولا بأس للمعتكف ان يبيع ويشترى الطعام ومالا بد منه. (فتاویٰ عالمگيرية ۲۱۳: ۱ الباب السابع فی الاعتكاف)

**الجواب:** څونکې په جهنډه خوزولو کې نه د جومات دپاره څه مصلحت دې او نه د مونځ کونکو دپاره څه منفعت دې لهذا دا کار خلاف اولې دې. ولم اجد التصریح به لکنه مدلول حدیث: ان المساجد ما بنیت لذلك(۱) وهوالموفق

## په مسجد کې ذکر بالجهر او ټوپونه وهلو سره د ذکر کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په جومات کې د هر زیارت په شپه باندې څه خلق راجمع کیدو سره په عجیب طرز باندې ذکر کوی د دې سلسلې څو لوئې عام مبتدی کسان او خلقو ته په دواړو لاسونو سره اشاره کولو سره د هو هو په اواز سره توجه کوی چې په هغې سره مخامخ سړی باندې عجیبه کیفیات راځی او عجیبه عجیبه آوازونه راویستل شروع کړی او ټوپونه وهلو سره عجیب قسم شور او غوغا پیدا کیږی چې په هغې سره باقی مونځ کونکی هم تنګیږی او د مانځه د غلطیدلو شکایت کوی.

۱: آیا د ذکر دا طریقه صحیح ده چې په هغې کې جومات کې ټوپونه وهی؟

۲: د دې سلسلې څه کسان په مانځه کې هم آوازونه او چغې وهی آیا دا مونځ صحیح کیدې شی؟

۳: د دې سلسلې والو په توجه سره خلق ولې بې حاله کیږی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** یو سائل... ۱۹۸٤ء

**الجواب:** دا خلق د جومات په بې ادبۍ کې اخته دی او ناخبره خلقو لره د طریقت او بیعت نه متنفر کونکی دی په کومه طریقه سره چې مانځه ته نقصان رسیږی د هغې نه ځان ساتل ضروری دی. (۲) او مخامخ کیناستونکی دا خلق

---

۱) ان المساجد لم تبن لهذا.

(صحیح مسلم ۱:۲۱۰ باب نشد الضالة فی المسجد)

۲) قال العلامة ابن عابدین: وفی الملتقی وعن النبی ﷺ ... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

که (لاحول ولاقوة الا بالله) او (حسبنا الله ونعم الوکیل) لولی نو د دې شیطانی اثر نه به خلاص شی (۱) وهوالموفق

## د دینی طالبانو وظیفه غوښتل جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دین طالب علم په مساجد یا مدارس کې وسیدو سره چې کومه چائې یا ډوډۍ غواړی دا جائز ده یا ناجائز؟ هم دغه شان د طالب علم دپاره د مدرسې نه طعام مقرر دې نو د هغې څه حکم دې؟ که د یو طالب العلم سره دومره رقم موجود دې کوم چې د یوې میاشتې پورې دهغه دپاره کافی کیږی خوصرف د ډوډۍ دپاره او د چائې بندوبست په هغې سره نه کیږی نو آیا چائې غوښتل جائز دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: غلام حیدر ډیروی متعلم حقانیه..... ۱۰ ستمبر ۱۹۷٤ء**

**الجواب:** د طالبانو دپاره وظیفه جمع کول که ډوډۍ وی یا چائې جائز ده په دې کې توهین نشته. هم دغه شان د طالب علم دپاره سوال جائز دې اگر چې

---

بقیه ازحاشیه گذشته] انه کره رفع الصوت عند قراء ة القرآن والجنازة فما ظنک به عند الغناء الذی یسمونه وجدا ومحبة فانه مکروه لا اصل له فی الدین وزاد فی الجوهرة وما یفعله متصوفة فی زماننا حرام لا یجوز القصد والجلوس الیه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۲٤٦ قبیل فصل فی اللبس)

وفی الهندیة :السماع والقول والرقص الذی یفعله المتصوفة فی زماننا حرام لا یجوز القصد الیه والجلوس علیه. (فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۵۲ الباب السابع عشر فی الغناء)

۱) بعضې تش په نوم متصوفین داسې قسمه اثرات توجه، سحر او د عملیاتو په ذریعه اچوی او د حضرت مفتی صاحب نه ما څو خله اوریدلی دی چې دچا شیطانی اثرات او جادو تونکې ختمولو دپاره معوذتین منصوص دی. او لاحول ولا قوة الا بالله او حسبنا الله ونعم الوکیل کشفی دی د داسې قسمه جعلی صوفیاؤ په مجلسونو زما هم دا تجربه ده چه ددې کلماتو ورد کولو سره هیڅ یوڅیز په ما اثر نه کوی، حالانکه نور خلق چې مخې ته شی په توپونو وهلو شروع شی (ازمرتب)

غنی وی یعنی یکون عنده قدر ما یغدیه ویعشیه او یکون قادراً علی الکسب کما یدل علیه ما فی ردالمحتار ۲: ۸۱ ویکون طلب العلم مرخصاً لجواز سؤاله من الزکواة وغیرها وان کان قادراً علی الکسب(۱). وهوالموفق

## په مسجد کې د خوراک څښاک کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې خوراك څښاك کول جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حزب الرحیم ډاك پې سود پېو

**الجواب:** په جومات کې خوراك څښاك کول مشروع دی چې کله د ایذاء او تلویث نه خالی وی، بدلیل اکل الصحابة رضی الله عنهم.(۲) خو د اعتکاف نیت کول احوط دی (۳) **وهوالموفق**

## په مسجد کې د ټیپ ریکارډ په ذریعه د تقریر او تلاوت اورولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې جومات ته ټیپ ریکارډ راوړل او په ممبر باندې کیښودلو سره د قرآن او حدیث او نعت خوانئ اوریدلو څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حسن خان افغانی الحقانی ..... ۱۷ فروری ۱۹۸۷ء

---

۱) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۶۵: ۲ باب المصرف)

۲) عن عبد الله بن حارث بن جرء قال اتی رسول الله ﷺ بخبز ولحم وهو فی المسجد فاکل واکلنا معه ثم قام فصلی وصلینا معه ولم نزد علی ان مسحنا ایدینا بالحصباء، رواه ابن ماجة. (مشکواة المصابیح ۳۶۶: ۲ کتاب الاطعمة الفصل الثانی)

۳) قال العلامة ابن عابدین: (قوله واکل ونوم) واذا اراد ذلک ینبغی ان ینوی الاعتکاف فیدخل ویذکر الله تعالیٰ بقدر ما نوی ویصلی ثم یفعل ما شاء.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴۸۹: ۱ قبیل مطلب فی الغرس فی المسجد)

**الجواب:** که د ټيپ ريکارډ داخلول څه فساد لره مفضي نه وي نو صحيح ده.

(۱) كما ان التلاوة فى مسجد ذى جنابذ غير منكرة مع تحقق الصدى

فافهم. وهوالموفق

## په مسجد کې ټيپ ريکارډ راوړل او په مسجد کې رحيل کې سر کيښودلو سره د اوده کيدو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ۱: په جومات کې ريډيو يا ټيپ ريکارډ باندې کيښودلو سره جائز دی يا نه؟ که د تقرير دپاره وی او که د ممانعت وی؟

۲: په جومات کې د قرآن پاك دپاره جوړ شوی رحيل کې سر کيښودلو سره د اوده کيدو څه حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: ظاهر شاه باچا......۱ستمبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې که دا آلات په جائز امور کې استعمال کړې شی نو جائز ده کنه نو ناجائز ده، د دې مثال د ټوپك يا تورې په شان دې (۲)

۲: په جومات کې اوده کيدل جائز دی(۳) خو بدبوئی خارج کول مکروه

---

۱) قال العلامة ابراهيم الحلبی: ان المساجد بنيت لاعمال الآخرة مما ليس فيه توهم اهانتها وتلويثها مما ينبغی التنظيف منه ولم تبن لاعمال الدنيا ولو لم يكن فيه توهم تلويث واهانة على ما اشار اليه قوله عليه السلام فان المساجد لم تبن لهذا فما كان فيه نوع عبادة وليس فيه اهانة ولا تلويث لايكره والاكره.
(غنية المستملی المعروف بالكبيری ۵۲۷ فصل فی احكام المسجد)

۲) قال العلامة ابراهيم الحلبی: فان المساجد لم تبن لهذا فما كان فيه نوع عبادة وليس فيه اهانة ولا تلويث لا يكره والاكره ولهذا نثر عليه السلام مالاً اتاه من البحرين فی المسجد.
(غنية المستملی المعروف بالكبيری ۵۲۷احكام المساجد)

۳) وفی الهندية: ولا بأس للغريب ولصاحب الدار ان ينام فی المسجد فی الصحيح من المذهب. (فتاوی عالمگيرية ۵:۳۲۱ الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة الخ)

تحریمی دی (۱) په رحیل باندې سر کیښودلو سره اوده کیدلو کې د قران کریم هیڅ بې ادبي نشته. وهوالموفق

## په مسجد کې خلقو ته د سلام کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې جومات کې خلق راتلو سره سلام کوی زید وائی چې دا صحیح نه ده ځکه چې خلق په ذکر اذکار کې مصروف وی او خپل وظایف کوی آیا دا قول صحیح دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی محمد یونس خطیب تهانه لاچی کوهاټ..... ۱۲ اگست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** د داسې شغل په وخت کې د سلام کولو نه نۀ کول افضل دی (ماخوذازشرح التنویر) (۲) وهوالموفق

## د مسجد نه د مرغو جالې بهر غورځولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یو جومات کې جالې وی په هغې کې خاپیرکان اندې او بچی ورکوی او په جومات کې ګندګی خوروی نو هغه جالې او بچی بهر غورځول شرعا څنګه دی؟ آیا دا ظلم نه دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: خیر الدین..... ۱۴ اکتوبر ۱۹۸۹ء

**الجواب:** دا بهر غورځول جائز دی فی الهندیة ۵:۳۵۵ لوکان فی المسجد عش

---

۱) وفی الهندیة: قالوا لا یفسم ویخرج اذا احتاج الیه وهو الاصح کذا فی التمرتاشی. (فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۲۱ الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة الخ)

۲) قال العلامة الحصکفی: صرح الفقهاء بعدم وجوب الرد فی بعض المواضع... والجالسین فی المسجد لتسبیح او قراءة او ذکر حال التذکیر. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۱:۴۵۷ مطلب المواضع التی لا یجب فیها ردالسلام)

خطاف او خفاش یقذر المسجد لابأس برمیه بما فیه من الفراخ کذا فی الملتقط(۱)۔ وهوالموفق

**د مسجد عدم ملکیت او په مسجد کې وړو ماشومانو ته د دینی تعلیم حکم**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د جومات دپاره ځمکه وقف کړه او ضروری تعمیر ئې پکې وکړو اوس پکې بل سړې مزید تعمیر کول غواړی خو واقف ئې منع کوی نو آیا جومات د چا په ملك کې راتلې شی؟ آیا په جومات کې وړو ماشومانو ته تعلیم ورکول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: غلام الرحمن مظفر آباد... ۱۸ فروری ۱۹۷۶ء

**الجواب:** شرعی جومات د چا هم مملوك نه شی کیدې کما فی الدر المختار: والملك یزول عن الموقوف بأربعة بأفراز مسجد الخ(هامش ردالمختار ۳/۳۹۹)(۲) او تعمیر ئې د بانی حق دې. کما فی الدر المختار ۳/۵۷۳ واما فی العمارة فنقل فی انفع الوسائل ان البانی اولی (۳) (من غیرهم) خو که بانی ئې د تعمیر کولو دپاره تیار نه وی نو بل سړې ئې هم تعمیر کولې شی، (کما یدل علیه صیغة افعل) او په جومات کې د ماشومانو د تعلیم ورکولو نه اجتناب ضروری دې، کما فی شرح الاشباه للحموی ۳۸۱ وفی شرح الجامع الصغیر للتمرتاشی ولا یجوز تعلیم الصبیان القرآن فی المسجد للمروی جنبوا مجانینکم وصبیانکم مساجدکم انتهٰی، وهوصریح فی عدم الجواز سواء کان بأجر اولا، انتهٰی مافی الحموی (۴)۔ وهوالموفق

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۵:۳۲۱ الباب الخامس فی آداب المسجد)
۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۹۵ کتاب الوقف)
۳) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۵۴ مطلب باع عقاراً ثم ادعی انه وقف)
۴) (شرح الحموی علی الاشباه ۳:۱۸۷ القول فی احکام المسجد)

## په مسجد کې د ماشومانو د تعلیم په باره کې

## د مفتي محمد شفیع رحمه الله فتوی او د بنوري ټاؤن عمل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مفتي اعظم پاکستان مولانا محمد شفیع رحمه الله په خپل تالیف آداب المساجد ک ی لیکلې دی چې ماشومانو ته قرآن مجید وغیره مزدوری اخستلو سره ښودل بالاتفاق ناجائز دی الخ، اوس صورت حال دا دی چې د دار العلوم بنوري ټاؤن کراچي د جامع جومات په برنډه او د جومات د صحن په برنډه کې کوم چې په جومات کې داخل دی د اووه کالو نه کم عمره ماشومانو ته مزدوري اخستلو سره قرآن کریم ښودلې شي او د هغوی د دې فعل نه دلیل نیولو سره په نورو جوماتونو کې چېرته چې ماشومانو ته د قرآن کریم د تعلیم دپاره کمرې موجود دی خو بیا هم د هغه ځای منتظمینو په مزدوري باندې حفاظ ساتلې دی او عین په جومات کې هغه ماشومانو ته سبق ښائي حال دا چې د هغوی عمرونه د اووه کالو نه کم وی مهرباني وکړئ بیان کړئ چې صحیح مسئله څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: ضیاء الرحمن کراچي ...... ۱۵ ستمبر ۱۹۹۰ء

**الجواب:** ان مدار هذه الکراهة علی مظنة تلویث المسجد، فالصبي العاقل الممیز لا ضیر في دخوله المسجد لعدم هذه العلة کدخوله للصلوٰة(۱) واذا لم یوجد خارج المسجد مکاناً مناسب للتعلیم(۱) فتحمل هذه البلیة اولیٰ من بلیة بقائه

---

۱) قال العلامة الحموی: وفی شرح الجامع الصغیر للتمرتاشی: ولا یجوز تعلیم الصبیان القرآن فی المسجد للمروی: جنبوا مجانینکم وصبیانکم مساجدکم انتهیٰ وهو صریح فی عدم الجواز سواء کان باجر او لا۔
(شرح الحموی علی الاشباه ۱۸۷: ۳ القول فی احکام المسجد)

جاهلاً(۲)۔ وهوالموفق

## په مسجد کې د اشتهارات لګولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې د اشتهارات لګولو څه حکم دې؟ یو بدعتی د شیخ عبدالقادر جیلانی رحمه الله په نوم سره اشتهارات په جومات کې لګول شروع کړل ما منع کړو خو هغه او نه منله او ویې ویل چې زه عبدالقادر جیلانی رحمه الله د جومات نه غوره ګڼم او په اشتهارات لګولو باندې ضد کوی د دې مسئلې څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: حافظ محمد نسیم اوکاره چهاؤنی... ۲۰ جولائی ۱۹۷۹ء**

**الجواب:** جومات د عبادت ځای دې د اعلان ځای نه دې، ﴿قال رسول الله صلی الله علیه وسلم فان المساجد لم تبن لذلك﴾ (رواه ابوداؤد) (۳)

خصوصا چې کله په اعلان کې موهم د شرك (**یا غوث الاعظم**) کلمات موجود وی نو د داسې اعلاناتو نه د جومات پاکول ضروری دی، د غوث الاعظم لفظ نه خو د جومات نه غوره دې او نه د یو مسلمان نه غوره دې، **نعم ما قیل:**

**حبك الشئ یعمی ویصم، اعاذنا الله من ذلك.(۴) وهوالموفق**

---

۱) وفی الهندیة: واما المعلم الذی یعلم الصبیان باجر اذا جلس فی المسجد یعلم الصبیان لضرورة الحرا وغیره لا یکره۔ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۱۰ فصل کره غلق باب المسجد)

۲) وفی المجله: الضرر الاشد یزال بالاخف، هذه القاعدة قید للمادة یعنی ان الضرر انما یزال اذا لم یتات من ازالته ضرر مثله او اشد، والا فاذا دار الامر بین ضررین فیتحمل الاخف لازالة الاشد... وهی من قبیل القاعدة اذا تعارض مفسدتان روعی اعظمهما ضرراً بارتکاب اخفهما، والاصل فی ذلک ان من ابتلیٰ ببلیتین وهما متساویتان یاخذ بایهما شاء وان اختلفا اختار اهونهما۔ (شرح المجلة ۱:۶۸ مادة:۲۷)

۳) عن ابی هریرة رضی الله عنه یقول: سمعت رسول الله ﷺ یقول: من سمع رجلاً ینشد ضالة فی المسجد فلیقل لا ردها الله الیک فان المساجد لم تبن لهذا۔ (سنن ابی داؤد ۱:۸۰ باب فی کراهیة انشاد الضالة، ومثله فی صحیح مسلم ۱:۲۱۰)

۴) (مشکواة المصابیح ۱:۴۱۸ باب البر والصلة الفصل الثانی)

## په مسجد کې د جنازې د مانځه نه علاوه د اعلاناتو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جوماتِ په لاؤډ سپیکر باندې د اعلاناتو کولو څه حکم دې؟ مثلاً چینی راغلی دی فلانی حج ته روان دې یا راروان دې وغیره؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: خلیل الرحمٰن**

**الجواب:** چونکې جومات عبادت ګاه ده او د اعلانونو ځای نه دې، لهذا په دې کې به د دنیوی امورو اعلان نه شی کولې. **لعموم الحدیث: ان المساجد لم تبن لذلك** (۱) خو د جنازې د مانځهٔ دپاره اعلان جائز دې **وهوالموفق**

## په مسجد کې د اعلاناتو نه ځان ساتل ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې د لاؤډ سپیکر په ذریعه په دنیوی امور مثلاً فلان څاروې، رقم وغیره ورک شوې دې دا قسم اعلانات د جومات په لاؤډ سپیکر کې جائز دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: عبدالقادر شوه مسجد تور ډهیر صوابئ ... ۱۹ ربیع الثانی ... ۱۳۸۹ھ**

**الجواب:** چونکې جومات د دې امورو دپاره نه دې جوړ کړې شوې لهذا د دې قسم اعلاناتو نه احتراز ضروری دې، **یدل علیه ما رواه مسلم مرفوعاً من سمع رجلاً ینشد ضالة فی المسجد فلیقل لا ردها الله علیك فان المساجد لم تبن لهذا.** (۲) **(ووجه الدلالة ظاهر لعموم الحدیث). وهوالموفق**

---

۱) عن ابی هریرة رضی الله تعالیٰ عنه یقول: قال رسول الله ﷺ من سمع رجلاً ینشد ضالة فی المسجد فلیقل لا ردها الله علیک فان المساجد لم تبن لهذا.
(صحیح مسلم ۱: ۲۱۰ باب النهی عن نشد الضالة فی المسجد)
وهکذا فی سنن ابی داؤد ۱: ۸۰ باب فی کراهیة انشاد الضالة

۲) (صحیح مسلم ۱: ۲۱۰ باب النهی عن نشد الضالة فی المسجد الخ)

## په مسجد کې د ورک شوی څیز، د جنازې یا ناګهانی آفت وغیره اعلان کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جوماتِ کې لاؤډ سپیکر لګیدلې دې په هغې کې د وفات اعلان چې جنازه به په فلانی خای کې وی یا فلانې ماشوم ورک شوې دې یا په فلانی کور کې اور لګیدلې دې یا سیلاب راروان دې د دې قسم اعلاناتو په جومات کې څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالرحمن شهاب خیل بنون... ۱۷ جولائی ۱۹۷۹ء

**الجواب:** په جومات کې لګیدلی لاؤډ سپیکر باندې د ورک شوی څیز اعلان ممنوع دې، **صرح به الفقهاء لحدیث ورد بذلك** (۱) او د جنازې د مانځه دپاره نه ممنوع دې او نه مطلوب، او هم دغه شان ناګهانی آفت اور، سیلاب وغیره اعلان کول نه ممنوع دی او نه مطلوب **وهوالموفق**

## د اوړی او ژمی د مغرب ترمینځه قبله ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو جومات رخ خاص د کعبې نه منحرف دې یعنی د عام مساجد په اعتبار سره ئې قبله کې څه فرق دې یعنی د کعبې نه بنی یا ګس طرف ته لږ شان ستون دې نو په دې جومات کې د مونځ کولو څه حکم دې؟ او خاص د کعبې د طرف نه څومره مقدار حد انحراف پورې قبله جائز کیدې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** فتح محمد هزاروی چوهر هرپال راولپنډی.... ۱۸ اکتوبر ۱۹۸۶ء

**الجواب:** د مساجد متعلق داسې کلام کول چې د کعبې نه منحرف دې ګمراه

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله وانشاد ضالة) هی الشیئ الضائع وانشادها السؤال عنها وفی الحدیث: اذا رأیتم من ینشد ضالة فی المسجد فقولوا لا ردها الله علیک- (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۴۸۸ قبیل مطلب فی انشاد الشعر)

کوونکی او عوامو لره په پریشانئ کې اچول دی. (۱) د استقبال قبله متعلق په شریعت کې ډېر وسعت دې تردې چې فقهاء کرام فرمائی چې د مشرقی ممالك والاچې د اوړی او ژمی د مغرب ترمینځه کوم طرف ته متوجه شی د هغوی مونځ صحیح دې، دد ائرې ۱/۵ یعنی ۷۲ درجې د کعبې جهت دې (۲) وهو الموفق




## د کعبې د جهت دپاره د قطب نما یا د عمود سوری استعمال

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د کعبې د تعین څه طریقه ده؟ مونږ خلق صرف د مغرب طرف ته مخ کولو سره مساجد جوړوو نو د کعبې د صحیح رخ معلومولو څه طریقه ده؟ هم دغه شان د نزدې نورو

---

۱ ﴾ وفی الهندیة : ومن کان خارجاً عن مکة فقبلته جهة الکعبة وهو قول عامة المشائخ هو الصحیح هکذا فی التبیین وجهة الکعبة تعرف بالدلیل والدلیل فی الامصار والقری المحاریب التی نصبها الصحابة والتابعون فعلینا اتباعهم-

(فتاوی عالمگیریة ۱:۶۳ الفصل الثالث فی استقبال القبلة)

۲ ﴾ قال العلامة ابن عابدین : وفی المنیة المصلی عن امالی الفتاوی حد القبلة فی بلادنا یعنی سمرقند مابین المغربین مغرب الشتاء ومغرب الصیف فان صلی الی جهة خرجت من المغربین فسدت صلاته-

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۳۱۴ مبحث فی استقبال القبلة)

مساجدو رخ که غلط وی نو هغوی لره څه کول پکار دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: میاں محمد اکرم ... اټك ښهر .... ۲۲ مئی ۱۹۸۴ء

**الجواب:** د خانه کعبې نه په غائبین باندې دا ضروری نه ده چې عین کعبې ته متوجه شی د هغوی دپاره دا کافی ده چې د کعبې جهت ته متوجه شی، بهر حال د اوری او د ژمی د مغرب ټوله درمیانی حصه د کعبې جهت دې خو که تاسو د نورو مساجدو د تغلیط نه په امن شئ نو قطب نما یا عمود سورې د ۲۲ مئی په تاریخ یا ۱۵ جولائی باندې کار وکړئ.(۱) وهوالموفق

## د مسجد د کوهی اوبه کور ته د وړلو او په ذاتی استعمال کې د راوستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات په کوهی کې واټر پمپ لګولې شوې دې او رسئ او بوقه هم ده، عموما خلق د برقې او رسئ په ذریعه اوبه راویستلو سره خپله د څښلو او څاروو باندې د څکولو دپاره اوړی، اوس جومات ته نزدې یو سړې کور جوړوی هغه سړې وائی چې د ذکر شوې جومات نه د تعمیری ضرورت دپاره د موټر پمپ په ذریعه اوبه حاصلې کړی او د بجلئ بل خپله ادا کړی، او د جومات نه په څه فاصله باندې نور کوهیان هم موجود دی خو د هغې نه په اوبو حاصلولو کې لږ

---

(۱) وفی الهندیة : ومن کان خارجاً عن مکة فقبلته جهة الکعبة وهو قول عامة المشائخ هو الصحیح هکذا فی التبیین ، وجهة الکعبة تعرف بالدلیل، والدلیل فی الامصار والقریٰ المحاریب التی نصبها الصحابة والتابعون فعلینا اتباعهم فان لم تکن فالسوال من اهل ذلک المؤضع واما فی البحار والمفاوز فدلیل القبلیة النجوم هکذا فی فتاویٰ قاضی خان۔

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۶۳ الباب الثالث الفصل الثالث فی استقبال القبلة)

وقال العلامة ابن عابدین : وفی منیة المصلی عن أمالی الفتاویٰ حد القبلة فی بلادنا یعنی سمر قند ما بین المغربین مغرب الشتاء ومغرب الصیف فان صلی الی جهة خرجت من المغربین فسدت صلاته۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۳۱۶ مبحث فی استقبال القبلة)

وخت لګی، اوس په دې صورت کې د اسرې د دې موټر پمپ په ذریعه او به شرعا حاصلولې شی او که رسئ او بوقه استعمال کړی شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: نذیر احمد

**الجواب:** د متولی یا د محلې د مشرانو په اجازت سره د هر دواړو طرفونو نه او به استعمالولې شی لان الظاهر انه لیس بوقف شرعی بل هو باق علی الشرکة ان کان الثمن من المال المشترك او علی الملك الخاص ان کان دفع الثمن من واحد فیکون الاعتبار لاذن الملاك او وکیلهم. وهوالموفق

## که یو ځای کې د مسجد د جوړولو اراده وی نو صرف په خیال او ارادې سره هغه ځای مسجد نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یو ځای کې مو د جومات د جوړولو خیال وو چونکې دا ځای د غرۀ په لمن کې دې جومات هم نه دې جوړ شوې، مونځ وغیره هم پکې نه دی شروع شوې چې د غرۀ نه کاڼی وریدل شروع شو او دا ځای خطرناك ثابت شو، اوس سوال دا دې چې آیا دا ځای د جومات په حکم کې دې یا نه؟ یعنی دا په بل استعمال کې راوستل جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی عبدالله حقانی خطیب مسجد حسن ابدال

**الجواب:** صرف خیال د یو ځای د جومات کیدو د پاره ناکافی دې، جومات په داسې ځای کې وی کوم چې غیر مشاع وی او لازه متعین وی او په هغې کې باقاعده د جماعت مونځ شوې وی. فلیراجع الی وقف رد المختار: ۳۴۸/۴ (۱)

وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله بالفعل) ای بالصلاة فیه ففی شرح الملتقی انه یصیر مسجد بلا خلاف ثم قال عند قول الملتقی ... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## په مسجد کې ورکړې شوې چنده که باقي وي نو د ورکونکي ملک دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې ورکړې شوې چنده واپس غوښتل څنګه دي؟ آیا هغه واپس ورکولې کیدې شي؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: ګل خان دکاندار

**الجواب:** که دا رقم بعینه باقي وي نو واپس نې اخستلې شي لبقاءه فی ملك المعطی.(۱) فافهم. وهوالموفق

---

بقیه ازحاشیه گذشته] وعند ابی یوسف یزول بمجرد القول ولم یرد انه لا یزول بدونه لما عرفت انه یزول بالفعل ایضاً... ویصح ان یراد بالفعل الافراز ویکون بیانا للشرط المتفق علیه عند الکل کما قدمناه من ان المسجد لو کان مشاعا لا یصح اجماعاً... لکن عنده لا بد من افرازه بطریقه الخ- (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۴ مطلب فی احکام المسجد)

۱) په امداد الفتاویٰ جلد دوم کتاب الوقف سوال(۷۲۲) کې په لاندې حاشیه کې د تصحیح الاغلاط په عنوان سره لیکلی شوی دی چې: دا مسئله هم منقح نه شوه د جوماتونو او مدرسو وغیره چنده د معطی د ملك نه خارجه شوه او که نه، علم لرونکي دې غور اوکړي،،

بهرحال په دې مسئله کې د فقهاؤ اختلاف دې

(۱) ځینې فقهاء فرمائی چه په جومات وغیره کې ورکړې شوې چنده د معطی د ملك نه اوځی او د فتاویٰ عالمګیریه د دې جزئیې نه دلیل نیسی. وفی الهندیة: رجل اعطی درهما فی عمارة المسجد او نفقة المسجد او مصالح المسجد صح لانه وان کان لا یمکن تصحیحه تملیکا بالهبة للمسجد فاثبات الملک للمسجد علی هذا الوجه صحیح فیتم بالقبض کذا فی الواقعات الحسامیة ... کما لو قال وقفت هذه المأة للمسجد یصح بطریق التملیک اذا سلمه للقیم کذا فی الفتاویٰ العتابیة- (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۶۰ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد وتصرف القیم)

ددې نه علاوه په جوماتونو یا دینی مدرسوکې...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

بقیه ازحاشیه گذشته] چې کومه چنده ورکولې شی هغه صدقه وی او په صدقه کې رجوع جائز نه دے،

حیث قال العلامة المرغینانی: الصدقة کالهبة لا تصح الا بالقبض ولا رجوع فی الصدقة لان المقصود هو الثواب وقد حصل۔ (هدایة ۳:۲۹۳ فصل فی الصدقة)

وهکذا قال العلامة ابوبکر الحداد الیمنی: الصدقة کالهبة لا تصح الا بالقبض لانها تبرع کالهبة... ولا تصح الرجوع فی الصدقة بعد القبض لانه قد کمل فیها الثواب من الله تعالیٰ۔ (الجوهرة النیرة ۲:۱۹ کتاب الهبة)

وقال الشیخ ظفر احمد العثمانی: التملیک للمسجد صحیح قلت فی الحدیث دلیل لما قال علماؤنا من ان التملیک للمسجد صحیح فی الهندیة الخ (علاء السنن ۳:۱۹۸ باب الوقف علی المصالح المسجد وحکم ما یهدی الیه من الاموال)

(۲) او بعضې نورو ډیر فقهاء فرمائی چه چنده ترڅو پورې باقاعده خرچ نه شی هغه د ورکونکی ملکیت وی ځکه چې د چندې منقوله اموال وقف عرفی دې وقف شرعی نه دې کما فی الهندیة: لو وقف دراهم او مکیلا او ثیابا لم یجز وقیل فی موضع تعارفوا ذلک یفتی بالجواز۔ (عالمگیریة ۲:۳٦۲ الباب الثانی فیما یجوز وقفه الخ) اود وقف په باره کې فقهاء کرام فرمائی: قال العلامة الحصکفی: حبس العین علی حکم ملک الواقف والتصدق بالمنفعة ولو فی الجملة والاصح انه عنده جائز غیر لازم کالعاریة وعندهما هو حبسها علی حکم ملک الله تعالیٰ وصرف منفعتها علی من احب۔ (الدرالمختار ۳:۳۵۷ کتاب الوقف)

شاه اشرف علی التهانوی فرمائی: چنده د چندې ورکونکو د ملکیت نه خارج نه شوه، په دې وجه ددغه خلقو نه اجازت اخستل ضروری دی البته کوم ورکونکی چې مجهول یا مفقود وی دهغوی د حصې برابر په بل جمات کې خرچ کول جائزدی۔ (امداد الفتاویٰ ۲:۵۸۰ کتاب الوقف)...(بقیه حاشیه اگلے صفحه پر)

د وقف شوی دراهمو او دنانیرو حکم دادې چې دهغې سرمایه (راس المال) باقی اوساتی او دهغې منافع د نیکۍ په کارونو کې خرچ کړی مثلاً په مضاربت کې ئې اولګوی او اصل سرمایه باقی اوساتی او نفع ئې خرچ کړی، قال العلامة ابن عابدین: وعن الانصاری وکان من اصحاب زفر فیمن وقف الدراهم او ما یکال او ما یوزن ایجوز ذلک

## د اهل حدیث خیل خان لره بیل مسجد جوړول مشروع او د هغې انهدام موجب ضمان دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په سخا کوټ کې درې مساجد د مخکې نه موجود وو په دې کلی کې بعض اهل حدیث غیر مقلدین هم دی هغوی به آمین بالجهر او رفع الیدین کول او جګړې به هم پیدا کیدې لهذا بعض حنفی علماء کرامو او محلې والا مشوره وکړه چې ځانله وروکې شان جومات جوړ کړئ، هغوی جومات تعمیر کولو سره په شان و شوکت د هغې افتتاح وکړه او باقاعده په هغې کښ مونځ شروع شو څه ورځې پس څو شرپسندو هغه جومات راوغورځولو چې مذهبی منافرت پیدا شی او ویې ویل چې دا جومات ضرار دې، اوس سوال دا دې چې آیا د دې جومات جوړول صحیح وو؟ دې جومات ته جومات ضرار ویل صحیح دی؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: سرور شاه واهالیان سخا کوټ

---

قال: نعم وقیل کیف قال: یدفع الدراهم مضاربة ثم یتصرف بها فی الوجه الذی وقف علیه وما یکال او یوزن یباع ویدفع ثمنه مضاربة او بضاعة- (ردالمحتار ۲:۳۶۴)

او په احسن الفتاویٰ کې دی: د دراهمو او دنانیرو وقف صحیح دې خو چونکې په وقف کې انتفاع بالمنافع سره د بقاء العین وی، په دې وجه د دراهمو په وقف کې دا شرط دې چه اصل دراهم خرج نه کړی بلکه دهغې منافع خرج کړی، یا په هغې څه څیز واخلی او دهغې منافع په فقیرانو باندې خرج کړی- (احسن الفتاویٰ ۶:۴۱۶) پس د شامی او احسن الفتاویٰ نه هم دا معلومیږی چې د وقف او چندې په مال کې فرق دې ځکه چه د چندې مال بعینه خرج کولې شی-

ددې نه علاوه د الملتقط فی الفتاویٰ الحنفیة د یوې جزئیې نه صراحت سره معلومیږی چه د چندې مال د معطی د ملک نه خارجیږی چې ترڅو پورې باقاعده خرج شوې نه وی، حیث قال اذا جمع دراهم لکفن میت ففضل او کفنه غیره یصرف الی المعطین فان لم یوجدوا یصرف الی کفن مثله فان تعذر ذلک یتصدق به- (الملتقط ۲۷ مطلب فی جواز امامة الصبی فی التراویح)

پس دلائلو ته په کتلو سره دا دویم قول راجح دې، وقد افتیٰ به الشیخ التهانوی

رحمه الله از مرتب

**الجواب:** د اهل حدیث جدا جومات جوړول نه د شریعت خلاف دی او نه د مصلحت، او د هغوی د جومات راغورځول خلاف اسلام او موجب ضمان دي. خو تقلید شخصی ته شرك ويل او ائمه دين ته احبار او رهبان ويل او د ائمه دین او بزرګان دین نه خلقو لره بدظن کول وغیره د بې ادبۍ طوفان ناقابل تحمل دي **وهوالموفق**

## د یخنۍ په موسم کې په مسجدونو کې اور بلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په مساجدو کې په سخته یخنۍ کې اور بلولې شی د هغې یو فائده دا ده چې د دې سختې یخنۍ په موسم کې جومات ګرم شی خو د هغې سره نقصانات هم ډیر دی، مثلا د مانځه نه پس د اور نه چاپیره کیناستل او ګپ شپ لګول د مانځۀ په وخت په سترګو کې لوږی ننوتلو سره د هغې بندول. د بعض صحیح پنځه وخته مونځ کونکو د خشاك د نه ورکولو د وجې نه جومات نه نه راتلل، د بعض مونځ کونکو نه د رواج مطابق په زبردستۍ خشاك وصولول وغیره. نو آیا دا اور د مخکې په شان اوسوزولې شی او که بند کړې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** سرفراز وسیف الله مدین سوات

**الجواب:** واضحه دې وی چې د جومات د بنیاد کیښودلو په وخت په جومات کې د اور بلولو ځای قابل اعتراض نه دې. خو مونځ کونکو ته تکلیف او د مونځ نه کونکو اجتماع قابل اعتراض ده، پس د محلې مشران که د دې عوارض د وجې نه اور بلولول بند کړی نو ماجور به وی خو که په بندولو کې زیات مفاسد مثلا د مونځ کونکو قلت وغیره موجود وی نو نۀ بندول غوره دی، په داسې مسائلو کې کلکه فیصله کول ناممکن دی (۱) **وهوالموفق**

---

(۱) يدل عليه ما فی خلاصة الفتاوی: ويكره التوضی والمضمضمة فی المسجد الا ان يكون فيه موضع اتخذ للوضوء ولا يصلى فيه والخياط اذا كان يخيط فی المسجد يكره الا اذا جلس لدفع الصبيان وصيانة المسجد فحينئذ لا بأس به... فی كتاب الوقف عن محمد فی دكان اتخذ للمسجد بين المسجد وبينه طريق وهو باد عن المسجد يصلى فيه فی الحر والبرد يضاعف الاجر كالمسجد والجلوس فی المسجد لغير الصلوة جائز. (خلاصة الفتاوی ۱:۲۲۹ قبيل كتاب الحيض)

## په جنازګاه کې مونځ جائز خو د مسجد ثواب نه ملاویږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې یو جنازګاه ده چې په هغې کې د جنازې د مانځه نه علاوه پنځه وخت مونځ سره د جمعې د مانځه لوستلې شی وړاندې ئې قبرونه وغیره نشته. آیا په دې کې عام مونځونه او د جمعې مونځ جائز دې؟ که جائز وی نو غیر اولی خو نه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل امین حقانی احاطه مدنیه دار العلوم حقانیه... ۱۹۸۸ء\۶\۸

**الجواب:** که دا جنازګاه صرف د جنازې دپاره وقف شوې وی نو په دې کې د جمعې مونځ وغیره لوستل یا په دې کې تدریس وغیره کول ممنوع نه دی (۱) خو په دې کې د جومات شرعی په شان ثواب نه ملاویږی. **لعدم کونه مسجدا شرعیا. وهوالموفق**

## په مسجدونو کې د نکاح د محفل منعقد کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مساجد کې محل نکاح منعقد کول که جائز وی نو د قرآن او سنت په رڼا کې د هغې ثبوت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: جی ایم خلیل الرحمن فیډرل ایریا کراچی... ۱۸ جون ۱۹۸۹ء

**الجواب:** په مساجد کې نکاح کول بذات خود افضل دی. (**لحدیث الترمذی: واجعلوه فی المساجد واضربوا علیه بالدفوف**) (۲) خو په موجوده دور کې عقد

---

۱) قال العلامة ابراهیم الحلبی: مصلی العید والجنازة له حکم المسجد عند الفقیه ابی اللیث والاصح عدمه عند السرخسی ووفق قاضی خان فقال له حکم المسجد عند اداء الصلوٰة حتی یصح الاقتداء وان لم تکن الصفوف متصلة ولیس له حکمه فی حق المرور وحرمة الدخول للجنب والحائض (غنیة المستملی المعروف بالکبیری ۵۶۶ فصل فی احکام المسجد)

۲) (سنن الترمذی ۱:۳۳۴ باب ماجاء فی اعلان النکاح)

نکاح د ډیرو رسمونو او رواجونو سره ګډه شوې ده چې د هغې په جوماتونو کې ارتکاب د جومات د عظمت منافی دې، پس د عوامو دپاره افضل دی چې مساجد د داسې رسوم فاسده نه بچ کولو سره په نورو ځایونو کې نکاح اوتړی (¹) وهوالموفق

**د مسجد د کوهی نه په نلکو (پائپونو) کې اهل محله ته اوبه ورکول وغیره**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات په کوهی باندې مشین لګیدلې دې او اهل محله د دې کوهی نه په خپل خپل خرچ باندې خپلو کورونو ته اوبه بوتلې دی او هر یو مقرره د میاشتې فیس ادا کوی، صرف پیش امام ته د کلونو نه رڼا او اوبه مفت ورکولې شی کوم چې اوس وفات شوې دې اوس د جومات څو کسانو دا اوبه او رڼا بنده کړې ده د دې بندولو څه حکم دې؟ دا د بندولو کار د جومات کمیټۍ کړې دې آیا دا کمیټی ختمیدلې شی؟ آیا د جومات دا امام په اجازت یا بغیر د اجازت نه دا بجلی وغیره استعمالولې شی؟

**نوټ:** د کومو خلقو نه چې اوبه وغیره بندې کړې شوې دی د هغوی بزرګانو په دې جومات کې کوهې کنستلې وو او تر اوسه پورې د هغوی اولاد په دې کې امامت کوی او متولی هم دا امام دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولانا رحیم الله باچا... اضاخیل بالا پشاور ١٨ ربیع الثانی ١٤٠٢ھ**

**الجواب:** الف : د جومات په حقوق کې د چا شراکت او استحقاق صحیح نه دې خو د محلې مشران په داسې امور کې د تبرع وغیره نه منع نه دی په اوقاف شرعیه کې ممنوع دی.

---

١ ﴾ قال فی الهندیة : ان کان الاصل الاباحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فالکراهة للتحریم.

(فتاوی عالمگیریة ٥:٣٠٨ کتاب الکراهیة)

وفی المنهاج : کم من مباح یصیر ممنوعا لعوارض خارجیة.

(منهاج السنن شرح للترمذی ٤:٢٤٨ باب ماجاء فی اعلان النکاح)

ب: د کمیټۍ د قیام او عدم قیام دارومدار د اهل محله د مشرانو په اکثریت باندې دې.

ج: که د دې اوبو او بجلۍ انتظام د قوم په چندې سره وی نو د قوم په اجازت سره دا امداد وغیره ممنوع نه دې او که په اوقاف شرعیه سره وی نو هغه د امداد وغیره په طور او د جومات د امور نه علاوه په نورو امور باندې صرف کول ناجائز دی. وهوالموفق

## په مسجد کې چنده کې مرزائی عیسائی وغیره غیر مسلم د چنده ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د جومات په تعمیر کې د غیرمسلم مثلا مرزائی عیسائی وغیره دچندې څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: سمیع الله اسلام آباد**

**الجواب:** مرتد د چندې ورکولو اهل نه دې، یعنی د هغه ورکړه نافذ نه وی بلکې موقوف وی، (ماخوذازدرمختاربابالمرتد)([1]) خو د نورو کفارو نه چنده اخستل جائز دی. ([2]) په دې شرط چې دا احتمال نه وی چې اهل اسلام به د هغوی ممنون کیدو سره د هغوی په مذهبی شعائر کې شرکت یا د هغوی د

---

١) قال العلامة التمرتاشي: ويزول ملك المرتد عن ماله زوالاً موقوفا.
(تنوير الابصار على هامش ردالمحتار ٣:٣٢٨ باب المرتد)

٢) قال العلامة ابن عابدين: (قوله بدليل صحته من الكافر... لانه مباح) يعنى قد يكون مباحاً كما عبر فى البحر، والمراد انه ليس موضوعاً للتعبد به كالصلوٰة والحج بحيث لا يصح من الكافر اصلا بل التقرب به موقوف على نية القربة فهو بدونها مباح حتى يصح من الكافر كالعتق والنكاح لكن العتق انفذ منه حتى صح مع كونه حراماً كالعتق للصنم، بخلاف الوقف فانه لابد فيه ان يكون فيه صورة القربة وهو معنى ما يأتى فى قوله ويشترط ان يكون قربة فى ذاته اذ لو اشترط كونه قربة حقيقة لم يصح من الكافر هذا ما ظهر لى.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣:٣٩٢ كتاب الوقف)

خاطره په خپل شعائر کې مداهنت شروع کړي. لان المداهنة والشركة من المحرمات وكذا كل ما يفضى الى المحرمات.(۱) وهو الموفق

## د مسجد د پاره د وقف شوي تيلو يا بدلولو حكم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې څو کسانو د جومات د پاره د خاورو د تيلو تيم اخستلو سره وقف کړو اوس تيم کمزورې شو او د تيلو د ضائع کيدلو خطره ده. اوس په اهل محله کې اختلاف پيدا شو بعض وائي چې يو دکاندار ته ورکولو سره چې هغه دا تيل خرڅ کړي او د هغې په بدل کې دې د موقع مطابق د هغه نه اهل محله تيل راوړي او په جومات کې دې استعمالوي، زيد وائي چې د موقوف څيز بدل کول بغير د ضرورت نه يا قرض ورکول صحيح نه دي، ترڅو پورې چې هغه قابل انتفاع وي او په دليل کې د شرح وقايه قول پيش کوي: ﴿ونقضه يصرف الى عمارته او يدخر لوقت الحاجة اليها وان تعذر صرفه اليها بيع الخ﴾ (شرح وقايه ۲/۴۱۲) بکر وائي چې دا تيل په پورته بيان کړې شوې طريقه باندې قرض ورکول پکار دي او په بدلولو کې څه باك نشته او په دليل کې د خلاصة الفتاوى د كتاب الوقوف قول پيش کوي. اما اقراض ما فضل من الوقف قال فى وصايا النوازل رجوت ان يكون ذلك واسعاً اذا كان ذلك احرز للغلة من امساكه فان فضل من غلته فصرف الفضل الى حوائجه على ان يرده اذا احتاج الى العمارة قال لا يفعل ويتنزه غاية تنزه فان فعل مع ذلك ثم انفق فيه رجوت ان يكون ذلك يبرئه عما وجب عليه.

---

۱) وفي تفسير المراغي: وللمسلمين ان يقبلوا من الكافر مسجداً بناه كافر او اوصى ببنائه او ترميمه اذا لم يكن فى ذلك ضرر دينى ولا سياسى كما لو عرض اليهود الآن على المسلمين ان يعمروا المسجد الاقصى بترميم ما كان قد تداعى من بنائه او بذلوا لذلك مالا لم يقبل منهم لانهم يطمعون فى الاستيلاء على هذا المسجد فربما جعلوا ذلك ذريعة لادعاء حق لهم فيه. (تفسير مراغى ۴:۷۴ سورة توبة آيت: ۱۷)

اوس په زید او بکر کې څوك په حقه دی؟ او د ذکر شوې طریقې مطابق قرض یا بدلول یا محفوظ ساتل کومه طریقه جائز ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** مولوی محمد یوسف وانډه سیمو لکی مروت

**الجواب:** د عرف نه معلومیږی چې د جومات دپاره د خاورو-تیل د وقف په طور نه شی ورکولې لهذا د هغه تیم اخستل او خرڅول چې کله د مالك او متولی د طرف نه وی، جائز وی. (۱) **وهوالموفق**

## د مسجد دپاره سرائې اخستلو سره به په بل ځای کې د بدلولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مونږ یو ځای (سرائې) په دې غرض باندې اخستلې وه چې په دې کې به جومات جوړوو چونکې دا ځای د جامع جومات سره نزدې دې په دې وجه خلق وائی چې دلته بل جومات جوړول مناسب نه دی نو آیا مونږ دا ځای په بل ځای سره بدلولې شو؟ چېرته چې د جومات جوړولو ضرورت وی یعنی هغې لره خرڅولو سره بل ځای اخستلې شو؟ هم دغه شان په ذکر شوی ځای کې د سابقه سرائې څو کمرې دی کومې چې ئې په کرایه باندې ورکړې دی چونکې دا وقف دې نو آیا دا سرائې په کرایه باندې ورکول جائز دی؟ په دې هر دواړو صورتونو کې د دې سرائې د کرایه نه حاصل شوې رقم مونږ چېرته خرچ کولې شو؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** گل محمد لنډی کوتل .... ۲۸ جون ۱۹۷۵ء

---

(۱) یدل علیه مافی الهندیة: مسجد له مستغلا واوقاف اراد المتولی ان یشتری من غلة الوقف للمسجد دهنا او حصیراً او حشیشاً او آجرا او جصا لفرش المسجد او حصی قالوا ان وسع الواقف ذلک للقیم وقال تفعل ما تری من مصلحة لمسجد کان له ان یشتری للمسجد ما شاء وان لم یوسع ولکنه وقف لبناء المسجد لیس للقیم ان یشتری ما ذکرنا وان لم یعرف شرط الوقف فی ذلک ینظر هذا القیم الی من کان قبله الخ.
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴٦۱ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد)

**الجواب:** چونکې هغه ځای تاسو د وقف کولو په اراده اخستلې دې هغه تر اوسه پورې موقوف نه دې لهذا په دې کې هر قسم تصرف یعنی استبدال، په کرایه باندې ورکول وغیره جائز دی. **والدلیل علی عدم کونه موقوفاً عدم وجود الشرط وهو اداء الصلاة وقوله جعلته موقوفاً، فلیراجع الی رد المختار ۳/۵۱۱**(۱)

**وهو الموفق**

## مسجد لره بل ځای ته منتقل کول یا مخکنې لرګی وغیره په بل مسجد کې د لګولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو ځای نه بل ځای ته د جومات منتقل کول جائز دی یا نه؟ هم دغه شان د دې زوړ جومات لرګی وغیره په دې نوی جومات کې لګولې کیدې شی یا نه؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: ناظم محمد حنیف جلاله...... ۲۳ جون ۱۹۷۵ء

**الجواب:** دویم جومات جوړول ممنوع نه دی خو اول جومات به په خپل حال باندې جومات پرېښودلې شی، **یدل علیه ما فی الدر المختار: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجداً عند الامام والثانی ابدا الی قیام الساعة وبه یفتی. (هامش ردالمحتار ۳: ۵۱۳)**(۲) **قلت فعند عدم الخراب یکون مسجداً بطریق اولی**، خو که د اول جومات د لرګو وغیره د خرابیدلو ظن غالب وی نو د هغې نقل (په دې دویم جومات کې خرچ کولو دپاره) جائز **کما فی ردالمحتار ۳: ۵۱۴ وفی فتاوی النسفی سئل شیخ الاسلام عن اهل قریة رحلوا وتداعی مسجدها الی**

---

۱) قال العلامة الحصکفی: ویزول ملکه عن المسجد والمصلی بالفعل وبقوله جعلته مسجدا عند الثانی وشرط محمد والامام الصلاة فیه بجماعة وقیل یکفی واحد وجعله فی الخانیة ظاهر الروایة۔

(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۴۰۴ مطلب فی احکام المسجد)

۲) (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

الخراب وبعض المتغلبة يستولون على خشبه وينقلونه الى دورهم هل لواحد لاهل المحلة ان يبيع الخشب بأمر القاضي ويمسك الثمن ليصرفه الى بعض المساجد او الى هذا المسجد قال نعم، انتهى(١) قلت: فالمناط هو الاستيلاء واهل الحل والعقد من اهل المحلة قائمون مقام القاضي وكذا لما جاز صرف الثمن فيكون صرف الخشب وغيرها اولى بالجواز فافهم. وهوالموفق

**د مسجد د پاره وقف شوې ځمکه کې مسافر خانه جوړول جائز نه دی**

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د کلي خلقو دا فيصله وکړه چې په دې مخصوص ځای کې به جومات جوړوو بيا يو مربع ځای جوړ کړې شو، د جوړيدو نه پس په نيمه حصه کې مونځ وکړې شو او په نيمه حصه کې د شروع نه لرګی کيښودلې شو يعنی په نيم کې مونځ شروع شو او نيم د لرګو دپاره هم داسې پريښودلې شو، اوس د لرګو والا حصه کې مسافر خانه جوړول جائز دی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: محمد خليل الله حقانی.....۲۳ مارچ ۱۹۷۵ء

**الجواب:** که دا ټوله ځمکه د جومات او د جومات د ضرورياتو دپاره وقف کړې شوې وی نو په دې کې مسافر خانه جوړول جائز نه دی.(٢) او که باقاعده نه وی وقف کړې شوې صرف اراده کړې شوې وی نو په باقی نيم کې به مسافر خانه جوړول جائز وی، ځکه چې په دې صورت کې د واقف مخالفت موجود نه دې (٣) وهوالموفق

---

١) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۳:۴۰۷ مطلب فی نقل انقاض المسجد ونحوه)

٢) وفی الهندية: قيم المسجد لا يجوز له ان يبنی حوانيت فی المسجد او فی فنائه لان المسجد اذا جعل حانوتا ومسكنا تسقط حرمته وهذا لا يجوز والفناء تبع المسجد فيكون حكمه حكم المسجد. (فتاویٰ عالمگيرية ۲:۴۶۲ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد)

٣) قال العلامة ابن عابدين: وما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص وهو حكم لا دليل عليه سواء كان نصه فی الوقف نصا او ظاهرا، وهذا موافق...[بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

## د مسجد نه به واړه ماشومان او لیونی لرې ساتلې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه وړه ماشومه د څلورو کالو په ژړا کور ته راغله او مور پلار ته ئې اوئیل چې زه فلاني ملا صاحب یا طالب علم دیکه کړلوسره په څمکه راګزار کړم، پس د دې ماشومې مور پلار بغیر د څه تحقیق نه په سخته غصه کې جومات ته راغلل او هغه طالب علم ته ئې ډیرې بدې ردې وویل او په کاڼو ئې ویشتلو، د ګریوان نه ئې ونیولو او دوه درې سپیړې ئې اووهلو چې زمونږ لور دې ولې وهلې ده؟ طالب العلم وویل چې د جومات بې ادبي او بې حرمتي ئې کوله ما منع کړه خو هغه نه تله، لهذا ما دیکه ورکړه چې په هغې سره هغه په څمکه راولویده خپل اولاد ته خپله نصیحت کوئ چې د جومات بې حرمتي نه کوی، سوال دا دې چې په دې مسئله کې طالب العلم په حق دې کې د محلې خلق؟ بله دا چې د طالب العلم په بې حرمتئ کولو سره کافر شو که نه؟ او د هغوی دپاره څه تعزیر دې؟ بینواتوجروا

**المستفتي:** دربار مسجد ناډان شهید اکبر پوره نوښهر..... ۲ رمضان المبارک ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** د بې عقله ماشومانو نه د جومات حفاظت ضروري دې لما روی عبدالرزاق مرفوعا: جنبوا المساجد عن صبیانکم ومجانینکم (الحدیث) (۱)

---

بقیه ازحاشیه گذشته] لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه کما صرح به في شرح المجمع۔

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۹۷ مطلب ما خالف شرط الواقف)

۱) عن مکحول عن معاذ بن جبل قال رسول الله ﷺ جنبوا مساجد کم مجانینکم وصبیانکم ورفع اصواتکم وسل سیوفکم وبیعکم وشرائکم واقامة حدود کم وخصومتکم وجمروها یوم جمعکم واجعلوا مطاهر کم علی ابوابها۔

وقال رسول الله ﷺ جنبوا مساجد کم الصبیان والمجانین، وعن ابی هریرة یقول: قال رسول الله ﷺ جنبوا مساجد کم الصبیان والمجانین۔ (مصنف عبد الرزاق ۱:۴۴۲)

پس دا طالب علم په حقه دې او په اهانت کونکو باندې توبه کول یعنې معافي غوښتل ضروري دي، او طالب له هم پکار دي چې نهی عن المنکر په ژبې سره کوي نو په وهلو او دیکه کولو سره.... **وهوالموفق**

## د مسجد د امام او خطیب د اجازت نه بغیر په مسجد کې د بیان او درس ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات د امام او خطیب د اجازت نه بغیر څوک بیان وغیره کولې شي یا نه؟ خاص کر چې کله د جګړې وغیره خطره وي؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: مولوی محمد ... حسن بازار راوړی دیر .... ۲۷ رجب ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** د امام او خطبې نه علاوه نور امور مثلا درس او بیان نه اهل لره منع کول، د اشاعت دین نه منع کول دي خو غیر اهل مثلا بریلوی، مرزائی، شیعه، غیر مقلد وغیره لره منع کول د دین حفاظت دې، دغه شان د مقرره مدرس وغیره د درس وختونه به د دې جواز نه مستثنی ساتلې شي چې بد نظمي او فساد واقع نه شي. **وهوالموفق**

## په مسجد کې د تبلیغی جماعت والو د مانځه سره نزدې د تعلیم او بیان مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په جومات کې څو طالبان دارالعلوم حقانیه پس د ماسخوتن د مانځه نه فورا او په صف کې شاتې پاتې کیدونکی په مانځه کې وي یا نوافل لولي، په داسې حالت کې کتاب (فضائل اعمال) اخستلو سره د چا د مانځه د پرواه کولو نه بغیر د هغوی په قول "تعلیم" شروع کړي او حال دا چې دا د خلقو په مانځه کې خلل راولي، څو خله د هغوی د پوهه کولو کوشش وکړې شو خو ارزان شهرت لرونکي څو نمائشي عبادت ګزار تبلیغیان هغوی سره شاملیدو باندې بیا په زور زور سره لوستل شروع کړي آیا په شریعت کې د داسې کولو ګنجائش شته؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: ماستر کمال اکوړه خټک ... ۱۵ ستمبر ۱۹۹۰ء

**الجواب:** تبلیغی جماعت نیك او باا ثر جماعت دې د هغوی بیان او د تعلیم اهتمام کول په خپل مقام باندې صحیح دی، خو د هغوی دپاره ضروری ده چې د مونځ کونکو د مانځه خیال وساتی، ځکه چې مساجد د مانځه دپاره جوړ شوې دی نه د تعلیم وغیره دپاره. (۱) وهوالموفق

## د مسجد په انګڼ کې د شنې ګیا یا اوچې ګیا کینودلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات په انګڼ کې د ګیا (د کبلو قسم) راخیژی، یوه ډله د هغې د برقرار ساتلو او غټیدلو دپاره باقاعده اوبه خور کوی، او دویمه ډله وائی چې په داسې قسم ګیا کې د زهریله او ضرری کیړو د موجودګۍ احتمال وی لهذا هغې لره د بیخ نه ویستلو په ځای اوچه ګیا اچولو سره مونځ ادا کول فائده مند دی، د قرآن او سنت په رڼا کې مناسب کوم یو عمل دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عطاء محمد سینئر کلرك درګئ ملا کنډ ایجنسی ... ۱۵ جون ۱۹۷۰ء

**الجواب:** دواړه صورتونه جائز دی خو په شنه ګیا کې د زهریله ښناور او د نجاست خطره وی لهذا مصلحت په دویم شق کې دې. قال العلامة الشامی: لکن الافضل عندنا السجود علی الارض او علی ما تنبته کما فی نور الایضاح ومنیة المصلی، (ردالمحتار ۱: ۵۶۹، ۵۷۰)(۲) وقال رسول الله ﷺ دع ما یریبك الی مالا یریبك(۳). وهوالموفق

---

۱) یدل علیه ما فی البحر : فلهم ان یجعلوا المسجدین واحدا لاقامة الجماعة اما للتذکیر او للتدریس فلا لانه ما بنی له وان جاز فیه.

(البحر الرائق ۵:۴۱۹ فصل فی احکام المسجد)

۲) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۳۷۱ بعید مطلب فی اطالة الرکوع للجائی)

۳) رواه احمد والترمذی والنسائی وروی الدارمی الفصل الاول.

(مشکواة المصابیح ۱:۲۴۲ باب الکسب وطلب الحلال الفصل الثانی)

## په مسجد کې خوراک څښاک او د خیرات وغیره خوړلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مساجد کې ختم القرآن کولو نه پس نور طالبان او نورو شریکانو باندې خیرات خوړل جائز دی یا نه؟ یعنی د نور خایونو نه دیگونه راوړل او په مستحقینو باندې د خوړلو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: حافظ اسحاق ډیره اسماعیل خان ... ۲۵ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په جوماتو کې خوراك څښاك کول بذات خود مباح دی او د روایات حدیثیه نه ثابت دی خو د جومات نه د خیراتونو ځای او هوټل جوړول ناجائز دی. (۱) لان المساجد لم تبن لهذا (۲) پس که دا مباح کار د عوامو د دې منکر کار ذریعه جوړیږی نو د دې نه ځان ساتل ضروری دی، والا فلا باس به ومأخذه لاتقولوا راعنا وقولوا انظرنا (۳) وهوالموفق

## د مسجد دپاره د چنده کونکو د چندې نه د خپل ځان د پاره د څه اخستلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یوه غریبه علاقه کې د جومات کار شروع دې د دې ځای عوام ډیر زیات غریبانان دی او

---

(۱) وفی الهندیة: ویکره النوم والاکل لغیر المعتکف واذا اراد ان یفعل ذلک ینبغی ان ینوی الاعتکاف فیدخل فیه ویذکر الله تعالیٰ بقدر ما نوی او یصلی ما شاء کذا فی السراجیة. (فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۲۱ الباب الخامس فی آداب المسجد)

(۲) (ابوهریرة) رفعه فان المساجد لم تبن لهذا لمسلم وابی داؤد والترمذی.
(جمع الفوائد من مجمع الزوائد ۱:۱۱۸ رقم: ۱۲۱۹)

(۳) قال الشیخ مفتی محمد شفیع: ددې آیت نه دا خبره معلومه شوه چې که چېرته چاته دخپل یو جائزه کار په وجه نورو خلقو ته د ناجائزه کارونو ګنجائش معلوم شی نو دا جائز کار هم دهغه دپاره جائز نه پاتې کیږی.
(تفسیر معارف القرآن ۱:۲۸۰ آیت: ۱۰۴)

هغوی زه مجبور کړم چې ته چنده کوه نو زه هم غریب یم آیا زما دپاره د دې نه څه اخستل حلال دی؟ بینواتوجروا

المستفتي: غلام ص ډهوك زمان میانوالی... ۲ ربیع الاول ۱٤۰۲هـ

**الجواب:** د نیکانو خلقو په مشورې سره که هلته نزدې د یو لوئې مذهبی اداري یا لوئې جومات د قوانین په رڼا کې یو سړی لره مقرر کولو سره د هغه قانون مطابق څه مزدوری ورکړې شي نو ښه به وی، خو د دې کار نه دې د کمې ذریعه نه جوړوی (۱) وهوالموفق

## په مسجد کې د تیلو د پاره ورکړې شوې چنده د مسجد د خادم په تنخواه کې د ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې خالص د رڼا دپاره د تیلو په صورت کې یا د نقدو په صورت کې چې کومه هدیه ورکولې شي آیا هغه د جومات امام یا خادم ته د تنخواه په صورت کې ورکړې کیدې شي، د جومات خادم د اوبو برابرولو دپاره مقرر کړې شوې دې. بینواتوجروا

المستفتي: نظر احمد... ۱۸ مئی ۱۹۷۵

---

۱) د جومات وغیره دپاره چنده کونکې چې د ځان دپاره کوم کمیشن وغیره مقرر کوی په بعض صورتونو کښې دا اجاره باطل او په بعض کښې فاسد وی، په دې وجه د دې قسم سفیر او چنده کونکی دپاره غوره طریقه داده چې د دې کار دپاره په معروف او رائج طریقه باندې تنخواه مقرر کړې شي کوم چې په دې طرفونو کښې په مذهبی ادارو یعنی مدارس او مساجد کښې رائج وی، بیا که د تنخواه زیادت وی او د چندې وصولی کمه وی نو د هغې دپاره دې دا طریقه کار خپل کړې شي چې کومه علاقې ته لیږل وی نو هغوی ته دې د یو خاص مقدار مطابق دا اوئیلې شي چې که ستاسو وصولی د دې مقدار نه زیاته نه شي نو تاسو ته به انعام نه ملاویږی او که د مقرر مقدار نه زیات وصولی وی نو انعام به درته داسې ملاویږی چې تاسو خپله ټوله وصولی مدرسې یا جومات ته راولیږئ او مدرسه به هغې لره د خپلې مدرسې یا جومات په خزانه کښې ږدی بیا چې کله تاسو کار ختمولو سره راشئ او د حساب وصولی کوئ نو هغه وخت به د مقرر مقدار نه په زائد کښې دومره فیصده تاسو ته انعام ملاویږی، په دې طریقه کار سره به د سفیر همت زیاتیږی او جومات او مدرسې ته به هم فائده رسیږی او څه شرعی قباحت اجاره به هم نه لازمیږی (ملخص از نظام الفتاوی ۱/۳۲٦)

**الجواب:** د چنده ورکونکو په اجازت او د عدم اعتراض په صورت کې دا عمل جائز دې. لبقاء الملك لهم الآن كما كان فيكون المدار على اذنهم صريحا كان اودلالة، فافهم(۱) وهوالموفق

## د مسجد د چهت لرګی وغیره سامان خرڅول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو جومات د دوباره آبادولو دپاره راوغورځولې شی او لرګې او چت وغیره د هغه جومات دوباره استعمال نه کړې شی چې په هغې کې ځینې خراب شوې هم دی او نزدې ورته څه جومات هم نشته چې هغې ته ورکړې شی نو اوس به د دې سامان سره څه کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالرحیم ارمړیایان پیښور...... ۷ ربیع الاول ۱٤۰۱ھ

**الجواب:** د دې لرګو خرڅول او د حاصل شوې قیمتونو مصالح په جومات کې خرچ کول ضروری دی. لما فی ردالمحتار ۲: ۵۱٤ وفی فتاوی النسفی: سئل شیخ الاسلام عن اهل القریة رحلوا وتداعی مسجدها الی الخراب وبعض المتغلبة یستولون علی خشبه وینقلونه الی دورهم هل لواحد لاهل المحلة ان یبیع الخشب بامر القاضی ویمسك الثمن لیصرفه الی بعض المساجد او الی هذا المسجد قال نعم، انتهی(۲) فافهم وراجع الی ۵٦٦(۳) حتی یتبین لك عدم الاحتیاج الی امر القاضی۔ وهوالموفق

---

۱) چونکه په دې زمانه کښې عموما د جومات دپاره چې کومه چنده ورکولې شی یا یو څیز ورکولې شی عام طور د هغې مصرف د اهل جومات او د جومات د متولی په رائې باندې پرېښودلې شی، په دې وجه دلالة په دې کښې اجازت وی چې چېرته مناسب وی خرچ کولې شی. (از مرتب)

۲) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ٤۰۷ قبیل مطلب فی نقل انقاض المسجد ونحوه)

۳) قال العلامة ابن عابدین: حاصله ان اهل المسجد...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## د قبائلي مساجدو حكم او انګڼ لره په حجره كې د شاملولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې په قبائلي علاقو كې د حجرې څه حصه د جومات دپاره مختص وي چې په هغې كې د وسيدو ځائې، د اور بلولو او د تهوكلو دپاره بيل بيل ځاى وي او كټ هم په جومات كې وى، په دې طريقه زمونږ يو جومات دې چې په هغې كې برنډه او صحن هم موجود دې د دې نه علاوه د تالاب په ځاى حجره جوړه كړې شوې ده، جومات بنه اوږد او پلن دې او مونږ كونكى د درې ځلور نه زيات نه دى، اوس كه دا جومات وړوكې كړې شي يعنى انګڼ بيلولو سره په حجره كې شمار كړې شي نو آيا د دې جومات انګڼ په حجره كې شاملول جائز دى؟ **بينواتوجروا**

المستفتي: گل شير حقاني.....جمرود خيبر ايجنسى... ۲۲ مئ ۱۹۸٤ء

**الجواب:** بذات خود دا اقدام ممنوع نه دې. **لعدم كون هذه المساجد مساجد شرعية، لعدم افرازها بالطرق كما في رد المختار ٤/٣٥٦** (۱) خو

---

بقيه ازحاشيه گذشته] لو اتفقوا على نصب رجل متوليا لمصالح المسجد فعند المتقدمين يصح ولكن الافضل كونه باذن القاضى ثم اتفق المتأخرون ان الافضل ان لا يعلموا القاضى فى زماننا لما عرف من طمع القضاة فى اموال الاوقاف۔
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤٤۹ مطلب الافضل فى زماننا نصب المتولى بلا اعلام القاضى)

(۱) قال العلامة ابن عابدين : لكن عنده لا بد من افرازه بطريقه ففى النهر عن القنية جعل وسط داره مسجداً واذن للناس بالدخول والصلاة فيه ان شرط معه الطريق صار مسجداً فى قولهم جميعاً والا فلا عند ابى حنيفة... وفى القهستانى ولا بد من افرازه اى تمييزه عن ملكه من جميع الوجوه۔
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٤۰۵ مطلب فى احكام المسجد)

چونکي په دې اقدام کې ډیره خطرات موجوددی، منهاجعل صحن المسجدمکتبا وملعباللصبیان، لهذا په دې باندې به فتوی نه شی ورکولې (۱) وهوالموفق

## د مسجد رقم په بینک کې کیښودل او د امام د تصرف وغیره مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا د جومات رقم امام په خپل نوم باندې په بینک کې جمع کولې شی؟ هم دغه شان د جومات دپاره جمع شوې چنده په خپل ذاتی کار باندې راوستلې شی؟ یو سړی د څه اختلاف د وجې نه د جومات د امام خدمت بند کړو آیا امام هغه سړی لره د مانځه نه بندولې شی؟ آیا وخت په وخت د ذاتی مفاداتو دپاره دروغ ویونکی امامت کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: سمیع الله پیښور... ۶ نومبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چنده به په جومات کې د چنده ورکونکو د رائې مطابق تصرف کولې شی، لهذا هغوی ته یا د هغوی معتمد علیه ته دې مراجعت وکړې شی. (۲) خو بغیر د اضطرار نه په بینک کې رقم کیښودل حرام دی اګر چې بغیر د سود نه وی. (۳) او امام شرعی طور د دې اجازه نه لري چې څوك د اقتداء نه

---

۱) وفی المنهاج: وفیما رواه عبد الرزاق عن معاذ بن جبل ان رسول الله ﷺ قال جنبوا مساجدکم عن صبیانکم ومجانینکم وشراء کم وبیعکم وخصوماتکم ورفع اصواتکم واقامة حدودکم وسل سیوفکم واتخذوا علی ابوابها المطاهر وجمروها فی الجمع، دلیل علی کراهة تعلیم الصبیان فی المساجد سواء کان باجر او کان حسبة لله، قال ابن الهمام انه یکره التعلیم ان لم تکن ضرورة لان نفس التعلیم ومراجعة الاطفال لا یخلو عما یکره فی المسجد. (منهاج السنن شرح الترمذی ۲:۲۰۸ باب ماجاء فی کراهیة البیع والشراء فی المسجد)

۲) یدل علیه مافی الهندیة: القیم اذا اشتری من غلة المسجد حانوتاً او دارا ان یستغل ویباع عند الحاجة جاز ان کان له ولایة الشراء واذاً جاز له ان یبیعه کذا فی السراجیة. (فتاوی عالمگیریة ۲:۴۶۲ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد وتصرف القیم)

۳) وفی المجلة: الضرورات تبیح المحظورات، هذه ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

منع کړی (۱) بلکې سره د منع کولو نه هغه سړې بغیر د کراهت نه اقتداء کولې شی. (۲) په دروغژن امام پسې اقتداء مکروه ده چې کله په قوم کې د هغه نه غوره فرد موجود وی کنه نو په ړندو کې یوې سترګې والا بادشاه وی صرح به فی البحر...۳۴۰/۱...(۳) وهوالموفق

**په امام ساتلو کې د اختلاف د وجې نه د مسجد دپاره د وقف د واپس مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې لس کاله مخکې زید د جومات دپاره لس مرلې ځمکه وقف کړې وه، اوس د محلې والو په دې ځمکه کې د جومات د ابادوولو اراده کړې ده خو په خلقو کې اختلاف دې بعض دیوبندیان دی او بعض بریلیان، زید خپله دیوبندی او موحد دې او وائی چې زه به په دې کې خلاف العقیده امام نه ساتم، خو مخالفین وائی چې مونږ به په دې کې د خپلې مرضۍ مطابق امام ساتو نو آیا دا واقف د دې اختلاف د وجې نه دا ځمکه واپس اخستلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحیم درګئ... ۱۹ مارچ ۱۹۸۶ء

---

بقیه ازحاشیه گذشته] قاعدة اصولية مأخوذه من النص وهو قوله تعالیٰ (الا ما اضطررتم اليه)... والاضطرار الحاجة الشديدة والمحظور المنهى عن فعله يعنى ان الممنوع شرعا يباح عند الضرورة- (شرح المجلة للآتاسى ۱:۵۵ المادة: ۲۱)

۱) قال الله تبارک وتعالیٰ: ارئيت الذى ينهى عبداً اذا صلى-
(سورة العلق پاره: ۳۰ آیت: ۹،۱۰ رکوع: ۲۱)

۲) وفى الهندية: والامام ينوى ما ينوى المنفرد ولا يحتاج الى نية الامامة حتى لو نوى ان لايؤم فلانا فجاء فلان واقتدىٰ به جاز هكذا فى فتاوىٰ قاضى خان-
(فتاوىٰ عالمگيرية ۱:۶۶ الفصل الرابع فى النية)

۳) قال العلامة ابن نجيم: وينبغى ان يكون محل كراهة الاقتداء بهم عند وجود غيرهم والا فلا كراهة كما لا يخفىٰ-
(البحر الرائق ۱:۳۴۰ باب الامامة)

**الجواب:** زه دا وقف صحیح او باقاعده وی نو زید د واپسۍ اجازه نه لري (۱) خو نجدی او سلفی امام ساتل محلي او کلی لره د اختلاف په لعنت کي اخته کول دی، هم دا حال د بریلوی امام هم وی (۲) وهوالموفق

## د مسجد د تعمیر د وجې نه بعض متاثرین نه

## د مسجد د فنډ نه د معاوضه ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو جومات چې د هغې نه بهر د محراب په شا باندې په سرکاری اراضی کې د کیبین په شان څه دکانونه دی، د جومات د نوی تعمیر دپاره د جومات د شهادت نه پس دا دکانونه هم ختم شو د دې دکانونو تعلق د جومات د وقف سره نه و، د دکاندارانو په درخواست باندې ورته حکومت متبادل ځای ورکړو؛

اوس دکاندارانو حکومت ته درخواست کړې دې چې څومره موده د هغوی دکانونه ختم شوې دی د هغې په جبیره او کمی پوره کولو کې دې هغوی ته د هر دکان په بدل کې پنځه زره روپۍ معاوضه ورکړې شی، د جومات په تعمیر فنډ کې ګورنر پنځه لاکه روپۍ سرکاری چنده ورکړې ده اوس صورت مسئوله دا دې:

۱: آیا د جومات د تعمیری فنډ نه دا معاوضه څلیرشت زره روپۍ جوړیږی شرعا ورکول جائز دی؟

---

۱) وفی الهندیة: واما حکمه فعندهما زوال العین عن ملکه الی الله تعالیٰ وعند ابی حنیفة حکمه صیرورة العین محبوسة علی ملکه بحیث لا تقبل النقل عن ملک الی ملک.
(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۳۵۲ کتاب الوقف الباب الاول)

۲) یدل علیه ما فی البحر: حکاه النووی فی شرح المهذب لما روی ان علیا رأی موذنا یثوب فی العشاء فقال: اخرجوا هذا المبتدع من المسجد. (البحر الرائق ۱:۴۵۳ باب الاذان مبحث ویثوب) وقال العلامة الحصکفی: ویمنع منه وکذا کل موذ ولو بلسانه.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۴۸۹ قبیل مطلب فی الغرس فی المسجد)

۲: آیا دا ورکړه د چندې د سرکاری حصې نه کیدې شی او حال دا چې هغه د تعمیر دپاره ورکړې شوې ده؟

۳: ډی سی کوم چې د تعمیراتی کمیټۍ چیئرمین دې د حکومت د طرف نه دې رقم لره د چندې نه د ادا کولو شرعا اجازه شته؟

۴: آیا د دکاندارانو دپاره شرعا دا معاوضه د تعمیراتی چندې نه وصولول جائز دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد زبیر ..... پیښور کینټ ..... ۲۵ جمادی الاول ۱۴۰۳ھ**

**الجواب:** چونکې د جومات دا فنډ شرعی وقف نه دې، د خرچ کولو نه مخکې د چندې ورکونکو د ملك نه نۀ دی خارج شوې، لهذا دا چنده ورکونکی یا د هغوی مختار معتمد علیه د دې فنډ نه د څه معاوضه ورکولو په وجه مجرم نه جوړیږی، خو د داسې دکانونو معاوضه اخستل په ظاهر کې یو غیر شرعی امر دې. **وهوالموفق**

## د تقسم هند نه پس قدیم اوقاف په نوی مساجد باندې د خرچ کولو مسله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مثلا د بعض مساجدو دپاره خلقو اوقاف وکړل اوس هغه اوقاف مثلا په هندوستان کې پاتې شو، آیا دا اوقاف اوس هغه واقفین په پاکستان کې جوړ شوې مساجد باندې لګولې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: چوهدری لیاقت علی ډیره شاه جمال گوجرانواله**

**الجواب:** د تقسیم نه مخکې چې په کومو جوماتونو باندې وقف شوې وو نو د تقسیم او استبدال نه پس د دې سابقه مساجد (کوم چې په هندوستان کې وو) اهالیان دا اوقاف په خپلو مساجدو باندې که قدیم وی یا اوس جوړیږی خرچ کولې شی. (۱) **کما لا یخفی علی من راجع ما هو المعروف عند الواقفین. وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: (قوله عند الامام والثانی) فلا یعود میراثا ولا یجوز نقله ونقل ماله الی مسجد آخر سواء کانوا یصلون فیه اولا وهو الفتوی... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د مسجد او کلی د اوبو د پاره د مشترک پائپ مرمت باندې د مسجد د فنډ نه خرچه کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلی کې د څښلو دپاره د اوبو یو پائپ د بهر نه راغلې دې کوم چې د جومات دپاره هم دې او د کلی د وسیدونکو دپاره هم، که دا پائپ یا نلکا (پائپ) خراب شی نو آیا مونږ ئې د جومات د دې فنډ نه مرمت کولې شو؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** میر بهادر پیش امام مندوخیل خیر آباد نوښهر .....۱۰ اپریل ۱۹۸۴ء

**الجواب:** که دا فنډ د چندې وی نو د چنده ورکونکو په اجازت سره د دې نلکې (پائپ) په مرمت باندې دا فنډ خرچ کیدې شی، **لعدم کونه وقفاً شرعیاً (۱) هوالموفق**

## زمونږ په علاقو کې قبله د مغرب په طرف کې جنوب ته مائل ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ مساجد تقریبا پنځوس کاله مخکې جوړ شوې دی چې د هغې رخ د قطبی ستوری په انداز او کمپاس تقریبا شل ډګری د جنوب په طرف دې اوس مونږ جومات شهید کولو سره د هغې توسیع کول غواړو په داسې صورت کې د جومات رخ د قطبی ستوری او کمپاس په حساب سره صحیح کړې شی او که د سابقه رخ مطابق بنیاد کیښودلې شی، د جغرافیه ماهرین او په نقشه باندې پوهیدونکی وائی چې قطبی ستورې او کمپاس سره رخ د سورت بندرګاه طرف ته کومه

---

بقیه ازحاشیه گذشته] حاوی القدسی واکثر المشائخ علیه مجتبی وهو الاوجه فتح... (قوله وعاد الی الملک عند محمد) ذکر فی الفتح ما معناه انه یتفرع علی الخلاف المذکور ما اذا انهدم الوقف ولیس له من الغلة ما یعمر به فیرجع الی البانی او ورثته عند محمد خلافا لابی یوسف... (قوله وعن الثانی الخ) جزم به فی الاسعاف حیث قال ولو خرب المسجد وماحوله وتفرق الناس عنه لا یعود الی ملک الواقف عند ابی یوسف فیباع نقضه باذن القاضی ویصرف ثمنه الی بعض المساجد.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۶،۴۰۷ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

۱) (امداد الفتاوی ۲:۵۶۰ کتاب الوقف)

چې په هند کې واقع ده د قبلې طرف په مغرب کې صحیح دې او زمونږ ښهر کیملپور د سورت بندرګاه نه تقریبا دوه نیم زره میله د شمال په طرف دې په دې وجه زمونږ د جومات رخ شل ډګری د جنوب په طرف ته دې، دا د عین قبلې تقریبا مطابق دې د ښهر عام مساجد د قطبي ستوری او کمپاس په لحاظ سره د قبلې طرف مغرب دې او د څو مساجد رخ په شل ډګری جنوب کې دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: حکیم سید اختر صدر انجمن غازی مسجد کیملپور ... ۵ اپریل ۱۹۷۰ء

**الجواب:** چونکې زمونږ د ښهرونو نه قبله بعینه د مغرب طرف ته نه ده بلکې د جنوب طرف ته مائل ده لهذا هم د دغه سابقه بنیاد مطابق آبادی کول پکار دی، واضحه دې وی چې د سورت ښهر طرف ته د قبلې او مکې معظمې کیدل په اندازې سره معلوم دی نه په مشاهدې یا وحی سره لهذا باقی مساجد کوم چې جنوب ته مائل نه دی په هغې کې مونځ کول او د هغې صحیح کیدل د شریعت خلاف نه دی. (۱) وهوالموفق

## د چاردیواری نه بغیر په فراخه ځای کې د عیدګاه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې یوځای ۴۰×۸۰ دپاره عیدګاه دپاره مختص کړې شوې دې چې دهغې بنیادونه کیښودلې شوې دی خو په فنډ کې فی الحال د رقم د کمی د وجې نه چار دیواری جوړیدل باقی دی د اختر د مانځه نه یوه ورځ مخکې د هغې صفائی کولې شی او په زیات مقدار کې درې او پوزکی خورولې شی، اوس بعض خلق وائی چې ترڅو پورې د ذکر شوې عیدګاه نه چار دیواری نه وی تاؤ کړې شوې او دروازې ئې مکمل نه وی په دې کې د اختر مونځ نه شی کیدې؟ بینواتوجروا

المستفتي: میجر خان بادشاه خټک کانې تحصیل جنډ ... ۱۰ جولائی ۱۹۸۶ء

---

۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله محاريب الصحابة والتابعين) فلا يجوز التحرى معها زيلعى بل علينا اتباعهم خانية ولا يعتمد على قول الفلكى العالم البصير الثقة ان فيها انحرافا الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱:۳۱۷ مبحث فی استقبال القبلة)

**الجواب:** د رسول الله ﷺ په زمانه کې به په صحرا (میدان) کې د اختر مونځ کیدلو (۱) نه په هغې کې درځ وغیره وې او نه ئې چار دیواری وه، بهر حال دا اعتراض کونکی په غلطئ باندې دی. **وهوالموفق**

## په مسجد کې د ورکړې شوې چندې واپس اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی خوئی جومات ته چنده ورکړه بیا هغه مړ شو د هغه پلار مطالبه کوی چې چنده واپس کړئ، آیا دا پلار چنده واپس اخستلې شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: شاه دوران پیښور ... ۱۷ فروری ۱۹۸۶ء

**الجواب:** که چنده د جومات په ضروریات یا د جومات په قرضه جات کې خرج شوې وی نو د دې چنده ورکونکی وارثان د واپسئ مطالبه نه شی کولې، لهلاکها باذنها، او که دا چنده نه وی خرج شوې نو هغه واپس اخستلې شی. لعدم خروجها عن ملکه بخلاف الموقوف اذا قبضه المتولی، فافهم. **وهوالموفق**

## د فوج په غیر آباد میدانونو کې د جوړ کړې شوې عارض مسجدونو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې فوج چېرته هم ځی، هلته په غیر اباد میدانونو کې د مساجد دپاره یو ځای مختص کولو سره مونځ کوی، بیا چې کله لاړ شی یا هغوی ته د هغه ځای ضرورت راشی نو هغوی هغې لره ختم کړی آیا د داسې عارضی جوماتونو راغورځول شرعا صحیح دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولانا نسیم میان صاحب .... چولیان چهاؤنی لاهور ... ۲۴ مئی ۱۹۹۰ء

---

۱) (عن ابی سعید الخدری قال: کان النبی ﷺ یخرج یوم الفطر والاضحی الی المصلی) ای مصلی العید بالمدینة خارج البلد وهو الآن موضع معروف وبالتبر ک موصوف فی شرح السنة: السنة ان یخرج الامام لصلاة العیدین الا من عذر فیصلی فی المسجد ای مسجد داخل البلد، قال ابن الهمام: والسنة ان یخرج الامام الی الجبانة الخ.
(مرقاة المفاتیح فی شرح المشکواة ۳:۵۲۹ باب صلاة العیدین)

**الجواب:** دا جومات عرفي دې لهذا د دې انهدام صحیح دې، په خلاف د شرعي جومات.(۱) **وهوالموفق**

## د امام نه د ذاتي عداوت په وجه باندې مسجد ته مندر او د کفر ځای ویلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جومات د امام او د اهل محله د یو سړي ترمینځه ذاتي خفګان او دشمني ده، او په زړه کې دومره دشمني ساتي چې د جومات د امام په ځای د جومات په باره کې دا الفاظ وائي چې دا جومات نه دې د کفر ځای دې مندر دې، درهم سال دې، د دې سړي په باره کې د شریعت مطهره څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: طاؤس خان سرحد ټیکسټائل ملز نوښهر .. ۲۷ ستمبر ۱۹۶۹ء**

**الجواب:** د شعائر الله د بې حرمتۍ د وجې نه په دې سړي باندې د کفر سخته خطره موجود ده. (۲) په دې شرط چې د عوارض خارجیه د وجې نه ئې دا الفاظ نه وي ویلي. (۳) **وهوالموفق**

---

۱ ﴾ وفی المنهاج: اعلم ان المساجد اللتی بنیت علی الحوانیت المملوکة الغیر الموقوفة هی مساجد عرفیة لیست بمساجد شرعیة لما فی وقف البحر وحاصله ان شرط کونه مسجداً ان یکون سفله وعلوه مسجداً لینقطع حق العبد عنه لقوله تعالی وان المساجد لله، انتهی.

(منهاج السنن شرح الترمذی ۴:۷۴ باب المعتکف یخرج لحاجته ام لا)

۲ ﴾ قال الملا علی قاری: من استخف بالقرآن او بالمسجد او بنحوه مما یعظم فی الشرع کفر-(شرح فقه الاکبر ۱۶۷ فصل فیما یتعلق بالقرآن والصلاة)

۳ ﴾ قال العلامة ابن البزاز الکردری وشتم العالم والعلوی لا مر غیر صالح فی ذاته وعداوته لخلافه الشرع لا یکون کفراً ولا خطأ.

(فتاوی بزازیة علی هامش الهندیة ۶:۳۳۷ الثامن فی الاستخفاف بالعلم)

## مسجد د پاره د چنده ورکولو په شرط باندې په نیلام کې بولی نه کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د څاروو د یوې میلې ټهیکه حکومت نیلام کوی د ښهر په مالدارو خلقو کې یو کس وویل چې د میلې د ټهیکیدارئ د نیلام په دفتر کې دې څوک هم بولی نه کوی، چې ماته زما د مرضئ مطابق ټهیکه ملاؤ شی، او زه به د جومات دپاره زر روپۍ چنده پیش کوم، پس خلقو د دې زر روپۍ چندې دپاره په نیلام کې مقابله پرېښودله، اوس د زید وینا ده چې په ذکر شوې طریقې سره چنده اخستل حرام دی. لانه لایجوز الاعتیاض عن الحقوق المجردة کحق الشفعة للشفیع وحق القسم للزوجة وکذا حق الخیار فی المخیرة، په جواب کې د بکر وینا ده چې ذکر شوې پیسې اخستل جائز دی، لانه یجوز اخذ العوض علی وجه الاسقاط الحاقا له بحق القصاص والصلح عن الالف علی خمس مائة ... مهربانی وکړئ شرعی مسئله بیان کړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: اشرف علی بنون......۱۰ رجب ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** قلت هذه حیلة الاحسان لا انه عوض عن الحق لعدم الحق الخاص ولا انه عوض عن النزول لعدم الحق الخاص کالشراء والاستیجار. وهوالموفق

## د مسجد د بجلۍ نه بالمعاوضه تار اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جامع جومات ابوبکر نوښهر نه بهر د کابل سیند په غاړه باندې یو سړې د مازیګر نه تر ماسخوتن پورې د تفریح دپاره کیناستل غواړی او خواهش ئې دا دې چې د دې نژدې جومات د بجلۍ نه تار اخستلو سره هلته بجلی استعمال کړی، او د هغې بل جومات ته ادا کړی، نو آیا د جومات بجلی په ذکر شوې غرض سره هغه استعمالولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد ایوب ومتعلقین مسجد ابوبکر نوښهر صدر

**الجواب:** که د بجلۍ خرچه د وقف مال نه نه وی بلکې په چنده وغیره سره وې نو دې چنده ورکونکو وغیره یا د هغوی قائم مقام (متولی) په اجازت سره دا تار ورکول جائز دی، خو د تیلی ویژن وغیره دپاره د استعمال اجازت واجب الاجتناب دې. **وهوالموفق**

## د مساجد په دیوالونو باندې د ``یا الله ... یا محمد" لیکلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جوماتونو په دیوالونو او محراب باندې شرعا "الله، محمد" لیکل جائز دی یا ضروری دی؟ او که بغیر د حرف نداء نه ولیکلې شی نو آیا دا ناجائز او گناه ده؟ او بغیر د حرف نداء نه په لیکلو باندې د گستاخ رسول ﷺ، وهابی او په هغه پسې د مونخ د نه کیدو فتوی لګول څنګه دی؟

**الجواب:** نه الله او محمد لیکل ممنوع دی، او نه یا الله او یا محمد لیکل ممنوع دی. خو د حاضر او ناظر عقیده ساتل د شریعت خلاف ده. (۱) هم دغه شان د اهل بدع د شعار نه اجتناب ضروری دې. (۲) **وهوالموفق**

---

(۱) قال العلامة ابن البزاز الكردرى: وعن هذا قال علماء نا من قال ارواح المشائخ حاضرة تعلم يكفر. (فتاوىٰ بزازية على هامش الهندية ٣٢٦: ٦ الثانى فيما يتعلق بالله)

وقال الملا على قارى: وذكر الحنفية تصريحا بالتكفير باعتقاده ان النبى ﷺ يعلم الغيب لمعارضة قوله تعالىٰ: قل لا يعلم من فى السمٰوٰت والارض الغيب الا الله. (شرح الفقه الاكبر ١٥١ حكم تصديق الكاهن)

(۲) قال العلامة الطيبى: (قوله من تشبه بقوم) هذا عام فى الخلق والخلق والشعار واذا كان الشعار اظهر فى التشبيه ذكر فى هذا الباب. (شرح طيبى ٢١٩: ٨ الفصل الثانى كتاب اللباس)

(وهكذا فى مرقاة المفاتيح ٨: ٢٥٥ كتاب اللباس الفصل الثانى)

## په مسجد کې د لیټرین جوړولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو جومات په احاطه کې فلش یعنی لیټرین جوړیږی او اکثریت ئې د جوړولو په حق کې نه دی، او حال دا چې د لیټرین په جوړولو باندې څه کار شوې دې، شرعی حکم څه دې؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: مولوی محمد سراج نعمانی لال کرتی نوښهر ... ۱۳ ستمبر ۱۹۹۰ء

**الجواب:** د جومات په احاطه کې چې کوم ځای د مانځه دپاره متعین نه وی بلکې د اودس استنجاء او پیزار دپاره متعین وی نو په هغې کې لیټرین جوړول جائز دی. (۱) **وهوالموفق**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې د لیټرین جوړولو په باره کې قوم کې اختلاف دې اکثریت ئې مخالف دی د دې شرعی حل څه دې؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: عبدالصبور نورانی مسجد نوښهر

**الجواب:** د دې اختلاف د تصفیه بنیاد دې د دې جومات د محلې د دیندارو مشرانو په کثرت باندې کینبودلې شی. (۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الحصکفی: واذا جعل تحته سردا بالمصالحه ای المسجد جاز کمسجد القدس۔ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۴:۳۵۷ کتاب الوقف کراچی)

وقال العلامة الحصکفی: وکره تحریما الوطء فوقه والبول والتغوط لانه مسجد الی عنان السماء وکذا الی تحت الثری۔ (الدرالمختار ۱:۶۵۶ مطلب فی احکام المسجد کتاب الصلاة)

۲) قال العلامة ابن نجیم: تنازع اهل المحلة والبانی فی عمارته او نصب المؤذن او الامام فالاصح ان البانی اولیٰ به الا ان یرید القوم ما هو اصلح منه (الی قوله) وفی المجرد عن ابی حنیفة ان البانی اولیٰ بجمیع مصالح المسجد ونصب الامام والمؤذن اذا تأهل للامامة۔ (البحر الرائق ۵:۲۴۹ فصل فی احکام المسجد کتاب الوقف کوئٹه)

## د مسجد د پاره د لاؤډ سپیکر راوړلو والا د دخل داندازۍ وغیره حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی لاؤډ سپیکر اخستلو سره د جومات دپاره وقف کړو هغه سړې په کلی کې نشته خو د هغه سړی ورور د دې لاؤډ سپیکر مالك جوړ شوې دې او هغه په الماریٔ کې بند پروت دې ځکه چې هغه چابیانې خپل ځان سره ساتی نو آیا د جومات د دننه څیزونو داسې مالك پاتې کیدې شی؟ او آیا یو سړې د الله پاك په کور کې د خپل شان وشوکت د استعمالولو او پیدا کولو حقدار دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** صوفی بنارس... راولپنډی... ۲۰ رمضان المبارك ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که دې سړی دا لاؤډ سپیکر نه وی وقف کړې او یا ئې وقف کړې وی خو خپله ئې متولی جوړ شوې وی او یا ئې ورونه متولی کړې وی نو د هغه دا اقدام او منع کول قابل اعتراض نه دې کنه نو قابل اعتراض دې. بله دا چې بغیر د علم نه د دین په مسائلو کې دخل اندازی د زندیق کیدو سبب دې اعاذنا الله منه... **وهوالموفق**

## د مړی تابوت (صندوق) د مسجد په کار راوستل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږه یو فوجی حوالدار وفات شوې وو د هغوی د یونټ والو د هغه بدن په یو تابوت کې راالیږلې وو مړی لره د دفن کولو نه پس تابوت مالکانو جومات ته راولیږلو چې دا د جومات په کار کې استعمال کړئ او حال دا چې د مړی درې ماشومان بچی او یوه کونډه او یو ورور دې نو آیا د هغه وارثانو د اجازت نه بغیر مونږ دا تابوت د جومات په کار کې استعمالولې شو، هم دغه شان د جومات په کار کې د دې تابوت د استعمال څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** عبدالغفار صوبیدار میجر کلیان کهوته راولپنډی.. ۷ جمادی الاول ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که د تابوت ورکونکی په دې کار (جومات ته په ورکړه) باندې معترض نه وی نو شرعا دا کار جائز دې، ځکه چې دا تابوت د وارثانو ملکیت نه دې جوړ شوې. **وهوالموفق**

## د مسجد د تعمير نه په اضافي چنده باندې د کتابونو اخستلو او د مدرسې د کتب ذاتي په استعمال کې د راوستلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ۱: د جومات د تعمير چنده د تعمير نه زياتي شوه، آيا په هغې باندې ديني کتابونه اخستل جائز دي؟

۲: يو مدرسه قائم شوې وه بيا ختم کړې شوه د هغې کتابونه کوم چې د امانت په طور وو په ذاتي استعمال کې راوستل جائز دي يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** محمد اسماعيل حقاني سکنه الوچ پورن سوات ۲۵ جمادی الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** ۱: د چنده ورکونکو په اجازت سره جائز ده.

۲: په اذن او اجازت سره ګناه نه ده. **وهوالموفق**

## د مسجد د بلډنګ متعلق مختلف سوالات

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې:

۱: د جومات يو طرف کوم چې د غسل خانې سره نزدې دې هلته د جومات سامان ښختې کاڼي وغيره پراته وو د هغه غسل خانو سره يو ځای کولو بانډه يوه وړه شان باورچي خانه د تبليغي جماعت والو دپاره جوړه کړې شوې ده يو سړې وائي چې دا ځای د انګڼ سره لګی په دې وجه دا کار ناجائز دې، آيا دا قول صحيح دې؟

۲: د جومات د برنډې د ديوال سره يوه دروازه جوړه کړې شوې ده چې ددې ځای نه جومات ته داخليدل نزدې وي، د هغې د وجې نه دوه درې پاوړئ او د پيزار ويستلو په ځای کې هم په برنډهٔ کې جوړ کړې شوې دي چېرته چې به اول مونځ ادا کيدلو نو آيا دا دروازه به په خپل ځای باندې وي او که دا بنده کړې شي او حال دا چې پخوانۍ دروازه بل طرف ته ده؟

۳: د جوماتونه لاندې غسل خانې وغیره جوړلو څنګه دی؟

المستفتي: عبدالرقیب مری

**الجواب:** ۱: که د واقف اراده نا معلوم وی نو د کمیټۍ په اجازت سره دا تصرف جائز دې. لان تنصیص الواقف کتنصیص الشارع.(۱)

۲: دروازه جوړول جائز دی خو په جومات کې د پیزار ځای جوړول بې ادبی ده، کما هو المعروف فی هذه القرون.

۳: د جومات د بنیاد کیښودلو په وخت دا امور جائز دی او وروستو (د جومات جوړیدو نه پس) ناجائز دی په دې شرط چې د جومات په احاطه کې داخل وی او د جومات نه بهر لاندې پورته هر دواړه قسم جائز دی. قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ۳:۵۱۳ وبهذا علم ایضاً حرمة احداث الخلوات فی المساجد کالتی فی رواق المسجد الاموی ولا سیما ما یترتب علی ذلك من تقذیر المسجد بسبب الطبخ والغسل ونحوه(۲). وهو الموفق

## د مسجد د پاره کړې شوې جبری چنده واپس کول پکار دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ خواته یو جومات جوړیږی، د جومات خلقو پولیټیکل ته د چنده ورکولو دپاره درخواست وزکړو، پولیټیکل ایکسین ته ولیکل چې درې زره روپۍ د چندې دپاره راکړۍ، ایکسین د سټاف نه دوه زره روپۍ چنده وکړه، اوس په سټاف کې بعض کسان داسې دی چې وائی چې مونږ چنده د ایکسین د ویرې نه

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: وما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص وهو حکم لا دلیل علیه سواء کان نصه فی الوقف نصا او ظاهراً، وهذا موافق لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه کما صرح به فی شرح المجمع للمصنف.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۹۷ ماخالف شرط الواقف فهو مخالف للنص)

۲) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد)

ورکړي ده که دا خوف نه وي نو مونږ به دومره پیسې نه ورکولې، آیا دا چنده په جومات کې ورکول جائز دي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولانا عبدالحنان حقانی میران شاه شمالی وزیرستان ... ۲۵ مارچ ۱۹۸۵ء**

**الجواب:** کومه چنده چې د زړه په خوشحالۍ سره نه وي ورکړې شوې نو دا چنده ورکونکي ته واپس کول ضروري دي. پولیټیکل یا ایکسین ته ورکول د دې مرض دوائي نه ده. **والاصل فیه حدیث لایحل مال امرء مسلم الا عن طیب قلب اوکما قال (۱) وهوالموفق**

## کوم مسجد چې زیات محتاج وي په هغې کې رقم خرچ کول مقدم دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید او بکر وغیره په یو کلي کې وسیدل بکر د زید د خاندان نه یوه ښځه وتختوله، په دې وجه زید د د کلي نه لرې بیل خپل جومات تعمیر کړو، د دې جومات په تعمیر کې بل چا هم اعانت نه دې کړې، قدیم جومات کوم چې د سلو کالو نه قائم دې او باقاعده پکې امام او مؤذن او خادم موجود دی، اوس پخولې شی، رشید او عمرو وغیره کوم چې د آبادۍ د زیاتیدلو د وجې نه نوی جومات ته نژدې آباد شوې دی د هغوی متعلق شرعی حکم څه دې چې دوی به په سابقه جومات کې خرچه کوی کوم چې د هغوی د پلار نیکه جوړ کړې شوې دې او اوس پخولې شي او که په نوی جومات کې کوم چې زید تعمیر کړې وو، که زوړ جومات پرینبودلو سره په نوی جومات کې خرچه کوی نو آیا دا د اول جومات حق ضائع کول نه دي؟ او آیا هغوی صرف په دې نوی جومات کې په خرچ کولو باندې د سزا او جزا مستحق کیدې شي یا نه. **بینواتوجروا**

**المستفتی: غلام مصطفی توردهیر صوابی ... ۸ اپریل ۱۹۶۹ء**

---

(۱) (مشکواة المصابیح ۲۵۵:۱ باب الغصب)

**الجواب:** د جومات تعمیر کول چونکې د خیر کار دي لهذا په یو کې خرچ کول ناجائز نه دی، بیشکه کوم چې زیات محتاج وی یا چېرته چې مونځ کوی د هغې معاونت مقدم دې. (۱) وهوالموفق

## د مسجد په وقف شوې ځمکه مکې د مسجد کميټۍ د تصرف حيثيت

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ایا د جومات کیمټی شرعی حیثیت سره د جومات دپاره وقف شوې ځمکه خرڅولې شی یا نه؟ یا ئې په اجاره باندې ورکولې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مسجد کمیټی تور ډهیر صوابۍ..... ۱۱ جمادی الثانی ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که د دې قوف متولین (د واقف د طرف نه) په خیانت سره متهم وی (۲) نو د دې متولین د معزول کیدو نه پس (د حکومت په وساطت وغیرها) د محلې مشران په دې موقوف ځمکه کې (سوا د خرڅ نه) (۳) ټول تصرفات کولې شی (۴) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحلبی: وفی المحیط سئل ابوالقاسم عمن اشتری الدهن او الحصیر للمسجد ایهما افضل قال هما سواء قال ابوالليث ان كان المسجد محتاجا الی احدهما فهو افضل وان کان سواء فی الحاجة کان سواء فی الثواب.
(غنية المستملی المعروف بالكبیری ۵۶۷ باب احکام المسجد)

۲) وفی العالمگیریة: ولو ان الواقف شرط الولاية لنفسه وکان الواقف غیر مامون علی الوقف فللقاضی ان ینزعها من یده کذا فی الهداية. (فتاویٰ عالمگیریة ۳:۴۰۹ کتاب الوقف)

۳) وفی الهندية: وعندهما حبس العین علی حکم ملک الله تعالیٰ علی وجه تعود منفعته الی العباد فیلزم ولا یباع ولا یوهب ولا یورث کذا فی الهداية. (فتاویٰ عالمگیریة ۲:۳۵۰ اول کتاب الوقف)

۴) قال العلامة ابن نجیم المصری: ارادوا نقض المسجد وبناؤه أحکم من الاول ان لم یکن البانی من اهل المحلة لیس لهم ذلک وان کان من اهل المحلة لهم ذلک.
(البحر الرائق ۵:۲۵۱ فصل فی احکام المسجد)

## په مسجد کې د لارې وغیره جوړلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د محلې خلقو د قدیم جومات په هال کې دننه د استنجاء او اودس ځایونه راغورځولو سره نوې تعمیر وکړو، او پورته ئې دوه ګیلرئ او د خطیب صاحب کور هم جوړ کړو، د جومات په شمال مغربی ګټ کې پورته په یو بل کور کې د خطیب صاحب ځوی بیل وسیږی، د خطیب صاحب دپاره اول نمبر پوړئ جوړه کړې شوې ده او د خطیب د ځوئی کور ته د تلو دپاره دویم نمبر پاوړئ موجود ده، د خطیب وینا ده چې د ګیلری نمبر ۱ نه یو یو هوائی لاره کیدل پکار دی چې په هغې باندې تیریدلو سره مونږ د یو بل کور ته تلې راتلې شو، او د مونږ کونکو خیال دې چې د جومات چت دې د ماشومانو او زنانو چې په هغوی کې حائضې ښځې هم کیدې شی د تیریدلو لاره جوړه نه کړې شی، او حال دا چې په متبادل لاره یعنی اول نمبر پاوړئ نه تیریدلو سره دویم نمبر پاوړئ باندې د ځوئی کور ته تلې راتلې شی، د دې نه علاوه د جومات د اوبو ټینکئ پورته جوړول ضروری دی، اهل محله ئې د خطیب صاحب د کور په یو ګټ باندې جوړول غواړی چې د ضرورت په وخت پیزار په خپو کولو سره کار کول آسان وی، خو د خطیب صاحب وینا ده چې ټینکئ دې په ګیلرئ پاوړئ نمبر ۱ باندې جوړه کړې شی چې د مرمت په وخت مونږ ته د پردې کولو ضرورت نه راځی، او حال دا چې په ګیلرئ باندې ټینکئ جوړولو سره به د جومات دپاره رڼا او هوا هم متاثر کیږی، په دې صورت کې به شرعی حکم څه وی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** محمد رمضان علوی گلشن آباد... راولپنډی... ۲۹ شوال ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** د دې ځمکې چې کومه حصه د مانځه دپاره موقوف ده هغه د فرش نه تر عرش پورې ترقیامته پورې جومات دې، **وهو قول الطرفین وبه یفتی كما في شرح التنوير على هامش ردالمختار ۳/۵۱۳**(۱)

---

(۱) قال العلامة الحصكفي: ولو خرب ماحوله واستغنى عنه يبقى مسجدا عند الامام والثاني ابداً الى قيام الساعة وبه يفتي حاوي القدسي.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۳:۴۰۶ مطلب فيما لو خرب المسجد او غيره)

په نوی تعمیر کې به دا د جومات د حکم نه خارج کول د شریعت خلاف وی، په دې کې به لاړه جوړول او د امام وغیره دپاره کور جوړول جائز نه دی. کما فی الدرالمختار ۵۱۲/۳. فلیراجع(۱) پس د دې قواعدو په بناء د خطیب صاحب رائې صحیح نه ده په دې کې ډیر مفاسد دی. منها اتخاذ المسجد طریقا ومنها مرور الجنب والحائض.(۲) وهوالموفق

## مسجد سره نزدې د میلمنو دپاره ځای جوړول او په هغې باندې د مسجد د فنډ نه د صرف کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د جومات په حدود کې دننه د مونځ والاځای نه لږ لرې د کیناستلو دپاره یو خالی ځای پروت وو چې په هغې کې به مونځ کونکو ډیر خله په فارغ وختونو کې د معمولی چت نه لاندې د دمه کیدو دپاره کیناستلو، د ذکر شوی ځای د مفید جوړولو او بالخصوص د میلمنو د ځای د جومات صورت ورکولو په غرض سره مونږ چنده وکړه، هم دغه شان مو د جومات د فنډ نه هم کافی رقم خرچ کړو، او حال دا چې بعض خلق وائی چې د جومات د فنډ رقم په دې ځای کې خرچ کول جائز نه دی، اوس سوال دا دې چې د دې رقم څه حکم دې؟ بله دا چې په دغه ذکر شوې ځای باندې د میلمنو دپاره د ځای جوړولو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** محمد شعیب تهائی لینډ... ۷ جمادی الثانی ۱۴۰۱هـ

---

۱) قال العلامة الحصکفی: لو بنی فوقه بیتا للامام لا یضر لانه من المصالح اما لو تمت المسجدیة ثم اراد البناء منع ولو قال عنیت ذلک لم یصدق تاتر خانیة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۴۰۶ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

۲) قال العلامة الحلبی: وروی ابن ماجه انه علیه السلام: قال: خصال لا تنبغی فی المسجد لا یتخذ طریقا ولا یشهر فیه سلاح الخ.
(کبیری شرح المنیة ۵۶۳ فصل فی احکام المسجد)

**الجواب:** که دا خالي ځای واقف یا د محلې مشرانو د مانځه دپاره نه وی خاص کړي نو په دې ځای کې د میلمنو دپاره ځای جوړول ممنوع نه دی، دا د میلمنو ځای هم د اودس او غسل د ځایونو په شان د جومات د متعلقه امورو نه شمار دې، فلیس فیه الخلاف من غرض الواقف.(١) خو په دې تعیمر باندې د جومات چنده خرج کول د چنده ورکونکو یا د هغوی د معتمد علیه سړي د اذن او اجازت نه بغیر ناجائز ده، لعدم خروج هذا المال عن ملك المعطین،وهوالموفق

## د مسجد په انګڼ کې د زړو قبرونو د لرې کولو او په مسجد کې د شاملولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو جومات په انګڼ کې تقریبا د سلو کالو زاړه یو یا دوه قبرونه دی. اوس د جومات د نوی تعمیر د وجې نه د هغه قبرونو طرف ته برنډه راروانه ده آیا د دې دواړو قبرونو ختمول او په دې باندې مونځ کول صحیح دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: ضیاء الدین وزیرستانی متعلم حقانیه... ٥ فروری ١٩٨٧ء

**الجواب:** ترڅو پورې چې د هغه قبرونو هیئت کذائی باقی وی نو د فتنې د وجې نه د هغې ختمول او هموار کول غیر مشروع دی. (٢) وهوالموفق

## په مسجد کې د اذان کولو او د بجلئ پکی لګولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جومات کې

---

١) قال العلامة الحصکفی : لوبنی فوقه بیتا للامام لا یضر لانه من المصالح اما لو تمت المسجدیة ثم اراد البناء منع ولو قال عنیت ذلک لم یصدق تاتر خانیة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٣:٤٠٦ مطلب فیما لو خرب المسجد الخ)

٢) وفی الهندیة : لو بلی المیت وصار ترابا جاز دفن غیره فی قبره والبناء علیه.
(فتاوی عالمگیریة ١:١٦٧ الباب الحادی والعشرون الفصل السادس)

دننه اذان ورکول په لاؤډ سپیکر کې یا بغیر د لاؤډ سپیکر نه او د بجلۍ د پکې نه هوا اخستل او د کهړۍ نصب کولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اصل خان کرک... ٥ جولائی ۱۹۷۹ء

**الجواب:** په جومات کې سوا د خطبې د آذان نه بل اذان ورکول د استحباب خلاف دی، **هندیة** ۵۷/۱ (۱) په مساجد کې پکی لګول جائز دی لحدیث تعلیق القنوان فیها (۲) وفیه دلالة علی مشروعیة وضع الغلال وتعلیق المرواح والساعات کما لایخفی. وهوالموفق

## د مسجد د فنډ نه مناسب معاوضه اخستلو سره او په قرض کې د مُجری کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید چنده کولو سره په اتیا زره روپۍ باندې جومات جوړ کړو، او بغیر د تنخواه نه امامت هم کوی خو د مجبورۍ د وجې نه ئې د جومات د چندې نه درې زره روپۍ په خپل ذاتی کار کې لګولې دی آیا اوس دا سړې په دې باندې امامت کولې شی په

---

(۱) وفی الهندیة: ینبغی ان یؤذن علی المأذنة او خارج المسجد ولا یؤذن فی المسجد، والسنة ان یؤذن فی موضع عال یکون اسمع لجیرانه ویرفع صوته ولا یجهد نفسه کذا فی البحر الرائق.

(فتاویٰ عالمگیریة ۵۵:۱ الفصل الثانی فی کلمات الاذان والاقامة وکیفیتها)

(۲) عن البراء بن عازب فی قوله سبحانه ومما اخرجنا لکم من الارض ولا تیمموا الخبیث منه تنفقون قال نزلت فی الانصار کانت الانصار تخرج اذا کان جداد النخل من حیطانها اقناء البسر فیعلقونه علی حبل بین اسطوانتین فی مسجد رسول الله ﷺ فیاکل منه فقراء المهاجرین الخ.

(سنن ابن ماجه ۱۳۱:۱ باب النهی ان یخرج فی الصدقة شرماله)

(وهکذا فی البخاری باب القسمة وتعلیق القنو فی المسجد رقم حدیث ۴۲، ۱۲۳:۱)

دې طريقه چې کې په خپل زره کې د يوې مياشتې دپاره دوه سوه روپۍ معاوضه مقرر کړي او د جومات خدمت يعنی صفائی کوی، چې کله قرضه پوره شي بيا مفت امامت او صفائی وغيره کوی، آيا ددې صورت څه جواز شته؟ بينوا توجروا

المستفتی: مظهر الدين متعلم حقانيه...... ۲۲ صفر ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د توليت او امامت مناسب معاوضه اخستلو کې هيڅ باك نشته او دا معاوضه په فنډ کې قرض سره مجرى کول امر غير مشروع نه دې. **ونظيره** اخذ السلطان من بيت المال على وجه المعاوضة او المقارضة. (۱) **وهو الموفق**

## په موقوف مسجد کې حصه داری وغيره نه شي کيدې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د محلې په جومات کې نه امام شته او نه پکې مونځ کونکی وی، او زه د خپلې محلې نه لرې په خپله حجره کې وسيږم چېرته چې ارت هم دې او په کار کسب کې هلته مشغول يم، او د مانځه دپاره دلته حجرې ته نژدې جومات ته ورځم چېرته چې په جماعت کې کافی خلق وی او د قرآن کريم درس هم وی، او د توفيق موافق چنده هم په دې جومات کې ورکوم، دې ځل چې چنده کيده نو نو ما ديرش روپۍ چنده فی سبيل الله دې جومات ته ورکړه، خو هغه ذکر شوې چنده ماته واپس کړې شوه چې بيا به ته په دې جومات کې حصه غواړې، بله دا چې ته د

(۱) وفی الهندية: فان لم يكن فی بعضها شیئ فللامام ان يستقرض عليه مما فيه مال فان استقرض من بيت مال الصدقة على بيت مال الخراج فاذا اخذ الخراج يقضی المستقرض من الخراج الا ان يكون المقاتلة فقراء... ولا يحل للامام واعوانه من هذه الاموال الاما يكفيهم وعائلتهم.
(فتاوی عالمگيرية ۱:۱۹۱ فصل ما يوضع فی بيت المال اربعة انواع)

دې جومات نه خارج ئې او خپل جومات آباد کړه، نو آیا په جومات کې حصه داری کیدې شي؟ آیا بل سړې ما په خپله حصه کې شاملولې شي؟ که یو سړې د دنیاوی دشمنۍ د وجې نه چنده واپس کړی چې زه متولی یم او ماته د واپس کولو اختیار دې نو آیا د جومات متولی چالره فی سبیل الله چنده ورکولو نه منع کولې شي؟ او د محلې په خلقو کې اکثریت والا قوم اقلیت والو ته د چندې ورکولو یا د نورو حقوق نه محروم کولو دهمکی ورکولو سره منع کولې شي؟ بینواتوجروا

المستفتی: گل مان شاه....... ۱۷ فروری ۱۹۷٤ء

**الجواب:** په جومات کې د موقوف کیدو د وجې نه حصه داری نه شی کیدې (۱) د محلې خلق هم پکې حصه دار نه دی خو حقدار دی، او د محلې په خلقو دا هم ضروری نه ده چې د چا چنده ضرور وصول کړی هغوی مختار دی (۲) خو چنده ورکونکی ته به ثواب د ارادې مطابق ملاویږی، او د اقلیت دپاره د اکثریت منل ضروری نه دی. وهوالموفق

## د گرمۍ او یخنۍ په مسجدونو کې یو مسجد لره په مخالف موسم کې د بندولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په محله کې دوه مساجد دی، یو د یخنۍ د موسم دپاره او دویم د گرمۍ د موسم دپاره،

(۱) قال العلامة الحصكفي: فلا يقسم الوقف بين مستحقيه اجماعاً.
(الدرالمختار ۳:۴۰۴ مطلب قاسم وجمع حصة الوقف)

(۲) قال العلامة ابن عابدين: وفى ط عن الهندية مسجد مبنى اراد رجل ان ينقضه ويبنيه احكم ليس له ذلك لانه لا ولاية له مضمرات الا ان يخاف ان ينهدم ان لم يهدم تتارخانية وتأويله ان لم يكن البانى من اهل تلك المحلة واما اهلها فلهم ان يهدموه ويجددوا بناءه الخ.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۰۵ مطلب فى احكام المسجد)

د گرمۍ په موسم کښ د یخنۍ والا جومات بند پروت وی او د یخنۍ په موسم کښ د گرمۍ والا بند پروت وی، نو آیا د جومات دا بندول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیر محمد کرم ایجنسی..... ۲٤ شعبان ۱٤۰۹ھ

**الجواب:** دا جائز ده لکه چې په گرمۍ یخنۍ کښ د نقل و حرکت په وخت دا بندول جائز دی (۱) **وهوالموفق**

...

(۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله الا لخوف على متاعه) هذا اولى من التقييد بزماننا لان المدار على خوف الضرر فان ثبت فى زماننا فى جميع الاوقات ثبت كذلك... والتدبير فى الغلق لاهل المحلة الخ.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ١:٤٨٥ مطلب فى احكام المسجد)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوٰی فریدیه

(شپږم جلد)

# باب ما یتعلق بالمدارس

..........

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

# باب ما يتعلق بالمدارس

قال رسول الله ﷺ:

ان الناس لكم تبع وان رجالا ياتونكم من اقطار الارض يتفقهون فى الدين فاذا اتوكم فاستوصوا بهم خيراً.

(رواه الترمذي)

........

# باب مایتعلق بالمدارس

## د وقف دینی مدرسې نه سکول جوړول ناجائز او ګناه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یو علاقه کې بعض حضراتو د دینی او اسلامی مدرسې دپاره ځمکه وقف کړې وه او تر اوسه پورې اسلامی تعلیم جاری ساتل غواړی او س بعض خلق دا په حکومت سکول کې بدلول غواړی آیا دا تصرف د شریعت په لحاظ صحیح دې؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: محمد یعقوب سیر باړیان بازار ... ۲۵ جمادی الثانی ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** د باقاعده وقف نه پس موقوفه ځمکه د متعین شوی وقف نه علاوه په بل جهت کې صرف کول ناجائز او ګناه ده،

کما فی الاشباه والنظائر ۱۸۴ شرط الواقف یجب اتباعه لقولهم شرط الواقف کنص الشارع ای فی وجوب العمل به[1] وهکذا فی ردالمحتار ۳:۶۲۷[2].

وهوالموفق

## د دینی مدرسې ځمکه د خپل نابالغ ماشوم په نوم د رجسټری کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د یوې دینی مدرسې د جوړولو دپاره چنده جمع کوی خو ځمکه د خپل نابالغ ماشوم څونی

---

۱) (الاشباه والنظائر ۱۹۴ طبع قدیمی کتب خانه)

۲) قال العلامة ابن عابدین: وما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص وهو حکم لا دلیل علیه سواء کان نصه فی الوقف نصا او ظاهراً وهذا موافق لقول مشائخنا کغیرهم شرط الواقف کنص الشارع فیجب اتباعه کما صرح به فی شرح المجمع للمصنف.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۴۹۷ مطلب ما خالف شرط الواقف فهو مخالف للنص)

په نوم باندې رجسټر کوی د هغه دا فعل د شریعت په رڼا کې جائز دې؟

بینواتوجروا

المستفتی: چوهدری عبدالرحمٰن چینوټ جهنگ

**الجواب:** که دا قانونی رجسټری د خطرې د وجې نه شوې وی نو په دې کې هیڅ باك نشته، په دې شرط چې په رجسټریٔ کې دا تصریح کړې شوې وی چې دا ځمکه د فلانیٔ اداري دپاره دې او په دې شرط چې د چنده ورکونکو د طرف نه اجازت موجود وی. (۱) **وهوالموفق**

## د مدارس د پاره د چندې غوښتلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مدارس او دارالعلوم دپاره د چندې غوښتلو څه حکم دې، آیا دا شرعا جائز دی؟

بینواتوجروا

المستفتی: شوکت اوکوړه خټك ... ۲۹ ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا چنده بذات خود نه خپله ممنوع ده او نه مطلوب. (۲) خو د عوارض د وجې نه کله مطلوب شی او کله ممنوع. (۳) **وهوالموفق**

---

۱ ) وفی الاشباه: البانی اولیٰ بنصب الامام والموذن، وولد البانی وعشیرته اولیٰ من غیرهم. (الاشباه والنظائر ۱۹۵ کتاب الوقف)

۲ ) قال العلامة ابن عابدین: فانه یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجدا من بیت المال او من مالهم ان لم یکن لهم بیت مال کذا فی فتح القدیر.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۳۹۳ مطلب قد یثبت الوقف بالضرورة)

۳ ) وفی الهندیة: ان کان الاصل الاباحة ینظر الی العارض فان غلب علی الظن وجود المحرم فالکراهة للتحریم الخ. (فتاوی عالمگیریة ۵:۳۰۸ کتاب الکراهیة)

## د مسجد یا مدرسې د پاره په چنده کولو کې د نعت خوانۍ

## او د ماشومانو د نوم اخستلو وغیره حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مساجد او دارالعلوم دپاره کوم حضرات چنده جمع کوی هغه د لاندې لیکلې شوې وجوهاتو په وجه باندې ناجائز دی، یو دا چې هغوی په لاؤډ سپیکر باندې نعت خوانی کوی او واړهٔ واړهٔ ماشومان د توفیق مطابق یوه دوه روپۍ د خپلو کورونو نه راوړی او بیا هغه حضرات د دې مخصوص ماشوم نوم اخستلو د هغوی دپاره د خیر او برکت دعاګانې کوی، اوس سوال دا دې چې په دې طریقې سره چنده کول ناجائز کیدل پکار دی ځکه چې په جومات کې په لاؤډ سپیکر باندې نعت خوانی نه دی کیدل پکار بله دا چې د مخصوص ماشوم په نوم اخستلو سره ریاکاری کیږی او په ریاکارۍ سره صدقه کول نه قبلیږی، بله دا چې د ماشومانو د طرف نه نفلی صدقه جائز نه ده ځکه چې په هغوی کې د ملکیت اهلیت نه وی وغیره، آیا د دې وجوهاتو په موجودګۍ کې په دې طریقه باندې چنده ورکول جائز دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: قاضی حبیب الاسلام ... پیر سباق نوښار ... ١٤ جون ١٩٩٠ء

**الجواب:** چې کله دا جهر د اودهٔ یا مصلی دپاره تکلیف ورکونکې نه وی نو جائز ده (١) اودا ریاکاری نه ده بلکې دا د دین د اعانت دپاره غافل مسلمانان

---

(١) قال العلامة ابن عابدين : وفى حاشية الحموى عن الامام الشعرانى اجمع العلماء سلفا وخلفاً على استحباب ذكر الجماعة فى المساجد وغيرها الا ان يشوش جهرهم على نائم او مصل او قارئ الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ١:٤٨٨ مطلب فى رفع الصوت بالذكر)

د غفلت نه بیدارول دی په اهل اسلام باندې ضروری ده چې په خپله اعانت کوی (۱) هم دغه شان عاقل غیربالغ لره وکیل جوړول جائزدی (۲) وهوالموفق

## د مدرسې د پاره د زکاة رقم جمع کولو سره بغیر د تمیز نه مجموعی طور په هغې کې د حیلې کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یوې دینی مدرسې مهتمم کوم چې صاحب نصاب او غنی دې په بازارونو وغیره کې د خلقو نه د زکاة مال جمع کوی بیا په مدرسه کې په یو مسکین مدرس یا طالب العلم باندې حیله کوی چې په هغې کې د ډیرو خلقو زکاة بغیر د امتیاز نه یو مسکین ته په یو ځل یو ځای ورکوی نو آیا دا طریقه جائز ده؟ یا د هر چا زکاة بیلولو سره بیلې بیلې طریقې سره قبض کړې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد انور دوسلی مدرسه حیات العلوم شمالی وزیرستان ... ۲۷ اگست ۱۹۸٤ء

**الجواب:** په عرف باندې نظر ساتلو سره معلومیږی چې د چنده ورکونکو د طرف نه د اختلاط اجازت وی لهذا دا خطره ذکر شوې ساقط دې، **کما فی ردالمحتار ۲:۱۰۷ قبیل کتاب الصوم دفع رجلان لرجل دراهم یتصدق بها عن زکواتهما فخلطها ثم دفعها ضمن الا اذا جدد الاذن او اجاز المالکان او وجد دلالة الاذن بالخلط کما جرت العادة بالاذن الخ (۳)۔ وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن عابدین : فانه یجب ان یتخذ الامام للمسلمین مسجداً من بیت المال ومن مالهم ان لم یکن لهم بیت مال کذا فی فتح القدیر۔
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۳۹۳ کتاب الوقف)

۲) وفی الهندیة : فلا یصح التوکیل من المجنون والصبی الذی لا یعقل اصلا وکذا من الصبی العاقل بما لا یملکه بنفسه کالطلاق والعتاق والهبة والصدقة ونحوها من التصرفات الضارة المحضة ویصح بالتصرفات النافعة کقبول الهبة والصدقة من غیر اذن الولی واما التصرفات الدائرة بین الضرر والنفع کالبیع والاجارة فان کان مأذونا فی التجارة یصح منه التوکیل الخ۔ (فتاوی عالمگیریة ۳:٥٦۱ کتاب الوکالة الباب الاول)

۳) ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۸٦ قبیل کتاب الصوم)

## د مسجد ګټه په مدرسې باندې خرچ کول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په چنده سره یو جومات تعمیر کړې شو د دې نه پس څو دکانونه وغیره هم د جومات د ګټې دپاره آباد کړې شوې دی چې په هغې سره د جومات ضروریات مثلا د امام تنخواه د بجلئ بل وغیره د وضع کیدو نه پس په فاضل آمدن سره معلم دینیات ملحقه مدرسه جومات ته تنخواه هم ورکولې شی آیا دا شرعا جائز ده؟ آیا د تعمیر نه بچ شوې رقم معطی (چنده ورکونکو) حضراتو په اجازت سره د دې مدرسه دینیه په اخراجاتو کې صرف کول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: ملك رحمت دین شنکیاری مانسهره... ١٢ اکتوبر ١٩٧٥ء

**الجواب:** که دا جائیداد (کورونه او دکانونه وغیره) باقاعده وقف علی الجومات وی عوامی وقف نه وی نو د فاضل ګټې به د دې مدرسې په مدرسین باندې خرچ کول جائز نه وی، خو د جومات د تعمیر نه بچ شوې چنده به معطین یا د هغوی د معتمد علیه په اجازت سره په دې کار کې خرچ کول جائز وی، بل په دې رقم سره د بې ضائع صرف شوی رقم وضع هم جائز ده.اما الاول فلما فی ردالمحتار ٣: ٣٧١ وظاهره انه لا یجوز صرف وقف مسجد خرب الی حوض وعکسه، وفی شرح الملتقی یصرف وقفها لاقرب مجانس لها(١) یقول العبد الضعیف فغیر الخرب اولی به واما الثانی فلانه لم یخرج عن ملك المعطین فیکون الاذن الیهم فافهم. وهو الموفق

## د فلمی هیرو وغیره نه د مسجد یا دارالعلوم وغیره د پاره د چندې اخستلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو جومات یا دارالعلوم دپاره فلمی هیرو مثلا بدر منیر وغیره نه چنده اخستلو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: امیر رحمن... ګیراری سورې سوات... ٢٩ رمضان المبارك ١٤١٠هـ

(١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣: ٤٠٧ قبیل مطلب فی نقل انقاض المسجد ونحوه)

**الجواب:** واضحه دې وی چې د کفارو نه هم د مقدس مقاماتو دپاره چنده اخستل جائز دی چې کله د اسلام د توهین خطره نه وی. (١) **وهوالموفق**

**د طلباء علم د پاره به د مدرسې طعام د مدرسې د قانون یا په عرف بناء وی**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو طالب العلم په یومدرسه کې د داخلې فارم اخستلوسره داخله واخلی وروستو چې کله سبقونه شروع شی نو د سبقونو نه د عدم اطمینان په وجه باندې هفته دوه هفتې بلې مدرسې ته تلم او په خپله مدرسه کې هم د یو کتاب نه علاوه په نورو کتابونو کې شاملیدم خو د خپلې مدرسې شرط دا دې چې زمونږ طالب العلم په بله مدرسه کې تعلیم نه شی حاصلولې، چې کله د څو ورځې تلو راتلو نه پس ئې سبقونه خوښ شو نو په بله مدرسه کې ئې داخله واخستله، آیا د دې طالب العلم دپاره به د دې هفتې دوه هفتو دوډۍ اخستل حلال وی یا حرام؟ که حرام وی نو دې طالب العلم لره د دې د تدارك دپاره څه کول پکار دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** امتیاز احمد مدرسه عربیه اشرف العلوم گوجرانواله... ٢٦ اپریل ١٩٦٩ء

**الجواب:** د زیات احتیاط دپاره دې د چنده ورکونکو یا مهتمم نه تپوس وکړې شی چې په دې قسم معامله کې د هغوی قانون څه دې؟ یعنی چې کله د داخله ورکولو نه بغیر په بله مدرسه کې سماع وکړې شی نو د داسې طالب العلم متعلق قانون څه دې چې هغه د خوراك مستحق دې یا نه دې؟ او که څه قانون معلوم نه وی نو د چنده ورکونکو (**بناءعلی العرف**) په نزد دا هیڅ جرم نه دې لهذا دا خوراك به حلال وی. (٢) **وهوالموفق**

---

(١) قال العلامة ابن عابدين: يعني قد يكون مباحاً كما عبر في البحر والمراد انه ليس موضوعاً للتعبدية كالصلاة والحج بحيث لا يصح من الكافر اصلا بل التقرب به موقوف على نية القربة فهو بدونها مباح حتى يصح من الكافر- (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٣:٣٩٢ كتاب الوقف)

(٢) قال الشيخ محمد خالد الآتاسي: المعروف عرفا... [بقيه حاشيه برصفحه آئنده

## په مسجد کښې د مدرسې جوړولو او د چا جبرا د مهتمم جوړیدلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې ۱: مدرسه صوت الاسلام چې د هغې د رجستریشن په کاغذاتو باندې کافی خرچ شوې دې او فنډ هم موجود دې اوس د مدرسې په جومات کښې شروع کیدونکې دې، خو د جومات د امام اصرار دې چې په دې شرط باندې به دلته مدرسه شروع کیږی چې اول دا کاغذات او د مدرسې نوم منسوخ کړی، بلکه دا چې اهتمام به زما په نوم وی، د امام په دې شرط باندې خرچه هم ضائع کیږی او فنډ ورته هم نه ملاویږی آیا دا شرط صحیح دې؟ مونږ د رفع د نزاع دپاره د قرآن کریم د حفظ نه کیدو تحریر ولیکلو ۲: آیا یو سړې جبرا مهتمم کیدې شی چې کله د مدرسې په بانی کښې څه شرعی عذر مانع نه وی؟

۳: آیا د محلې یو سړې د جومات د امام د اجازت نه بغیر د اشاعت اسلام دپاره مدرسه قائم کولې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولاناتاج محمود صاحب شمس آباد اټک

**الجواب:** ۱: په مدرسه کښې د قرآن درس جائز دې.(۱) مګر جومات لره جوماتیت نه ویستلو سره په مدرسه کښې بدلول جائز نه دی. (۲) خو صرف په نوم کینښودلو کښې هیڅ شرعی نقصان نشته.

---

بقیه ازحاشیه گذشته ] کالمشروط شرطاً ای المعروف المعتاد بین الناس وان لم یذکر صریحاً فهو بمنزلة الصریح لدلالة العرف علیه... والحاصل ان المعروف عرفا کالمشروط ذکراً عند عدم التصریح بخلافه والا فالعبرة لما صرح به لا للعرف.
(شرح المجلة للآتاسی ۱۰۰:۱ ماده:۴۳)

۱ ) قال العلامة ابن عابدین: ومن هنا یعلم جهل بعض مدرسی زماننا من منعهم من یدرس فی مسجد تقرر فی تدریسه وتمامه فی البحر.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴۸۵:۱ بعید مطلب فی احکام المسجد)

۲ ) قال العلامة الحصکفی: ولو خرب ما حوله واستغنی عنه یبقی مسجدا عند الامام والثانی ابداً الی قیام الساعة وبه یفتی حاوی القدسی.
(الدرالمختار ۴۰۶:۳ مطلب فیما لو خرب المسجد او غیره)

۲ په تغلب سره غیر بادشاه، بادشاه جوړیدې شی. (۱) اهتمام خو ادنی خیز دې ۳. د وقف تحویل ممنوع دې په غیر د اوقات الصلاة کې درس ورکول مشروع دی. وهوالموفق

## د مسجد او مدرسې په موجودګئ د بل مسجد او مدرسې قیام نه ممنوع دې او نه مطلوب

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د کهپر او بنهر عیدګاه ایویکټویو پلاټ باندې واقع دې په ابتداء کې دا عیدګاه په یو وړوکی پلاټ باندې واقع وو وروستو د هغې احاطه وسیع کړې شوه، او ایویکټیو پلاټ نمبر ۴۳ تا ۵۲ او ۲۵ تا ۲۸ هم د هغې په احاطه کې شمار کیدل شروع شی، په دې پلاټونو کې پلاټ ۴۴ تا ۵۱ او ۲۲ تا ۲۸ پوره هم د دې په احاطې کې شمیرلې کیږی، په دې پلاټونو کې ۴۴ تا ۵۱ او۲۲ تا ۲۸ د ادا کولو دپاره د محکمې د طرف نه په ۱۹۷۴ء کې نوټس موصول شوې وو او د عیدګاه متولی د بنهرونو نه چنده او د ورکړې په صورت کې رقم وصولولو سره په ۱۹۷۵ء کې جمع کړې وو په متذکره پلاټونو کې د پلاټ ۴۴، ۵۲ او ۲۵ الاټمنټ او ادا کول هم لا باقی دی، اوس څو میاشتې مخکې پلاټ ۴۳ محکمه سیټلمنټ په خپل حکم ۱۲۸۵ تاریخ ۷ مارچ ۱۹۸۳ء د لاندې د جومات او مدرسې په نوم باندې الاټ کړې وو او د هغې قیمت یو اهل خیر جمع کړې وو چا چې دا پلاټ د جومات او مدرسې دپاره وقف کړې وو.

په ذکر شوی پلاټونو (څمکو) کې پلاټ ۵۲ او ۲۵ الاټمنټ آرډر لاجاری کړې شوې نه وو او دا پلاټ هم د عیدګاه په حدود کې شامل دې د دې عیدګاه په یوه حصه کې یو جومات او د هغې سره تړلې دینی مدرسه څو کاله مخکې

---

۱) قال العلامة الحصکفی: (قوله وتصح سلطنة متغلب) ای من تولی بالقهر والغلبة بلا مبایعه اهل الحل والعقد وان استوفی الشروط المارة۔

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:۴۰۵ باب الامامة)

قائم کړې شوې وه، کومه چې قائم او جاري ده اګر چې د څه خلقو په دې باندې اعتراض دې چې د دې جومات او مدرسې د قیام په سلسله کې باقاعده طور عیدګاه کمیټی یا د بل څه ادارې نه باقاعده منظوری نه وه حاصل کړې شوې چونکې متذکره جومات او مدرسه د عیدګاه دپاره حاصل کړې شوې پلاټ کې تعمیر کړې شوې وو.

پلاټ ۴۳ کوم چې څه خلقو د جومات او مدرسې دپاره حاصل کړې وو په هغې باندې د تعمیر د شروع کولو په غرض سره چار دیواری کول غواړی خو د بعض خلق په دې باندې اعتراض دې چې دا پلاټ د عیدګاه حصه پاتې شوې ده په دې وجه دې دا صرف عیدګاه اوګڼلې شی او ورسره دا چې چونکې یو جومات او مدرسه په عیدګاه کې د اول نه موجود ده په دې وجه دې بل جومات او مدرسه په هغې کې تعمیر نه کړې شی.

چه کله دا خبره د مقامی انتظامیه په نوټس کې راوستلې شوه نو مقامی حکامو یو هنګامی اجلاس منعقد کړو چې په هغې کې مقامی حکام، د عیدګاه متولی، د عیدګاه د کمیټۍ ممبران، مقامی کونسلر حضرات، د ښهر معززین او نور دلچسپی ساتونکی کسانو شرکت وکړو د اجلاس دوران شرکاء حضرات ښکاره د خپل خیالاتو اظهار وکړو چې زمونږ مخې ته چې کومه نکته زیر بحث راغله هغه دا وه چې آیا د موجود جومات او مدرسې په موجودګۍ کې کومه چې د عیدګاه په پلاټ باندې قائم ده د یو بل جومات او مدرسې د تعمیر کولو شرعی حکم څه دې؟ د بحث او مباحثې په نتیجه کې ټول شریکان حضرات په دې خبره باندې متفق شو چې دا یو مذهبی او دینی مسئله ده په دې وجه دې سلسله کې علماء حضرات او مفتیان کرام ته رجوع کول پکار دی، هغوی چې کومه رائې هم قائمه کړی هغه به قابل قبول وی؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** مختارکار... تحصیل دار کهپره ضلع سانګهر سنده... ٤ فروری ١٩٨٤ء

**الجواب:** یو جومات یا مدرسې ته نزدې جومات یا مدرسه جوړول نه ممنوع شرعی دې او نه مطلوب شرعی، د ضرورت او مصلحت لحاظ دې وساتلې شی. وهوالموفق

## د مسلمه قانون په رڼا کې د مدرس معزول کول او مدرس ته د ورکړې شوې کتاب مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: که د یوې دینی مدرسې مهتمم خپله دوه کاله پخوانی مدرس ته د سابقه معمول او دستور خلاف د شوال په شروع کې د تحریری حاضرئ رپورټ پیش کولو حکم ورکړی او مدرس د هغې تعمیل ونکړی خو د مخکې په شان مدرسې ته راځی او تدریس کوی تردې چې د نیمې ذی قعده د تیریدلو نه پس مهتمم په صراحت سره مدرس لره د مدرسې نه لرې کړی او د شوال او د نصف ذی قعده تنخواه مدرس ته نه ورکوی، او استدلال ئې دا دې چې د شوال د شروع نه د هغې تحریری حاضری رپورټ نه دې لهذا د معزول کولې شی آیا داسې مدرس لره لرې کول او تنخواه نه ورکول صحیح دی؟

۲: که یو مدرس هم د دې مدرسې دپاره د زکاة په صورت کې د چا نه څه کتاب وصول کړی خو معطی ته د مدرسې رسید ورنکړی او نه مهتمم خبر کړی بلکې کتاب ته جلد ولګوی او په خپل تصرف کې ئې راولې بیا چې کله د معزولئ مطالبه کوی چې په هغې باندې مدرس د مدرسې د کتاب په ځای معطی ته رجوع وکړی او دا لیکل ترې واخلی چې ذکر شوې کتاب ما مدرس ته ورکړې دې هغه مختار دې چې چېرته غواړی استعمالولې ئې شی پس د تحریر نه مدرس د دې کتاب تملیک کولو سره په یوه بله مدرسه کې وقف کړی، آیا د هغه دپاره دا وقف جائز دې او که پخوانئ مدرسې ته واپس کړې شی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: محمد یوسف سلطانپوره راولپنډی.. ۲۲ جولائی ۱۹۷٤ء**

**الجواب:** ۱: که د دې مهتمم په مطبوعه قوانین کې دا قانون هم وی چې د دې مخصوص عادت د وجې نه مدرس معزول کړې شی، او د دې تقررئ په وخت مدرس په دې باندې دستخط هم کړې وی نو دا موجود عزل صحیح دې کنه نو ظلم دې، او چونکې مدرس باقاعده تدریس کړې دې لهذا د هغه نه تنخواه وضع کول حرام دی. **والکل بناء علی الاصل المشهور ای ان العادة محکمة کما فی الاشباه والنظائر.** (۱)

---

۱) (الاشباه والنظائر لابن نجیم ۹۳ القاعدة السادسة)

۲: که دا مدرس د واقف وکیل وی یا د مهتمم سفیر وی او دا کتاب د مدرسې دپاره وقف کړې شوې وی نو په دې صورت کې د مزکی ذمه نه ده فارغ شوې او که مدرس ته تملیك کړې شوې وی چې هغه ئې په مدرسه کې داخل کړی نو په دې صورت کې دا مدرس د دې کتاب واحد مالك او مختار دې، لتمام الملك له. (۱) وهوالموفق

**د وقف مدرسې په چنده سره د یو بوډا مدرس یا کارکن دپاره پنشن مقرر کول**

**سوال:** په خدمت کې د جناب مفتی صاحب دار العلوم حقانیه اکوړه خټك!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! یو سړې کوم چې د دینی ادارې خدمت کوی چې د هغې د ګټې ذرائع زیات تر زکاة وصدقات خیرات او عشر او څه عطیات وغیره سره پوره کولې شی د مدرسې څه مستقل آمدن نشته، د میاشتې مقرره چنده انتهائی لږه ده بعض وخت مصارف پوره کیږی او بعض وخت کم هم شی قرض وغیره اخستلو سره هغه پوره کولې شی بیا چې کله آمدن وشی نو هغه ادا کولې شی، د صدقه ورکونکو نیت دا وی چې په طالبانو باندې خرج کړې شی او کوم خلق چې په دې کې نور خدمتونه کوی اوس که یو داسې سړې د ادارې خدمت کولو کولو سره بوډا شی او د بوډاتوب د وجې نه هغه د خدمت قابل پاتې نه شی نو آیا داسې سړې د دې ادارې نه د وظیفه اخستلو حق لری او حال دا چې نادار او غریب وی، آیا د مدرسې مهتمم یا ارکان عامله د دې اجازه لری چې د دې سړی دپاره پنشن (وظیفه) مقرر کړی یا په قدر د ګزارې وظیفه متعین کړی او حال دا چې د ادارې په قواعد او ضوابط کې د دې قسم څه تصریح موجود نه ده بله دا چې ستاسو د ادارې دې باره کې څه دستور دې؟ د وظیفې قانون او دستور هر چې مونږ ته معلوم دې په موجوده زمانه کې د بااختیار حکومتونو کار دې او دا هم واضح

۱) چونکه د زکاة په مال کښې تملیک شرط دې او دلته دا مدرس صرف وکیل، مزکی یا د مدرسې سفیر دې په دې وجه د مدرسې د طرف نه د باقاعده تملیک نه کیدو په وجه په صورت مسئوله کښې د زکاة ورکونکی ذمه نه ده فارغ شوې، او که دا مدرس زکاة لره خپله تملیک کړی نو بیا هغه ته اختیار دې چې په خپل استعمال کښې ئې راولی یا یو مدرسې یا یو سړی ته هبه یا صدقه کوی. وهوالموفق

کړئ چې د خلفاء راشدینو په وخت کې به هم داسې کیدل یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: دار الافتاء مدرسه نصرة العلوم گوجرانواله .... ۱۹ مئی ۱۹۷۵ء

**الجواب:** د چنده ورکونکی یا دهغوی معتمدعلیه کس یا د کمیټی په اجازت سره دا پنشن، وغیره امداد مقررکول جائزدی. لان الملاك هم المعطون دون القیم، نعم هوملك فیکون الاذن الیهم لا الیه الا منهم فافهم. وهوالموفق

## د مدرسې د فنډ نه یو مدرس ته قرض ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یو دینی مدرسه کې یو مدرس د مدرسې د فنډ نه په طور د قرض څه پیسې غواړی آیا د مدرسې د فنډ نه هغه ته قرض ورکول جائز دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: مولانا رحیم الله باچا......اضاخیل نوښهر ..... ۲۵ اگست ۱۹۸۴ء

**الجواب:** چنده ورکونکو یا د هغوی معتمد علیه (مهتمم) ته دا اختیار حاصل دې چې هغوی د دې فنډ نه قرضه ورکړی. (۱) وهوالموفق

## د مدرسې چنده په طور د قرض اخستل او ورکول یا په مضاربت باندې د ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مدرسې د مهتمم دپاره د چندې نه قرض اخستل یا ورکول یا په مضاربت باندې ورکول (د مدرسې دپاره) څه حکم لری؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: حافظ محمد حسن ... لاچی کوهاټ ... ۲۵ صفر المظفر ۱۴۰۴ھ

**الجواب:** چونکې چنده مخکې د خرچ نه د چنده ورکونکو د ملکیت نه نۀ خارج کیږی، لکون القیم ملکا وامینا لا ملکا ولا متولی الوقف، لهذا په دې چنده کې د اذن صریحی یا عرفی نه بغیر دا تصرفات جائزنه دی. والظاهر من عرف بلادنا الاذن والتوکیل (۲) وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: ان للمتولی اقراض مال المسجد بامر القاضی الخ- (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳۷۹:۴ مطلب للقاضی اقراض مال الیتیم ونحوه)

(۲) یدل علیه ما فی الهندیة: القیم اذا اشتریٰ من ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## بغیر د طلب نه د غیر مسلم نه د مدارس دپاره د چندې غوښتلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دینی مدارس دپاره د غیر مسلم نه امداد او چنده وغیره طلب کول څنګه دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانارحیم الله باچا.... اضاخیل.... ۱۳ نومبر ۱۹۸۵

**الجواب:** که امداد او استمداد د اسلام د ذلت نه خالی وی نو مشروع دې که نو غیر مشروع دې، والدلیل علیه حدیث البخاری هبة امر بیعاً (۱) وهوالموفق

## د مدرسې د چندې نه د یو اهل خیر د پاره طعام یا د بیمار پرسن دپاره د تلو د خرچې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مدرسې د مفاد دپاره یو اهل خیر ته دعوت ورکولې شی بیا د مدرسې د فنډ نه د هغوی د خوارک بندوبست کولې شی، آیا دا جائز ده؟ هم دغه شان د مدرسې سرپرست چا چې د مدرسې دپاره ډیره قربانی کړې وی او کله هم چې د هغوی نه تعاون طلب کړې شوې دې بې دریغه مالی او قولی تعاون فرمائیلې دې، اتفاقی طور هغه بیماریدلو سره په هسپتال کې داخلیږی د هغوی د عیادت دپاره د منتظمه کیمیټۍ مدرس سره د مهتمم نه د مدرسې د فنډ نه خرچ کولو سره د

---

بقیه ازحاشیه گذشته ] غلة المسجد حانوتا او داراً ان یستغل ویباع عند الحاجة جاز ان کان له ولایة الشراء واذا جاز له ان یبیعه کذا فی السراجیة۔

(فتاویٰ عالمگیریة ۲:۴۶۲ الفصل الثانی فی الوقف علی المسجد وتصرف القیم)

(۱) عن عبد الرحمن بن ابی بکر رضی الله عنه قال کنا مع النبی ﷺ ثلثین ومأة فقال النبی ﷺ هل مع احد منکم طعام فاذا مع رجل صاع من طعام او نحوه فعجن ثم جاء رجل مشرک مشعان طویل بغنم یسوقها، فقال النبی ﷺ بیعاً ام عطیة او قال ام هبة، قال لا بل بیع فاشتریٰ منه شاة الخ۔

(صحیح البخاری ۱:۳۵۶ کتاب الهبة باب قبول الهدیة من المشرکین)

عبادت دپاره تلې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شبیر احمد نوا آبادی ... حیدر آباد ... ١٧ مارچ ١٩٧٥ء

**الجواب:** د چنده ورکونکو یا د هغوی د معتمد علیه (کمیټی) په اجازت سره دا دواړه کارونه جائز دی. لان هذا المال مملوك للمعطين الآن كما كان فيكون الاذن اذنهم. وهوالموفق

## په مساجد په مکتب سکول جوړول ناجائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا په جومات کې مکتب سکول جوړول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: شمس الاسلام پیر غالب بابا شادی آباد

**الجواب:** په جومات کې مکتب سکول جوړول ناجائز دی، اول د تنخواه د وجې نه (حموی) (١) دویم د جومات توهین او د هغې د ګنده کولو د وجې نه. (کنز العمال) (٢) او د صفایئ دلیل پیش کول صحیح نه دی، ځکه چې زخمی کول ناجائز دی اګر چې هغه اسپتال ته رسولې شی، دریم د کلو لوئې لوئې حجرې خالی پرتې دی خو د سترګو ازغې صرف مساجد دی. وهوالموفق

---

١) قال العلامة الحموی: اقول الذی فی نسختی من منية المفتی يكره كتابة العلم والقرآن فی المسجد باجرة... وفی الفتح معلم الصبيان كالكاتب ان باجر لايجوز وحسبت لا بأس به، وفی شرح الجامع الصغير للتمرتاشی: ولايجوز تعليم الصبيان القرآن فی المسجد للمروی جنبوا مجانينكم وصبيانكم مساجدكم انتهىٰ وهو صريح فی عدم الجواز سواء كان باجر او لا.

(شرح الحموی علی الاشباه والنظائر ١٨٧: ٣ القول فی احكام المسجد)

٢) حم م عن انس... ان هذه المساجد لا تصلح لشيئ من هذا القذر والبول والخلا وانما هی لذكر الله عزوجل والصلوٰة ولقراءة القرآن (كنزالعمال ٢٧: ٧ رقم: ٢٠٧٨٩)

بسم الله الرحمٰن الرّحيم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

(شپږم جلد)

# کتاب الجهاد

.......

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

# کتاب الجہاد

عن انس قال رسول اللہ ﷺ:

جاھدوا المشرکین باموالکم وانفسکم والسنتکم.

(رواہ ابوداؤد)

........

# کتاب الجهاد

## باب شرائط الجهاد وغیره

### جهاد فرض عین دې یا فرض کفایه؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې جهاد فرض عین دې یا فرض کفایه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مدرسین ضیاء العلوم دته خیل وزیرستان... ۱۸ شعبان ۱٤۰۱ھ

**الجواب:** جهاد کله فرض عین وی او کله فرض کفایه. (۱) وهوالموفق

### د لفظ فی سبیل الله مصداق

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې لفظ د ﴿فی سبیل الله﴾ صرف په جهاد بالسیف پورې منحصر دې؟ او حال دا چې تبلیغی جماعت والا ﴿فی سبیل الله﴾ صرف په تبلیغ کې منحصر کنی، لهذا د ﴿فی سبیل الله﴾ صحیح مصداق څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالوکیل.... لنډی کوتل

**الجواب:** لفظ فی سبیل الله یو وسیع لفظ دې د دین اسلام او د الله پاک د رضا دپاره چې کوم محنت او مشقت کولې شی هغه ټولو ته دا لفظ شامل دې، مجاهد، حاجی، طالب علم وغیره ټول د دې مصداق دی، ه دین د یوې

---

۱) قال العلامة الموصلی: الجهاد فرض عین عند النفیر العام وکفایة عند عدمه. (الاختیار لتعلیل المختار ۴:۱۴۲ کتاب السیر)

خاص شعبې سره د دې تخصیص او نورې شعبې د دې نه بهر کول غلط فهمی یا بدفهمی ده وفی ردالمحتار ۳:٦٧ وقد قال فی البدائع فی سبیل الله جمیع القرب فیدخل فیه کل من سعیٰ فی طاعة الله تعالیٰ وسبیل الخیرات اذا کان محتاجاً انتهیٰ(١)۔ وهوالموفق

## د باطل خلاف د دفاعی او اقدامی جهاد مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په لویه مجمع کې وویل چې که مونږ جهاد لره مدافعانه جنګ تصور نه کړو نو اسلام به ډیر بدنام شی او د مغربی قومونو پیغورونه به مونږ ته راځی چې اسلام یو وینه تویونکې مذهب دې وغیره، نو آیا په اسلام کې د دفاعی جهاد نه علاوه د اقدامی جهاد تصور موجود دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: صاحب زاده صفی الله... ضلع دیر

**الجواب:** د باطل په مقابله کې جهاد کول مدافعانه او غیر مدافعانه دواړه جائز دی. (٢) په دې باندې د ټولو عقلاء اتفاق دې، که مسلمانان وی یا کافر،

---

١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:٦٧ کتاب الجهاد)

٢) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: هو فرض کفایة ابتداء وان لم یبدؤنا۔ وقال العلامة الشامی رحمة الله علیه: ثم اعلم ان الامر بالقتال نزل مرتبا فقد کان ﷺ مأمورا اولا بالتبلیغ والاعراض ثم المجادلة بالاحسن ثم اذن لهم بالقتال ثم امروا بالقتال ان قاتلوهم ثم امروا به بشرط انسلاخ الاشهر الحرم ثم امروا به مطلقا واستقر الامر علی هذا سرخسی ملخصا یعنی فی جمیع الازمان والاماکن۔
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۲۳۹ کتاب الجهاد، مطلب فی الفرق بین فرض عین الخ)

وفی المرقاة: قتال الکفار الذین لم یسلموا وهم من مشرکی العرب اولم یسلموا ولم یعطوا الجزیة من غیرهم واجب وان لم یبدؤنا لان الادلة الموجبة لم تقید الوجوب ببدئهم۔
(مرقاة المفاتیح ۷:۲۸۸ کتاب الجهاد، الجهاد الاقدامی حق)

بله دا چې د کوم مفسد فساد او د مریض مرض د عام او متعدی کیدو خطره لری د هغې فساد انسداد کول معقول او مسلم دی او په دې کې شك نشته چې د کفارو عقیده باطل ده او فاسد ده او د هغې د تعدیه خطره هم موجود دی، لهذا د هغوی خلاف جنگ خصوصا چې کله د خیرخواهئ په ارادې سره وی په دې کې هیڅ قابل اعتراض څیز نشته. (۱) په دې شرط چې د هغې ذهن د غیر قوم تهذیب (تعذیب) باندې نه وی گنده شوې فقط. **وهوالموفق**

## د نفیر عام مطلب او حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د نفیر عام څه معنی او تعریف دې؟ او په کومو حالاتو کې د نفیر عام حکم جاری کیږی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** حاجی فضل اکبر ضلع صوابئ.... ۲۶ ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

---

(۱) قال الامام ولی الله الدهلوی: اعلم ان اتم الشرائع واکمل النوامیس هوالشرع الذی یؤمر فیه بالجهاد وذلک لان تکلیف الله عباده بما امر ونهی مثله کمثل رجل مرض عبیده فامر رجلا من خاصته ان یسقیهم دواء، فلو انه قهرهم علی شرب الدواء واوجره فی افواهم لکان حقا لکن الرحمة اقتضت ان یبین لهم فوائد الدواء لیشربوه علی رغبة فیه، وان یخلط معه العسل لیتعاضد فیه الرغبة الطبیعیة والعقلیة، ثم ان کثیرا من الناس یغلب علیهم الشهوات الدنیة والاخلاق السبعیة ووساوس الشیطان فی حب الریاسات ویلصق بقلوبهم رسوم آبائهم فلا یسمعون تلک الفوائد ولا یذعنون لما یأمر به النبی ﷺ ولا یتأملون فی حسنه فلیست الرحمة فی حق اولئک ان یقتصر علی اثبات الحجة علیهم بل الرحمة فی حقهم ان یقهروا لیدخل الایمان علیهم علی رغم انفهم بمنزلة ایجاد الدواء المر ولا قهر الا بقتل من له منهم نکایة شدیدة وتمنع قوی او تفریق منعتهم وسلب اموالهم حتی یصیروا لا یقدرون علی شیئ فعند ذلک یدخل اتباعهم وذراریهم فی الایمان برغبة وطوع. (حجة الله البالغة ۱۷۰:۲ الجهاد)

**الجواب:** چې کله د کفارو فوجونه د مسلمانانو په وطن کې داخل شی نو دا نفير عام دی. (شامی) (۱) **وهوالموفق.**

## د دوه مسلمان ملکونو ترمينځه د جنګ په صورت کې د خاموش وسيدو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی د پاکستان په سرحد باندې وسيږی او د سرحد نه پورې غاړه د کابل علاقه ده په دواړو ملکونو کې د مسلمانانو حکومت دې که ناڅاپه د دواړو ملکونو ترمينځه هنګامی حالات پيدا کيږی نو په مونږ باندې د چا حمايت لازم دی او که خاموشی اختيارول پکار دی؟ **بينوا توجروا**

المستفتی: مولوی سید ولی...٦ جمادی الثانی..١٣٩٥هـ

**الجواب:** که په هغوی کې يو سړی د دين حمايت نه کوی نو خاموش او غير جانبدار دې کينی. (۲)

کما حکم النبی ﷺ عند الفتنة والفساد بين المسلمين حيث قال فان تمت يا حذيفة وانت عاض على جذل خير لك من ان تتبع احدا منهم (رواه ابوداؤد) (۳). **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة الشامی: (قوله ان هجم العدو) ای دخل بلدة بغتة وهذه الحالة تسمى النفير العام ، قال فی الاختيار والنفير العام ان يحتاج الى جميع المسلمين فيخرج الكل. (ردالمحتار ٣:٢٤٢ کتاب الجهاد)

۲) قال العلامة ابن عابدين: والمروی عن ابی حنيفة من قول الفتنة اذا وقعت بين المسلمين فالواجب على کل مسلم ان يعتزل الفتنة ويقعد فی بيته.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ٣:٣٤٠ باب البغاة، مطلب فی وجوب طاعة الامام)

۳) (سنن ابی داؤد ٢:٥٨٢ کتاب الفتن)

## د مجاهد د پاره د تنخواه اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی په دې شرط باندې د جهاد دپاره ځی چې د جهاد امير هغه ته متعين رقم يا تنخواه ورکوی مثلا مجاهد د جهاد امير ته اوائی چې ماته زر درهم د اهل وعيال د نفقې خرچې دپاره راکړه نو بيا به تاسره د جهاد دپاره ځم کنه نو نه ځم، پس که امير هغه ته دغه متعين رقم ورکړی او د جهاد دپاره لاړ شی نو آيا د مزدوری اخستلو په وجه به د هغه د فرضيت ذمه ساقط شی؟ او دې که قتل شی نو آيا هغه ته به د شهادت مرتبه ملاويږی؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: محمد نبی استاذ... مانکۍ صوابی.... ۲۶ جمادی الاولی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا اعانت دی اجاره نه ده. (۱) **وهكذا سائر الامراء ايضا، لانهم ان يعطوا فيجاهدون ولا فلا يجاهدون بل لا يستطيعون. وهوالموفق**

## د جهاد دوران کې د امير د مقرر کولو او اطاعت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آيا د جهاد دوران د مجاهدين دپاره د خپل مينځ نه د امير تقرر لازمی دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: گل محمد افغانی.... پيښور کيمپ

---

(۱) قال الشيخ ظفر احمد العثمانی: ان رسول الله ﷺ قال: للغازی اجره وللجاعل اجره واجر الغازی، قلت: ودلالته على جواز اخذ الجعل واعطاءه ظاهرة من حيث ان النبی ﷺ مدح الجاعل ورغبه فيه وذلک لا يکون الا فيما کان جائزاً لکن الجواز مقيد بالضرورة کأن يکون الغازی معسرا محتاجاً الى نفقة اهله يخاف عليهم الضياع بخروجه الى العزو... فياخذ من کان محتاجاً اليه لنفقة اهله من بعده او للزاد والراحلة فلا بأس... کراهة اخذ الجعل على الغزو اذا کان على وجه البيع والشراء واما ان کان على وجه الاعانة والاستعانة فلا کراهة. (اعلاء السنن ۱۳ : ۱۲ باب جواز الجعل عند الضرورة)

**الجواب:** د جهاد دوران د انتظام د برابرولو او د ترتیب د پاره د جنګ ماهر او د هغې نه خبر یو نیك متبع سنت امیر مقرر کول او د هغه اطاعت ضروری او بنه اقدام دې چې انتشار پیدا نه شی او نظم او ترتیب صحیح کړې شی. وفی ردالمحتار ۳:۲۳۴ قال فی الملتقی وینبغی الامام ان یعرض الجیش عند دخول دارالحرب لیعلم الفارس من الراجل قال فی شرحه وان یکتب اسماء هم وان یؤمر علیهم من کان بصیراً بامور الحرب وتدبیرها ولو من الموالی وعلیهم طاعته لان مخالفة الامیر حرام الا اذا اتفق الاکثر انه ضرر فیتبعهم[1]. وهوالموفق

## چه د جهاد د امیر په حکم کې ضرر او نقصان ښکاره وی نو تعمیل ضروری نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جهاد دوران د حملې په صورت کې د مغلوب کیدو یقین وی او کمانډر د حملې حکم وکړی نو آیا د دې ضرر او نقصان باوجود کمانډر یعنی د امیر حکم منل ضروری دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالاکبر صادق... مقیم حال چارسده

**الجواب:** که د ضرر او نقصان ویره وی او د کمانډر د حکم په تعمیل کې څه فائده په ظاهر کې نه وی، بلکه دا چې د دې حملې کفارو ته د نقصان او ضرر احتمال هم نه وی نو په دې صورت کې د کمانډر (امیر) د حکم تعمیل ضروری نه دې. لما فی الهندیة ۱۹۲/۲ وان علموا انهم لا ینتفعون به بیقین بل یتضررون لایطیعونه فی ذلك[2] وکذافی ردالمختار ۱۲٤/٤[3] وهوالموفق

---

[1] (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۲۳۴ فصل فی کیفیة القسمة کتاب الجهاد)

[2] (فتاوی عالمگیریة ۲:۱۹۲ کتاب السیر الباب الاول)

[3] قال العلامة ابن عابدین: فاما اذا علم ان لا ینکی فیهم فانه لا یحل له ان یحمل علیهم لانه لا یحصل بحملته شیئ من اعزاز الدین.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴:۱۲۷ کتاب الجهاد مطلب اذا علم انه یقتل یجوز له الخ)

## اهل زیغ سره د جنګ کولو حکم

**سوال:** چې میفر مائد علماء کرام درین مسئله که محاربه اهل زیغ راحکم چیست؟ بینواتوجروا

المستفتي: نامعلوم ..... ۳ شعبان ۱٤۰۱ھ

**الجواب:** محاربه اهل زیغ مشروع است (۱) ولیکن درحالت محاربت ومرابطت درین اقدام شهد زهر الوده است. وهوالموفق

## د مجاهد دپاره بریتونه غتول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا د مجاهدینو دپاره د جهاد دوران کې بریتونه غتول جائز دی چې په کفارو باندې رعب راشی؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد ولی مجاهد جنوبی وزیرستان وانا

**الجواب:** په دشمن باندې د رعب اچولو او د هغوی د لادې کولو دپاره د مجاهد دپاره د جهاد دوران بریت غتول جائز دی، وفی الهندیة ۳۵۶/۵ قالوالاباس عن طول الشارب للغزاة لیکون اهیب فی عین العدو کذافی الغیاثیة انتهی (۲) وکذافی البحر ۷۶/۵ فلیراجع (۳). وهوالموفق

---

۱) وفی الهندیة: اهل البغی کل فرقة لهم منعة یتغلبون ویجتمعون ویقاتلون اهل العدل بتأویل ویقولون الحق معنا ویدّعون الولایة ... یحل للامام العدل ان یقاتلهم وان لم یبدوًا بقتاله وهذا مذهبنا. (فتاویٰ عالمگیریة ۲۸۳:۲ الباب العاشر فی البغاة)

۲) (فتاویٰ عالمگیریة ۳۵۸:۵ کتاب الکراهیة)

۳) قال العلامة ابن نجیم: ویندب للمجاهد فی دارالحرب توفیر الاظفار وان کان قصها من الفطرة لانه اذا سقط السلاح من یده ودنامنه العدو ربما یتمکن من دفعه باظافیره وهو نظیر قصر الشوارب فانه سنة ثم الغازی فی دارالحرب ... [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## د جنګی حکمت عملۍ په صورت کې د ګیرې لرې کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا د مسلمان فوجی یا غازی دپاره د جنګی حکمت عملۍ د لاندې د ګیرې لرې کولو اجازت دې یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** د ګیرې لرې کولو اجازت نه غازی ته ورکړې شوې دې او نه غیر غازی ته (١) خو د غازی دپاره د ګیرې تورولو اجازت او د بریتو لویولو او اوږدولو اجازت دې. لما فی الهندیة ٥:٢٦٤ واما الخضاب بالسواد فمن فعل ذلك من الغزاة لیكون اهیب فی اعین العدو فهو محمود منه اتفق علیه المشائخ رحمهم الله تعالیٰ(٢) وفیها ایضاً قالوا لا بد عن طول الشارب للغزاة لیكون اهیب فی عین العدو وكذا فی الغیاثیة(٣). وهو الموفق

## په جنګ کې د (الحرب خدعة) تصور

**سوال:** مایقول العلماء الكرام فی المسئلة الأتیة: هل یجوز الخدع مع الكفار فی الحرب املا؟ كیف ما كانت الخدیعة؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم ... ١٨ جمادی الاول ١٤٠٢ هـ

---

بقیه ازحاشیه گذشته ] مندوب الی توقیرها وتطویلها لیكون اهیب فی عین من یبارزه والحاصل ان ما یعین المرء علی الجهاد فهو مندوب الی اكتسابه لما فیه من اعزاز المسلمین وقهر المشركین- (البحر الرائق ٥:٧٦ كتاب السیر)

١) عن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: خالفوا المشركین احفوا الشوارب واوفوا اللحی- (الصحیح لمسلم ١:١٢٨ باب خصال الفطرة)

٢) (فتاویٰ عالمگیریة ٥:٣٥٩ كتاب الكراهیة، الباب العشرون فی الزینة)

٣) (فتاویٰ عالمگیریة ٥:٣٥٨ كتاب الكرایة، الباب التاسع عشر فی الختان)

**الجواب:** قال رسول الله ﷺ الحرب خدعة۔ رواه البخاری وغیره) قال النووی واتفقوا علی جواز خداع الکفار فی الحرب کیفما امکن الا ان یکون فیه نقض عهد اوامان، وفی شرح السیر الکبیر للسرخسی ١:٨٣ بعد ذکر الحدیث ما نصه، وفیه دلیل علی انه لا بأس للمجاهد ان یخادع قرنه فی حالة القتال، (اعلاء السنن ١٢:٤٥)۔

وفیه ایضا ما ملخصه ان المذهب انه لیس المراد (من جواز الکذب فی الحرب) الکذب المحض وانما المراد استعمال المعاریض، والحق جواز الکذب الصریح اذا لم یقدر علی التعریض، وکلام السرخسی محمول علی الاحتیاط(١) وفی البحر ٥:١٢٣ ویکفر بوضع قلنسوة المجوسی علی رأسه علی الصحیح الا لضرورة دفع الحر والبرد وبشد الزنار فی وسطه الا اذا فعل ذلك خدیعة فی حرب وطلیعة للمسلمین(٢)، وفی الخلاصة لوشد الزنار قال ابوجعفر الاستروشنی ان فعله لتخلیص الاساری لا یکفر والا کفر ٤:٣٨٧(٣)۔ وهو الموفق

## د نفیر عام نه کیدو په صورت کې د عوامو
## د جهاد د پاره تلل د مواخذې سبب نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی کوېژدن شوې ده او لائې وادۀ نه دې شوې او د افغانستان د جهاد دپاره تلل

١) (اعلاء السنن ١٢:٥٩،٦٠ کتاب السیر، باب الحرب خدعة وجواز الکذب فی الحرب)

٢) (البحر الرائق ٥:١٢٣ کتاب السیر، باب احکام المرتدین)

٣) (خلاصة الفتاوی ٤:٣٨٧ کتاب الفاظ الکفر، الفصل الثانی، الجنس السادس)

غواړي، د مور پلار د طرف نه ورته د تلو اجازت ملاو شوې دې لهذا که دا سړې د جهاد دپاره لاړ شي نو څه مواخذه خو به نه وي؟ بينواتوجروا

المستفتي: بشير احمد مروت بنون... ٢٥ جمادی الثانی... ١٤٠٢ هجری

**الجواب:** دا جهاد په عوام باندې فرض عين نه دې د هغوی دپاره د دې ترک رخصت دې، پس په صورت مسئوله کې د دې سړي د جهاد دپاره نه تلل د مواخذې سبب نه دې، (مأخوذازشامی) (١) وهندية(٢) وهوالموفق

## اشتراکيت د قرآن او حديث خلاف او د دې خلاف جهاد مشروع دې

**سوال:** چې ميفرمايد علماء دين درين مسئله که در صورتيکه ببرک کارمل واعضائی اومدعيان اسلام وکلمه او را برزبان ميرا انديشان منافقين، هست يا مجاهدين؟ در صورة منافقين بودن بهر ايشان جهاد لسانی هست؟ بينواتوجروا

المستفتي: عبدالغفور مهاجر فاضل حقانيه... ١٣ ربيع الاول

---

(١) قال العلامة الحصكفی: ولا بد لفرضيته من قيد آخر وهو الاستطاعة وفی السراج وشرط لوجوبه القدرة علی السلاح لا امن الطريق فان علم انه اذا حارب قتل ولم يحارب اسر لم يلزمه القتال ويقبل خبر المستنفر ومنادی السلطان ولو کان کل منهما فاسقا (درمختار)۔

وقال العلامة ابن عابدين: يجب علی الامام ان يبعث سرية الی دار الحرب کل سنة مرة او مرتين وعلی الرعية اعانته فان لم يبعث کان کل الاثم عليه۔

(ردالمحتار مع الدر المختار ٣:٢٣٩،٢٤٢ کتاب الجهاد)

(٢) وفی الهندية: واما شرط اباحته... والثانی ان يرجو الشوکة لاهل الاسلام باجتهاده او باجتهاد من يعتقد فی اجتهاده ورأيه وان کان لا يرجو القوة والشوکة للمسلمين فی القتال فانه لا يحل له القتال لما فيه من القاء نفسه فی التهلکة... ثم يستوی ان يکون المستنفر عدلا او فاسقاً يقبل خبره فی ذلک وکذا منادی السلطان۔

(فتاویٰ هندية ٢:١٨٨ کتاب السير الباب الاول)

**الجواب:** چونکې ببرك کارمل ومعاونین او ایمان په اشتراکیت دارد واشتراکیت از تصادم با قرآن وحدیث کفر جلی است (۱) لهذا ببرك کارمل وغیره هر نوع جهاد مشروع ومطلوب است. (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة المفتي محمود حسن : الجواب حامدا ومصليا : د کمیونزم بنیاد هم په دې باندې دې چې انسان د مذهب سره په جنګ کړې شي، پس "واتې کمیونزم ازدیب" کښې دي چې: د کمیونزم ممبر د هغه سرې نه علاوه بل څوک جوړيدې نه شي چې صفا صفا د دې خبرې اعلان اونکړي چې هغه دهريه دې يعنى د الله پاک منکر دې، اینجلز ليکی چې: زمونږ پارټی طبقه دار شعور لری، او د مزدورانو د آزادئ دپاره کوشش کوی، داسې پارټی د مذهبی اعتقاداتو نه پيدا کړی جهالت نه غفلت نه شی کولې، زمونږ بنيادی مقصد دادې چې د مذهبی دهوکې خوړلونه خلق ويستلې شي. مارکس د مذهب په انفرادی معامله باندې تبصره کولو سره ويلې دی چې: مونږ لره قدم وړاندې کولو سره انسانيت لره د مذهب د اقتدار نه آزادول دی، په مذهب باندې تنقيد د علم تنقيد بنياد دې. (مارکس سوشلزم ۱۹۲) مذهب د عوامو په حق کښې د افيون په شان اثر لری. (حواله سابقه) مذهب د غلامئ د نظام د پخوانئ چغې راتنبيدلې آواز دې. (کميونسټ مينو فيسټو کی تشريح دفعه ۵۵) په کميونزم باندې بحث کولو سره د حکم الاسلام في الاشتراکية مصنف ليکی: ان العقيدة الاساسية للنظام الاشتراکی هی العقيدة المادية التی تقول: ان المادة هی اصل الاشياء : ولا شيئ لغير المادة وهذا يعنی انکار وجود الخالق العظيم سبحانه وتعالیٰ، وبالتالی انکار کل دين سماوی واعتبارها الايمان بذلک افيونا يخدر الشعوب کما يعتقد بذلک المارکسيون والتيتويون وامثالهم. (حکم الاسلام فی الاشتراکية ۱۱۹) او کيمونزم هم يو تحريک نه دې بلکه يو نوې مذهب دې، دا د کميونزم اجمالی خاکه ده چې د هغې نه هم ښه واضحه شوه چې د اعتقاد په اعتبار هم هغه صراحة د اسلام خلاف دې.

۲) قال العلامة المرغينانی : وقتال الکفار واجب وان لم يبدوا للعمومات. (الهداية ۲:۵۵۹ کتاب السير)

## که د جنګ دوران کې کافر کلمه ولولي نو د هغه قتلول جائز نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که د جنګ دوران یو کافر او د الله پاك منکر د غازیانو مخکې کلمه توحید ولولي او اسلام قبول کړي نو آیا د اسلام د قبلولو نه پس د هغه قتلول جائز دي؟ اګر چې په دروغه د اقرار احتمال هم وي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** انور سادات... طالب علم زرګری

**الجواب:** د جنګ په حالت کې که یو غیر مسلم د ایمان اظهار وکړي او کلمه توحید لوستلو سره د الله پاك د وحدانیت اقرار وکړي نو هغه به نه شي قتلولې، د ایمان په اقرار باندې به اکتفاء کولې شي. **وفی الهندیة ۲: ۱۹۵ قال القدوری فی کتابه الکفار علی نوعین فمنهم من یجحد الباری عزوجل ومنهم من یقربه الا انه ینکر وحدانیته کعبدة الاوثان فمن انکره اذا اقربه یحکم بإسلامه ومن اقر ویجحد وحدانیته اذا اقر بوحدانیته بأن قال لا اله الا الله یحکم بالاسلام(١)۔ وهوالموفق**

## د جهاد دوران کې د کفارو د ماشومانو او زنانو د قتل کیدو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د هغه خلقو د اولاد د قتل کیدو څه حکم دې کوم چې د دهریانو او روسیانو نه وسله اخلي او د مجاهدینو خلاف جنګ کوي، ځکه چې دا خلق په خپلو کورونو کې دننه وي چې په هغې کې د هغوی سره د هغوی ماشومان او ښځې هم وي، او په کورنو کې دننه جنګیږي نو په دې دور کې د نوې وسلې مثلا راکټ لانچر په استعمال سره د هغوی ماشومان وغیره هم مري نو د دې څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** مولوی کمال محمد کرم ایجنسی... ۱۵ شوال ۱۴۰۱ھ

---

(١) (فتاویٰ عالمګیریة ۲: ۱۹۵ کتاب السیر الباب الثانی فی کیفیة القتال)

**الجواب:** جاز قتلهم لا عن قصد(۱) كما فى ردالمحتار ۲:۳۰۸ لكن جواز التحريق والتغريق مقيد كما فى شرح السير بما اذا لم يتمكنوا من الظفر بهم بدون ذلك بلا مشقة عظيمة فان تمكنوا بدونها فلا يجوز لان فيه اهلاك اطفالهم ونساءهم ومن عندهم من المسلمين (۲)۔ وهوالموفق

## د دهریانو او د هغوی د معاونین خلاف د جنګیدلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کوم خلق د دهری حکومت نه وسله اخستلو سره د مجاهدینو خلاف جنګیږی هغوی لره د قتلولو او هغوی سره د جهاد کولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی کمال محمد کرم ایجنسی صده... ۱۵ شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د دهریانو خلاف د هغوی د کفر د وجې نه جنګ کول مشروع دی (۳) او هم دغه شان د هغوی د معاونین او مدافعین خلاف هم (۴) قال الله

---

۱) قال الشيخ ظفر احمد العثمانى: عن الصعب بن جثامة ان رسول الله ﷺ سئل عن اهل الدار من المشركين يبيتون فيصاب من نسائهم وذراريهم ثم قال هم منهم، (قوله عن الصعب) دلالته على ان لا بأس بقتل النساء والذرية تبعاً من غير عمد حيث لا مفر عن قتلهم ظاهرة۔ (اعلاء السنن ۱۲:۲۶ كتاب السير باب من لايجوز قتله)

۲) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳:۲۴۴ قبيل مطلب فى ان الكفار مخاطبون ندباً)

۳) قال العلامة المرغينانى: قتال الكفار واجب وان لم يبدوا للعمومات۔ (هداية ۲:۵۵۹ كتاب السير)

۴) قال الشيخ الطرابلسى: سئلت عن بلدة استولى عليها الكفار وتمكنوا منها فانضم اليهم بعض القبائل والعشائر وصاروا يقاتلون معهم المسلمين وينهبون مالهم وينصحون الكفار ويعينوهم على اذى المسلمين ... [بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

تبارك وتعالى: ومن يتولهم منكم فانه منهم (١) وهوالموفق

## د جهادي فلمونو او تصويرانو جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د افغانستان د جهاد دپاره په خلقو کې د جذبې پيدا کولو دپاره جهادي فلمونه جوړول او عکاسي يعنې تصويران ويستل جائز دي يا ناجائز؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولوي محمد يونس خالص امير حزب اسلامي افغانستان... ٢٤ نومبر ١٩٨٥ء

**الجواب:** واضح باد که تصوير کشي حيوان ونکريسين بدنهائے زنان وتصويرات ايشان وشنيدن سرود ها يا عکس ايشان ناجائز امور اند، لورود اللعنة وغيرها على المصور (٢) ولحديث كأنه ينظر اليها (٣) البته در وقت

---

بقيه ازحاشيه گذشته] فكانوا اشد ضرراً على المسلمين من الكفار فما الحكم فيهم وهذا حالهم؟ فالجواب انى لم اقف على حكم هؤلاء فى كتب مذهبنا معاشر الحنفية ولكن وقفت عن حكمهم فى كتب بعض السادة المالكية والظاهر ان حكم هؤلاء حكم اهل الحرب فى قتلهم واخذ مالهم... لكونهم ردأ لعدو الحرب ومعينون له بانفسهم وحكم الردء اذا لم يقاتل مع العد وحكم المقاتل فاحرى اذا قاتل- (الفتاوىٰ الكاملية ٢٥٠ كتاب الجنايات)

١) (سورة المائدة: ٥١)

٢) قال الله تعالىٰ: ان الذين يؤذون الله ورسوله لعنهم الله فى الدنيا والآخرة واعد لهم عذابا مهينا، وقال عكرمة معناه بالتصوير والتعرض لفعل مالا يفعله الا الله بنحت الصور وغيرها وقد قال رسول الله ﷺ لعن الله المصورون.

(الجامع لاحكام القرآن للقرطبى ١٦:٢١٢ سورة الاحزاب آيت: ٥٧)

٣) عن ابن مسعود قال قال رسول الله ﷺ لا تباشر المرأة المرأة فتنعتها لزوجها كانه ينظر اليها متفق عليه- (مشكواة المصابيح ٢٦٨ كتاب النكاح، باب النظر الى المخطوبة الخ)

تعارض بضرورت مختار کردن، اهون البلیتین فعلا واقل المفسدتین دره قواعد مسلمه اند، کما فی شرح المجلة (۱) وشرح التنویر (۲) والاشباه والنظائر (۳) چون قتل مسلم تاجر یا اسیر وغیره یا سماعت مزامیر از مجاهدین که فساق باشند، وغیر ذلك کما فی الهندیة (۴) پس این فلمها از دیگر فلمها ندارند. وهوالموفق

## د کفارو د پاره د جاسوسی کونکی مسلمان حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې د مسلمان جاسوس کوم چې د کفارو دپاره جاسوسی کوی هغه به قتلولې شي یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: نامعلوم ...... ۱۸ جمادی الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** زمونږ په نزد به مسلمان جاسوس نه شي قتلولې کما فی اعلاء السنن ۱۲: ۴۲ فی شرح السیر الکبیر قال اذا وجد المسلمون رجلاً ممن یدعی الاسلام معیناً للمشرکین علی المسلمین یکتب الیهم بعوراتهم فاقر بذلك طوعاً

---

۱) فی شرح المجلة یختار اهون الشرین (شرح المجلة ۷۵: ۱ المادة: ۲۹)

۲) فی شرح التنویر: والضابط ان من ابتلی ببلیتین فان تساویا خیر وان اختلفا اختار الاخف. (الدر المختار ۳۰۳: ۱ کتاب الصلوة، باب شروط الصلوة)

۳) وفی الاشباه والنظائر: وهی ما اذا تعارض مفسدتان روعی اعظمها ضررا بارتکاب اخفهما. (الاشباه والنظائر ۸۹ القاعدة الخامسة الضرر یزال)

۴) وفی الهندیة: ولا بأس برمیهم وان کان فیهم مسلم اسیر اوتاجر وان تترسوا بصبیان المسلمین او بالاساری لم یکفوا عن رمیهم ویقصدون بالرمی الکفار... قوم من الصلحاء یریدون الغزو ومعهم قوم من اهل الفساد یخرجون الی الغزو ومعهم مزامیر فان امکن للصلحاء الخروج بدونهم لا یخرجون معهم وان لم یمکن الخروج الا معهم یخرون معهم. (فتاوی عالمگیریة ۱۹۴: ۲ الباب الثانی فی کیفیة القتال)

فانه لا يقتل ولكن الامام يوجعه عقوبة([1]) وكذا صرح به النووى ونسبه الى الشافعى والاوزاعى وابى حنيفة وبعض المالكية([2]).-وهوالموفق

## د کفارو دپاره جاسوسی کونکی مسلمان لره په طور د تعزیر قتلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کله يو مسلمان د کفارو دپاره جاسوسی وکړی چې د هغې په نتيجه کې ډير مسلمان قتل شی، آيا د دې قسم جاسوس قتلول جائز دی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی:** نامعلوم ... ۲۸ جمادی الثانی ... ١٤٠٤هـ

**الجواب:** دا قسم جاسوس تعزيرا قتلول جائز دی. (كمافى الهندية ١٨٨/٢) ([3]) وهوالموفق

## د جاسوسئ په شک چا لره قتلول جرم دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې په افغانستان کې مجاهدينو يو سړی د يوې ډلې امير جوړ کړې دی دا امير د حکومت دفترونو ته هم ځی او د هغه افرادو کله هم جهاد نه دی کړې، اوس د دې امير دپاره څه حکم دې؟ هغه لره د حکومت سړې ګڼلو سره سزا ورکړې شی حال دا

---

[1] (اعلاء السنن ١٢:٥٦ باب الجاسوس)

[2] قال العلامة النواوى: ومذهب الشافعى وطائفة ان الجاسوس المسلم يعزر ولا يجوز قتله وقال بعض المالكية يقتل الا ان يتوب وبعضهم يقتل وان تاب وقال مالك يجتهد فيه الامام. (حاشية النووى على صحيح مسلم ٢:٣٠٢ باب من فضائل حاطب بن ابى بلتعة)

[3] وفى الهندية: المكابر بالظلم وقطاع الطريق وصاحب المكس وجميع الظلمة والاعوان والسعادة يباح قتل الكل ويثاب قاتلهم كذا فى النهر الفائق. (فتاوى عالمگيرية ٢:١٦٧ فصل فى التعزير)

چې حکومت د مجاهدینو سره په معمولي تعاون سره چې یو سړی باندې خبردار شي نو هغه وژني، لهٰذا شرعي حکم څه دی؟ بینواتوجروا

المستفتي: عبدالمجید حقاني فاضل حقانیه ... ۱۲ ربیع الثاني ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** صرف په دې شك سره قتل کونکې مجرم دی (۱) داسې شبهات خو په مجاهدین او مهاجرین باندې هم کیدې شي په دوی کې د روس کسان ضرور موجود دي. والله اعلم

## د وطن او اسلامي سرحد حفاظت د حقوق الله نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کوم خلق په فوج کې بهرتي شوې دي د هغوی ذهن دا جوړېږي چې مونږ جهاد کوو د ملك د سرحدونو حفاظت کوو د عوامو د نفس او مال محافظ یو لهٰذا مونږ چونکې حقوق العباد پوره کوو، د الله پاك مخلوق ته فائده رسوو که مونځ وغیره مونږ ادا نه کړو نو هیڅ فرق نه راځي الله پاك خپل حقوق معاف کوي خو د بندګانو حقوق نه معاف کوي، نو چونکې مونږ نه په حقوق العباد پوره کیدلو سره مونځ پاتې شوې دې په دې وجه هیڅ باك نشته نو د دې څه حکم دی؟ بینواتوجروا

المستفتي: نامعلوم ... ۵ ستمبر ۱۹۸۹ء

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: عموما دا مزدوري د تنخواه دپاره کولې شي، که تنخواه ملاویږي نو په مسلمان باندې هم حمله کول جائز ګڼي او که نه ملاویږي نو هندو او یهودي هم معاف وي او بهر حال دا د وطن حفاظت د

---

(۱) في شرح المجلة: الیقین لا یزول بالشک... یعني ان الامر المتیقن ثبوته لا یرتفع الا بدلیل قاطع ولا یحکم بزواله بمجرد الشک کذلک التیقن عدم ثبوته لا یحکم بثبوته بمجرد الشک لان الشک اضعف من الیقین فلا یعارضه ثبوتا وعدما. (شرح المجلة ۱۸: ۱ المادة: ۴)

حقوق عامة نه دی کوم ته چې حقوق الله ویلې شی دا د شخصی فائدې دپاره نه دی کوم ته چې حق العبد ویلې شی. (۱) والله اعلم بالصواب

## په قتال کې د زنانو او ماشومانو قصداً قتلول منع دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د کمیونستو کورونه تباه کول یا ماشومان او ښځې وژل څه حکم لری؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاری انور مدرسه عربیه تل... ۲۳ جون ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د ماشومانو او زنانو قصدا ارادة قتلول ممنوع دی (حدیث) (۲) وهوالموفق

---

۱) قال الامام ولی الله الدهلوی: ثم مست الحاجة الی الترغیب فی مقدمات الجهاد التی لا یأتی الجهاد فی العادة الا بها کالرباط والرعی وغیرهما لان الله تعالیٰ اذا امر بشیئ ورضی به وعلم انه لا یتم الا بتلک المقدمات کان من موجبه الامر بها والرضا عنها، ورد فی الرباط انه خیر من الدنیا وما فیها وانه خیر من صیام شهر وقیامه وان مات اجری علیه عمله الذی کان عمله واجری علیه رزقه وامن الفتان.

(حجة الله البالغة ۲:۱۷۲ باب الجهاد)

۲) عن انس بن مالک رضی الله تعالیٰ عنه ان رسول الله ﷺ قال انطلقوا بسم الله وبالله وعلی ملة رسول الله ولا تقتلوا شیخا فانیا ولا طفلا ولا صغیراً ولا امرأة.

(سنن ابی داؤد ۲:۳۵۲ باب فی دعاء المشرکین)

وفی اعلاء السنن: عن الصعب بن جثامة ان رسول الله ﷺ سئل عن اهل الدار من المشرکین یبیتون فیصاب من نسائهم وذراریهم؟ ثم قال: هم منهم، قوله: عن الصعب الخ دلالته علی ان لا بأس بقتل النساء والذریة تبعاً من غیر عمد حیث لا مفرّ عن قتلهم ظاهرة. (اعلاء السنن ۱۲:۲۶ کتاب السیر باب من لا یجوز قتله فی الجهاد)

## مرتدین قتلول او د هغوی د مالونو نه د غنیمت جوړولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مرزائیانو سره چې څو ورځې مخکې د سوشل بائیکاټ حکم شوې وو هم دې دوران کې مرزائیانو څو ملحد او بې دینه کسان د رشوت په ذریعه خپل معاونین جوړ کړل کوم چې په بازارونو کې ګرځیدل او آوازونه ئې کول چې شته څوك مولا چې د مرزائی د دکان نه څوك د سوا اخستلو نه منع کړی؟ هم دې دوران کې څو جذباتی ځوانانو د هغوی سره مقابله وکړه او د هغوی دکانونه ئې وران کړل او بعض اسباب وغیره ئې لوټ کړل، اوس چې کله دا بائیکاټ ختم شو نو دا مال کوم چې یو مسلمان اوچتولو سره استعمال کړو هغې لره واپس مرزائیانو ته ورکول ضروری دی یا نه؟ او د مسلمانانو دپاره د دې مال استعمال حلال دې یا حرام؟

۲: مرتدین چې کله د اسلام په ختمولو کې مصروف شی او د حربی کافر د زړه نه حمایت کوی نو د هغه مال به په حالت د ارتداد کې مباح وی یا نه؟

۳: یو عالم د مرتد ذکر شوې مال ته په حالت د ارتداد کې مباح ویلې دې په دې سره په دې عالم باندې شرعا څه نیول شته یا نه او هغه غلط ویلې دی یا صحیح؟ بینوا توجروا

المستفتی: مختار احمد ... ۲۷ شوال ۱۳۷٤ھ

**الجواب:** اهل ارتداد چې کله طاقت کې کیږی نو هغوی سره د بنو حنیفه په شان معامله کول یعنی د هغوی قتلول او د هغوی مالونه غنیمت جوړول سنت صدیقی دې (۱) او د هغوی په مسلمانانو معاونین باندې به د باغیانو په

---

(۱) قال الامام محمد رحمه الله تعالیٰ: ولو ان اهل بلدة ارتد واحتی صارت دارهم دارحرب ثم وقع الظهور علیهم فانه یقتل رجالهم ویسبی نساؤهم وذراریهم کما فعله الصدیق رضی الله تعالیٰ عنه ببنی حنیفة حین ارتدّوا.
(شرح السیر الکبیر ۱۹٤۱:٥ باب من ارتد من المسلمین)

شان د جنازې مونځ نه شي کولی کما فی رد المختار ۱/۸۴۳، وجعل مشائخنا المقتولین فی العصبة فی حکم اهل البغی. (۱) وهو الموفق

## د ایران او عراق په جنګ کې توقف دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د ایران او عراق ترمینځه جنګ کې که یو فریق خپل ځان ته د مجاهدین اسلام نوم ورکړی او مقابل دویم فریق ته د کفارو لښکر اوائی او دې جنګ ته د کفر او اسلام جنګ اوائی نو آیا یو فریق ته داسې ویل په شریعت محمدی ﷺ کې صحیح دی یا نه؟ او آیا د دې جنګ د کفر او اسلام سره څه تعلق شته یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید حبیب الله اسعد ناظم مرکز علوم اسلامیه راحت آباد پېښور ۲۶ مارچ ۱۹۸۵ء

**الجواب:** دا فیصله ګرانه ده، ایرانی حکومت شیعه او غیر اسلامی حکومت دې او عراقی حکومت په باره کې معلومه نه ده چې هغه اسلامی حکومت دې یا اشتراکی حکومت. والله اعلم

## په اراکان (برما) کې د ظالمانو خلاف جهاد فرض عین دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د اراکان په ځمکه (برما) کې مسلمانان د ډېرې مودې نه آباد دی او په دې حصه کې د مسلمانانو اکثریت دې اوس په دې ځمکه باندې د غیر مسلمو حکومت دې مخکې په ۱۹۴۲ء کې د یو منظم سازش د لاندې د دې حصې نه د مسلمانانو د بهر کولو دپاره دومره د تشدد او بربریت ثبوت ورکړې شو چې د هغې مثال د دنیا په تاریخ کې نشته، دا د ظلم سلسله تر اوسه پورې راروانه ده، د تپوس کولو امر دا دې چې دا د شپږو څلویښتو کالو مسلسل ظلم ته کتلو سره شرعا د برما د مسلمانانو په حق کې نفیر عام دې یا نه؟ که وی نو شرعا په هغوی باندې جهاد فی سبیل الله فرض دې یا نه؟ که طاقت نه لری نو بیا څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: جناب میر احمد صاحب ۱۶۸۳ عجمان یو اے ای... ۲۷ صفر المظفر ۱۴۰۹ھ

۱) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱:۶۴۲ باب صلوة الجنازة)

**الجواب:** د دې فرعونیانو او ظالمانو خلاف جهاد فرض عین دې (١) او چونکې دا مظلومین خپله د مخالفین په مقابله کې طاقت نه لرې، لهذا الاقرب فالاقرب باندې باقاعده فرض دې. (٢) **وهوالموفق**

## د مسلمان فاسق حکومت خلاف مسلح جهاد جائز نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې پاکستان چې یو اسلامی ملك دې او په دې کې ډیر قوانین غیر اسلامی دی او اکثر حکمران طبقه په دې کوشش کې وی چې د آئین نه اسلامی شقونه ختم کړی نو ایا د دې مسلمان فاسق حکمرانانو خلاف جهاد بالسیف یعنی مسلح جهاد ضروری نه دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** رحیم علی متعلم اشرفیه پیښور .....١١ اگست ١٩٧٣ء

**الجواب:** د مسلمان فاسق حکمران خلاف مسلح جهاد یعنی جهاد بالسیف بالاجماع جائز نه دی، خو بغیر د قتل او مقاتله د هغوی خلاف آواز اوچتول او د منکراتو نه منع کول (د جلسې جلوس په ذریعه) بیشکه جهاد دې. (٣) لکه

---

١) قال العلامة الموصلي: الجهاد فرض عين عند النفير العام لقوله تعالیٰ: انفروا خفافا وثقالا، الآية: والنفير العام ان يحتاج الى جميع المسلمين فلا يحصل المقصود وهو اعزاز الدين وقهر المشركين الا بالجميع فيصير عليهم فرض عين كالصلوٰة ... واذا هجم العدو وجب على جميع الناس الدفع. (الاختيار لتعليل المختار ١٤٢: ٤ كتاب السير)

٢) قال العلامة الحصكفي: يفرض على الاقرب فالاقرب من العدو الى ان تقع الكفاية فلو لم تقع الا بكل الناس فرض عينا كصلوٰة وصوم. (الدرالمختار ٢٤٠: ٣ كتاب الجهاد)

٣) قال الملا على قاري: والمراد بالكفر هنا المعاصي والمعنى لا تنازعوا ولاة الامور في ولايتهم ولا تعترضوا عليهم الا ان تروا منهم منكرا محققا تعلمونه من قواعد الاسلام فاذا رأيتم ذلك فانكروه عليهم وقوموا بالحق حيثما كنتم واما الخروج عليهم وقتالهم فمحرم باجماع المسلمين وان كانوا فسقة الظالمين ... واجمع اهل السنة على ان السلطان لا ينعزل بالفسق لتهييج الفتن في عزله واراقة الدماء وتفريق ...[بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

چې اهل حق علماء دا کوي. لما رواه مسلم: عن ام سلمة ان رسول الله ﷺ قال ستكون امراء فتعرفون وتنكرون فمن عرف برئ ومن انكر سلم ولكن من رضي وتابع قالوا افلا نقاتلهم قال لا ما صلوا(۱). وهوالموفق

## په پاکستان او افغانستان کې د جهاد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا افغانستان دار الحرب دې؟ او د دې د جهاد متعلق او پاکستان کې د جهاد متعلق څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد حلیم دار العلوم حقانیه ... ۲۲ صفر المظفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په افغانستان او پاکستان دواړو کې اسلامی نظام نافذ نه دې او په دواړو کې د اسلام په نفاذ کې (روس وغیره) بندیز راولی خو د افغانستان نه د دې بندیز ختمولو دپاره جهاد بالسنان شروع دې او د پاکستان نه د دې د ختمولو دپاره جهاد باللسان جاری دې. وهوالموفق

## د افغانستان نه د هجرت او جهاد مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا په افغانستان کې جنګ جاری دې بعض خلق وائی چې دا اسلامی جهاد نه دې، ځکه چې روس خپل فوج واپس کړې دې اوس مجاهدین خپل مینځ کې جنګیږی، دغه شان دا د امریکې په وسله باندې جنګیږی او نجیب د روس نه وسله اخستلو سره جنګیږی، آیا په دې هجرت او جهاد به ثواب ملاویږی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم

---

بقیه ازحاشیه گذشته] ذات البین فتكون المفسدة فی عزله اكثر منها فی بقائه.
(مرقاة المفاتيح شرح مشكواة ۷:۲۰۱ كتاب الامارة والقضاء الفصل الاول)

۱) (صحیح مسلم ۲:۱۲۸ كتاب الامارة باب وجوب الانكار الخ)

**الجواب:** روس او روسیانو خلقو سره جنګیدل جهاد دي (۱) او خپل مینځ کې جنګ کول فساد دي، د هجرت فرضیت د مکې د فتح نه پس منسوخ دي (۲) او تر کوم وخته پورې چې په کومو ښهرونو کې د دین دپاره خطره وی نو هجرت به واجب وی کنه نو مستحب به وی. (۳) بهر حال دا موجوده هجرت د مصلحت تقاضه ده نه د دې نه پورته. **فافهم وهو الموفق**

## افغان جهاد بیشکه بې شبهې جهاد دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په ګاونډ کې چې د مسلمان ملك افغانستان کوم صورتحال دي چې روس په دې قبضه کړې ده او کمیونزم او دهری نظام ئې نافذ کړې دي، اوس سوال دا دي چې ۱: د افغانستان نه علاوه د یو بل ملك مثلا پاکستان وغیره یو فرد د جهاد د جذبې د لاندې هلته تلو سره شریکیږی نو هغه ته به د جهاد ثواب ملاویږی یا نه؟ او که په دې جنګ کې قتل کړې شی نو هغه ته به شهید ویلې شی یا نه؟
۲: بله دا چې دغه مجاهدینو سره د مالی تعاون شرعی حیثیت څه دې؟ کوم

---

۱) قال العلامة ابن نجيم : والجهاد هو الدعاء الى دين الحق والقتال مع من امتنع عن القبول بالنفس والمال. (البحر الرائق ۵:۷۰ كتاب السير)

۲) عن ابن عباس رضى الله تعالىٰ عنه عن النبى ﷺ قال يوم الفتح لا هجرة بعد الفتح ولكن جهاد ونية واذا ستنفرتم فانفروا، متفق عليه.
(مشكواة المصابيح ۳۳۱ كتاب الجهاد)

۳) قال العلامة العينى : فقوله "لاهجرة" يعنى من مكة واما الهجرة عن المواضع التى لا يتأتى فيها امر الدين فهى واجبة ... بقى من الهجرة ثلاثة انواع وهى هجرة من كان مقيماً ببلاد الكفر ولا يقدر على اظهار الدين فتجب عليه الهجرة.
(عمدة القارى ۱۴:۸۰ كتاب الجهاد باب فضل الجهاد)

خلق چې د دې مجاهدينو دپاره په وسله او نقد وغيره سره امداد کوی هغوی ته به په دې باندې اجر او ثواب ملاويږی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** حميد الرحمن عباسی مدرس مدرسه قاسم العلوم

شيرانوالا... لاهور... ١٧ جمادي الثانی ١٤٠١هـ

**الجواب:** دا رد عمل بيشکه بې شبهې جهاد دې، دا د اسلام او دارالاسلام نه مدافعت دې (١) د بخارا حالت په چا هم پټ نه دې، په دې رد عمل کې کوشش کونکې مجاهد دې، او په دې کې قتل شوې شهيد دې (٢) او هغوی سره هر قسم تعاون د اجر او ثواب باعث دې. **وهوالموفق**

## جهاد افغانستان صحيح او اهل اقتدار باندې فرض عين دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ١: په افغانستان کې چې کوم جنګ د مسلمانانو او روسيانو يا د هغوی د ملګرو ترمينځه شروع دې آيا اسلامی نقطه نظر سره دا جهاد دې يا نه؟

٢: آيا دا جنګ زمونږ د ملك پاکستان دپاره جهاد کيدې شی او د دې جهاد څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** نثار احمد... اسسټنټ ډسټرکټ ايجوکيشن افيسر

ملاکنډ ايجنسی..... ١٧ محرم ١٤٠٣هـ

**الجواب:** چونکې حقيقت دا دې چې روس د خپلو نظرياتو د کاميابئ دپاره هر تدبير او هره حربه استعمالوی، لهذا د افغانستان خلقو ته د دين او دنيا

---

١) قال العلامة الموصلی: واذا هجم العدو وجب على جميع الناس الدفع لانه يصير فرض عين- (الاختيار لتعليل المختار ١٤٢: ٤ کتاب السير)

٢) قال العلامة النسفی: الشهيد هو من قتله اهل الحرب او البغی او قطاع الطريق او وجد فی معرکة وبه اثر او قتله مسلم ظلما ولم تجب به دية-
(کنز الدقائق على هامش البحر الرائق ١٩٦: ٢ باب الشهيد)

متعلق خطرې پیښې دی، پس کوم اهل اسلام چې هجرت اختیار کړې دې او یا ئې دننه، بهر جنګ جاری کړې دې، نو هغه به بچ شی (١) او منونکی به ختم شی او چونکې صرف د اهل اسلام د روس سره مقابله ګرانه ده لهذا تول ارباب اقتدار (اهل اسلام) باندې فرض عین دی چې هغوی میدان ته راشی (٢) دا مجاهدین په عزیمت باندې عمل کوی (٣) ګیتې ترک د هغوی دپاره مرخص دې. وهوالموفق

## د اهل اقتدار په خاموش کیناستلو سره په رعیت باندې جهاد نه فرض کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې روسی کمیونسټ په افغان مسلمانانو باندې ډیر زیات ظلم کوی او هغوی د وطن عزیز نه په هجرت کولو باندې مجبوروی نو آیا په مسلمانانو ګاونډیانو باندې څه ذمه داری راځی؟ که څوک د جهاد دپاره لاړ شی نو هغوی ته به د جهاد ثواب ملاویږی؟ او آیا د مسلمانانو د طرف نه چې څوک قتل شی هغه به شهید وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: فضل الرحمن جامع مسجد میان سلطان میان والی شهر ١٤ جمادی الاول ١٤٠٢ھ

**الجواب:** د قواعدو په رڼا کې دا جهاد په اسلامی حکومتونو باندې فرض

---

١) قال العلامة العینی: قوله لا هجرة یعنی من مکة واما الهجرة عن المواضع التی لا یتاتی فیها امر الدین فهی واجبة.
(عمدة القاری ١٤:٨٠ کتاب الجهاد باب فضل الجهاد)

٢) وفی اعلاء السنن: لا یکون فرض عین الا علی من استنفرهم الامام... ان الجهاد لیس بواجب عینا علی جمیع المسلمین ظاهرة بل انما یکون کذلک اذا جاء النفیر من الامام. (اعلاء السنن ١٢:١٠ باب وجوب الجهاد)

٣) قال العلامة حسام الدین: العزیمة وهی فی احکام الشرع اسم لما هو اصل منها غیر متعلق بالعوارض. (الحسامی ٥٧ فصل فی العزیمة والرخصة)

عين دي، د هغوى په خاموش كيناستلو باندې په دينداره خلقو باندې فريض نه عائد كيږي. (١) خو دې ته عزيمت ويل صحيح دي (٢) او دې ته حرام ويل حرام دي خكه چې په تجربې سره معلومه شوې ده چې د مخالفينو په مدافعت كې دا لږ خلق هم كامياب دي او هغوى ته به د جهاد ثواب ضرور ملاويږي او د شهادت مرتبه به ضرور مومي. (٣) وهوالموفق

## د ارباب اقتدار دپاره په جهاد افغنستان كې حصه اخستل فرض دي

**سوال:** څه فرمائى علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې په افغانستان كې موجوده جنگ جهاد دې يا نه؟ او آيا په پاكستانى خلقو باندې جهاد فرض عين دې يا نه؟ او آيا د دې جهاد په باره كې ليكل او تقرر كول پكار دي يا نه؟ او د منع كونكي څه حكم دې؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوى عبدالرحمن پارهوتى مردان ... ١٢ رجب ١٤٠٣هـ

**الجواب:** د افغانستان دا موجوده معركه بيشكه جهاد دې د دې نصب العين د روس او د روس د ملگرو د اهل اسلام نه تسلط لرې كول دي او د اسلامى نظام راوړلو كوشش دې په ټولو اسلامى ممالكو باندې فرض ده چې

---

١) وفى الفقه الاسلامى وادلته: امر الجهاد موكول الى الامام واجتهاده ويلزم الرعية طاعته فيما يراه من ذلک.
(الفقه الاسلامى وادلته ٨:٥٨٥٢ كتاب الجهاد، مايجب قبل القتال)

٢) قال العلامة حسام الدين: العزيمة وهى فى احكام الشرع اسم لما هو اصل منها غير متعلق بالعوارض.
(الحسامى ٥٧ فصل فى العزيمة والرخصة)

٣) قال العلامة الحصكفى: وكذا يكون شهيداً لو قتله باغ او حربى او قاطع طريق ولو بغير الة جارحة فان مقتولهم شهيد بأى آلة قتلوه او وجد جريحا ميتا فى معركتهم.
(الدرالمختار ١:٦٧٠ باب الشهيد)

هغوی په دې جهاد کې حصه واخلی (١) کنه نو ارباب اقتدار به ګناهګاروی نه رعایا (٢) په هر مسلمان باندې ضروری ده چې هغه د دې جهاد په حق کې هر قسم حصه واخلی (٣) او د څه قسم مخالفت نه احتراز وکړی. وهوالموفق

## د افغانستان جهاد لره د نه منونکی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د موجوده جهاد افغانستان متعلق د چا په اشاره باندې د عدم جهاد اشاعت کوی چې په هغې باندې هغه ته کافی پیسې ملاویږی چې په عوامو باندې واضح کړی چې دا جهاد نه دې، د دې سړی متعلق څه حکم دې او موجوده جهاد افغانستان جهاد دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد رفیق متعلم حقانیه... یکم ذی الحجة ١٤٠٩هـ

**الجواب:** چونکې دا موجوده جنګ د اسلام د حفاظت او د دهریت د تزلزل

---

١) قال العلامة الحصکفی: وفرض عین ان هجم العدو فیخرج الکل وفی ردالمحتار (قوله فرض عین) ای علی من یقرب من العدو فان عجزوا او تکاسلوا فعلیٰ من یلیهم حتی یفترض علی هذا التدریج علی کل المسلمین شرقاً غرباً.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ٣:٢٤٢ کتاب الجهاد)

٢) وفی اعلاء السنن: لا یکون فرض عین الا علی من استنفرهم الامام... ان الجهاد لیس بواجب عیناً علی جمیع المسلمین ظاهرة بل انما یکون کذلک اذا جاء النفیر من الامام.
(اعلاء السنن ١٠:١٢ باب وجوب الجهاد)

٣) عن انس رضی الله تعالیٰ عنه عن النبی ﷺ قال جاهدواالمشر کین باموالکم وانفسکم والسنتکم رواه ابوداؤد والنسائی والدارمی.
(مشکواة المصابیح ٣٣٢ کتاب الجهاد)

دپاره کیږي، لهذا دا جنګ جهاد شرعي دې. (١) کوم سړې چې دا جهاد شرعي نه مني هغه د کفر او فسق ترمینځه دې. (٢) وهوالموفق

## په افغان جهاد کې د عوامو شرکت او د کفارو د معاونینو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د انقلاب افغانستان په باره کې چې هلته د کمیونسټ نظریاتو خلق حکمران دی، د روسی لټریچر او دهری نظریاتو پرچار کوی او ورسره ډیر علماء کرام یا خو قتل کوی یا ئې جیلونو کې اچوی، چې د هغې د وجې نه اکثر دیندار طبقه او اهل علم حضرات په هجرت باندې مجبور شو، نو ایا د دې دهری حکومت خلاف جهاد د شریعت په رڼا کې جائز دې یا نه؟ او کوم خلق چې د دې نه مدافعت کوی یا د هغوی معاونت کوی د هغوی څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: (شیخ القرآن) مولانا محمد الله جان ډاګوی المظاهری .. ٢٢ نومبر ١٩٧٠ء

**الجواب:** د قرائن نه معلومیږی چې د افغانستان د نوی حکومت د اقتدار خاوندان دهریه او کمیونسټ خلق دی دا خلق د هر مذهب او خصوصا د اسلام بدترین دشمنان دی دا خلق په ظاهر کې د اسلام نعره هم لګوی خو د مضبوط کیدو نه پس په شعائر اسلام باندې پابندی لګوی، د بخارا حکومت د دې مثال دې پس د دې امور په بناء په ټولو اسلامی حکومتونو باندې فرض ده چې د دې نوی حکومت مقابله وکړی او د هغوی سره جهاد وکړی. (٣) هم دغه

---

(١) قال العلامة ابن نجيم : (وفرض عين ان هجم العدو) لان المقصود عند ذلک لا يحصل الا باقامة الكل فيفترض على الكل فرض عين- (البحر الرائق ٥:٧٢ كتاب السير)

(٢) قال العلامة ابن عابدين : وفی التتارخانية لا يكفر بالمحتمل لان الكفر نهاية فی العقوبة فيستدعی نهاية فی الجناية ومع الاحتمال لا نهاية انتهی.
(ردالمحتار ٣:٣١٢ مطلب ما يشک فی انه ردة لايحكم بها)

(٣) قال العلامة الحصكفی : وفرض عين ان هجم العدو فيخرج الكل ، قال ابن عابدين : ای على من يقرب من العدو فان عجزوا اوتكاسلوا فعلى من يليهم حتى يفرض على هذا التدريج على كل المسلمين شرقا وغرباً- (الدر المختار مع ردالمحتار ٣:٢٤٢ كتاب الجهاد)

شان په عوامو باندې هم په قدر د استطاعت فرض ده (١) او کوم خلق چې د
دې مخالفین اسلام طرفداری کوی د هغوی هم دا حکم دی. (٢) وهوالموفق

## د جهاد افغانستان او د جهاد د امیر مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په موجوده وخت
کې د افغانستان په جهاد کې د حصه اخستلو څه حکم دی، او په جهاد کې د
امارت څه مسئله ده؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** معراج ضلع سوات .. ٤ ربیع الاول ١٤٠١ھ

**الجواب:** موجوده افغان جهاد کوم چې د اهل حق او د افغان کمیونسټ
حکومت ترمینځه جاری دی جهاد شرعی دی (٣) په دې کې حصه اخستونکې
به په غنیمت او شهادت باندې فائز کیږی، چې د جهاد دوران ضرورت راتلو

---

١) قال العلامة وهبة الزحيلي: يفترض الجهاد على القادر عليه فمن لا قدرة له لا جهاد عليه. (الفقه الاسلامی وادلته ٨:٥٨٥١ الباب الرابع الجهاد)

٢) وفی الكاملية: سئلت عن بلدة استولى عليها الكفار وتمكنوا منها فانضم اليهم بعض القبائل والعشائر وصاروا يقاتلون معهم المسلمين وينهبون مالهم وينصحون الكفار ويعينوهم على اذى المسلمين... والظاهر ان حكم هؤلاء حكم اهل دارالحرب فی قتلهم واخذ مالهم لكونهم ردالعد والحرب ومعينون له بانفسهم.
(فتاوىٰ كامليه ٢٥١ كتاب الجنايات)

٣) قال العلامة ابن نجيم: (قوله فرض عين ان هجم العدو) لان المقصود عند ذلك لا يحصل الا باقامة الكل فيفترض على الكل... والمراد هجومه على بلدة معينة من بلاد المسلمين فيجب على جميع اهل تلك البلدة وكذا من يقرب منهم ان لم يكن باهلها كفاية وكذا من يقرب ممن يقرب ان لم يكن ممن يقرب كفاية او تكاسلوا وعصوا وهكذا الى ان يجب على جميع اهل الاسلام شرقاً وغرباً.
(البحر الرائق ٥:٧٢ كتاب السير)

سره مجاهدین یو کس لره امیر جوړولو سره محاربه کوی نو هم دا به کافی وی. (۱) هم دغه شان د علماء کرامو فتوی په دې دور کې د سلاطین او امیرانو د حکم نه مستغنی کونکې ده. وهوالموفق

## په افغان جهاد کې مالی تعاون سره د ذمې د فراغت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د افغانستان د جهاد د فرض عین کیدو په صورت کې چې کوم خلق په سعودیه وغیره کې مزدوری کوی او د مجاهدینو مالی امداد کوی نو آیا په دې امداد سره د هغوی ذمه فارغیږی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مفتی محمد سرور دار العلوم عربیه تل.... ۲۷ جمادی الاولی ۱٤۰۸ھ

**الجواب:** نه د هغوی په ذمه د جهاد فریضه شته، او نه په مالی تعاون کولو سره په هغوی څه ګناه شته. (۲) وهوالموفق

## د مسلمانانو خلاف د کفارو د معاونین حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بعض قبائلی پښتانه په دنیاوی لالچ یا د عقیدې د فساد د وجې نه د روس او کارمل حکومت سره د جوړ او معامله کولو په فکر کې دی.

---

۱) قال الشیخ ظفر احمد العثمانی: وفی الحدیث دلالة علی اشتراط الامیر للجهاد وانه لا یصح بدونه لقوله علیه الصلوٰة والسلام الجهاد واجب علیکم مع کل امیر الخ فاذا لم یکن للمسلمین امام فلا جهاد نعم یجب علی المسلمین ان یلتمسوا لهم امیراً.
(اعلاء السنن ۱۲:۲،۳ کتاب السیر باب فرضیة الجهاد)

۲) وفی اعلاء السنن: لا یکون فرض عین الا علی من استنفرتم الامام وان استنفر جمیع اهل الاسلام وجب علی جمیعهم شرقاً وغرباً... ان الجهاد لیس بواجب عیناً علی جمیع المسلمین ظاهرة بل انما یکون کذلک اذا جاء النفیر من الامام.
(اعلاء السنن ۱۲:۹،۱۰ کتاب السیر باب وجوب الجهاد عینا الخ)

۱: چې مونږ قبائلي به په افغانستان کې د دهريت، د روس د راتلو، قبضه او څه چې په افغانستان کې روس او د کارمل حکومت کوي، په هغې باندې مونږ راضي يو او د دې رضامندۍ به مونږ ښکاره په ريډيو باندې اعلان کوو.
۲: دا چې مونږ به د موجوده روسي غلبې کوم چې په افغانستان باندې قائم ده دا حکومت او د دې د نظريات او دوام او حفاظت دپاره لاس په تلي کې او کفن په سر ګرځوو.
۳: دا چې مونږ مونږ د افغان مجاهدين دپاره د جهاد افغانستان دپاره د تلو راتلو ټولې لارې بندوو.
۴: دا خلق ښکاره د افغانستان جهاد ته جهاد نه وائي، بلکې دې ته د ظلم عظيم نوم ورکوي، او په مسلمانانو کې پرچار کوي چې د دې جنګ نه په ارخ شئ، او دې ته د امريکې او روس جنګ وائي، اوس دې مونږ علماء کرام د داسې ډلې د شرعي حکم نه خبر کړي، آيا د رضا بالکفر کفر د لاندې دا خلق نه راځي؟ آيا د ﴿من كثر سواد قوم فهو منهم﴾ په بنياد باندې ذکر شوې قول او فعل تکثير سواد او دهريت نه دې؟ آيا د افغانستان د جهاد اسلامي نه په ظلم سره تعبير کول او داسې عقيده ساتل کفر نه دې؟ آيا په داسې مردار خلقو باندې به د زنديق يا مرتد حکم لګول صحيح نه وي؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: علماء کرام وانا وزيرستان ... ۲۲ شعبان ۱٤۰۵هـ

**الجواب:** بسم الله الرحمن الرحيم، الحمد لله وسلام على عباده الذين اصطفى اما بعد! پس واضحه دې وي چې د افغانستان موجوده جنګ يقيناً جهاد دې (۱) د يو طرف نه روسيان او د روس مسلح ملګرې جنګيږي، او بل طرف ته اهل اسلام او اهل علم په معمولي امداد خارجي سره جانبازي کوي،

---

۱) وفي الاختيار: الجهاد فرض عين عند النفير العام... واذا هجم العدو وجب على جميع الناس الدفع لانه يصير فرض عين. (الاختيار لتعليل المختار ۱٤۲: ٤ كتاب السير)

که دې بل طرف ته امریکې جنګ کولو نو دې دویم طرف سره به هم د اول طرف په شان د جنګ سامان وي.

او دا دې هم واضح وی چې په اول طرف کې څلور قسم خلق حصه اخلی اول هغه خلق دی کوم دهریان دی او د خالق حقیقی منکر دی، دا خلق بیشکه کافر (١) مباح الدم او مباح الاموال دی. (٢)

دویم هغه خلق دی کوم چې د روس نظام ته حق نظام او د ترقۍ نظام وانی، او د الله پاك نظام ته او د وحی نظام ته د تنزل او زوړ نظام وائی، نو دا خلق د توهین وحی او توهین شریعت د وجې نه مباح الدم دی (٣) او د محاربه د وجې نه مباح الاموال هم دی.

دریم هغه خلق کوم چې په جهری او علانیه طریقې سره د دې مخکې خلقو معاونت او امداد کوی او د مجاهدینو مقابله کوی د هغوی لارې بندوی، هغوی ته ظالم او قطاع الطریق وائی نو دا خلق سره د مسلمانۍ مباح الدم او مباح الاموال دی. كما فى الكاملية ٢٥٠ سئلت عن بلدة استولى عليها الكفار فانضم اليهم بعض القبائل وصاروا يقاتلون معهم المسلمين وينهبون ماهم وينصحون الكفار ويعينوهم على اذى المسلمين فما الحكم فيهم وهذا حالهم؟ فالجواب: انى لم اقف على حكم هؤلاء فى كتب مذهبنا معاشر الحنفية ولكن

---

(١) وفى مجموعة قواعد الفقه: والكفر على اربعة انحاء الاول كفر الانكار وهو ان يكفر بقلبه ولسانه ولا يعتقد الحق ولا يقربه. (مجموعة قواعد الفقه ٤٤٥)

(٢) قال العلامة الحصكفى: لان الكفر مبيح للدم... لان الكفار اصناف خمسة: من ينكر الصانع كالدهرية. (الدرالمختار ٣:٣١٣ باب المرتد) وفى مجمع الانهر (الجهاد) فى الشريعة قتل الكفار ونحوه من ضربهم ونهب اموالهم وهدم معابدهم وكسر اصنامهم وغيرهم (بدأ منا فرض كفاية). (مجمع الانهر ٢:٤٠٧ كتاب السير)

(٣) وفى الهندية: يكفر اذا وصف الله تعالىٰ بما لا يليق به او سخر باسم من اسمائه او بامر من اوامره او انكر وعده ووعيده. (فتاوىٰ هندية ٢:٢٥٨ الباب التاسع فى احكام المرتدين)

وقفت على حكمهم فى كتب بعض السادة المالكية، والظاهر ان حكم هؤلاء حكم اهل الحرب فى قتلهم واخذ اموالهم، واما اولادهم فلا يقتلون ولا يكونون فيئا وانما ابيح قتل البالغين منهم لكونهم ردء لعدو الحرب ومعينون له بانفسهم وحكم الردء اذا لم يقاتل مع العدو حكم المقاتل فاحرى اذا قاتل وكذلك ردء اللصوص والمحاربين عند مالك رحمه الله تعالىٰ والكوفين يقتل بقتلهم ويجب عليه ما يجب عليهم وان كانوا لم يحضروا الفعل وقواعد مذهبنا لا تاباه[1]

انتهى بحذف.

او څلورم هغه خلق دی کوم چې د کفارو سره هم جنګ کوی او پټې طریقې سره د هغه کفارو معاونت هم کوی د هغوی جاسوسی هم کوی او د اهل اسلام د شکست او مغلوبیت په انتظار کې ناست دی نو دا خلق د جومات ضرار د اهل په شان زنادقه دی. كما فى الكاملية ۲۵۱ ومنهم من لجأ للمسلمين وصار يقاتل العدو معهم وهو مع ذلك يعين العدو خفية ويعلمه باحوال عساكر المسلمين ويطلعه على عوراتهم ويتربص بهم الدوائر... وحكم اولئك حكم الزنادقة ان اطلع عليهم قتلوا، وقال صاحب الكاملية وقواعد مذهبنا لا تاباه[2]

انتهى ما فى الكاملية بحذف ما لا تعلق له بالمرام، قلت الجاسوس المسلم لا يقتل عند معاشر الحنفية[3] بخلاف ما اذا صار مقاتلا وردء للكفار.

---

۱) (فتاویٰ کاملیه ۲۵۱ کتاب الجنایات)

۲) (فتاویٰ کاملیه ۲۵۱ کتاب الجنایات)

۳) قال الامام محمد رحمه الله تعالىٰ: واذا وجد المسلمون رجلا ممن يدعى الاسلام عينا للمشركين على المسلمين يكتب اليهم بعوراتهم فاقر بذلک طوعا فانه لا يقتل ولكن الامام يوجعه عقوبة (شرح السير الكبير ۵:۲۰۵۰ باب العين يصيبه المسلمون)

**نوټ**: د مجاهدینو دپاره ضروري ده چې د پوره تحقیق نه بغیر په چا باندې د معاون او د مرتد کیدو حکم جاري نه کړي چې بل محاذ قائم نه شي، او د قومیت جنګ شروع نه شي، کنه نو اصل مقصد او اصل محاربه ته به سخت نقصان ورسیږي. والله اعلم

## د افغان کمیونسټ حکومت د مسلمان معاونین حکم

**سوال**: څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: هغه خلق کوم چې د افغانستان د موجوده حکومت نه وسله او پیسې راوړي او د هغې نه خلقو له ورکوي او خپله ئې هم خوري چې د خلقو زړونه د کمیونسټ حکومت طرف ته مائل شي د دې څه حکم دې؟

۲: هغه خلق کوم چې د افغان موجوده اشتراکي حکومت ته مسلمان وائي او د هغوی داسې تعریفونه کوي چې ساده مسلمانان په هغې باندې دهوکه کوي، د دې څه حکم دې؟

۳: هغه خلق کوم چې د موجود افغان حکومت په کامیابۍ باندې فخر کوي او د خوشحالۍ اظهار کوي او د اسلامي مجاهدین په کامیابۍ باندې د غم اظهار کوي او په دې باندې خفه وي د دې سرې متعلق څه حکم دې؟

۴: کومو خلقو چې د افغان حکومت نه وسله او پیسې راوړې او هغوی سره د ژبې یا جسماني معاونت وکړي شرعا د دې څه حکم دې؟ **بینوا توجروا**

**المستفتي**: جمعیة طلباء حرکت حقاني بیرمل وزیرستان ... ۲ مارچ ۱۹۸۷ء

**الجواب**: رویه این مردمان حرام است از جهت تعاون کفار وزنادقه وبر اهل اسلام واجب است که باین مرد مان ورغم وشادي بائیکاټ کند (۱) ودر

---

(۱) قال الملا علی القاری: قال ابن عبد البر اجمع العلماء علی ان من خاف من مکالمة احد وصلته ما یفسد علیه دینه او یدخل مفسدة فی دنیاه یجوز له مجانبته وبعده... فان هجرة اهل الاهواء والبدع واجبة علی مر الاوقات مالم یظهر منه التوبة والرجوع الی الحق. (مرقاة المفاتیح ۹:۲۶۲ باب ماینهی عنه من التهاجر والتقاطع)

وقت تیقن قتل ایشان نیز جائز است. کما یدل علیه فی الفتاوی الکاملیة ۲٥۱ ومنهم من لجأ للمسلمین وصار یقاتل العدو معهم وهو مع ذلك یعین العدو خفیة ویعلمه بأحوال عساکر المسلمین ویطلعه علی عوراتهم ویتربص بهم الدوائر وقد اطلع لهم علی کتب کتبها فی ذلك الوقت کثیر من مشائخهم المعروفین عندهم بالاجواد یذکرون العدو عهده ویعلمونه ببقائهم علیه وانتظارهم الفرج مع تضعیفهم لجیوش المسلمین وتوهینهم ایاهم وحکم اولئك حکم الزنادقة ان اطلع علیهم قتلوا والا فأمرهم الی الله تعالیٰ(۱). وهو الموفق

## د کمیونسټ افغان حکومت حمایت کونکو او مخالفت کونکو مسلمانانو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱: په افغانستان کې موجوده مسلمان کوم چې د موجود کمیونسټ حکومت دفاع کوی مسلمانان دی یا نه؟

۲: کوم خلق چې نه د موجوده کمیونسټ حکومت افغانستان سره تعاون کوی او نه د مجاهدین سره، بلکې خپل کاروبار کوی د هغوی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سردار... دار العلوم عربیه تل... ۲۸ جمادی الاولی ۱٤۰۸ء

**الجواب:** ۱: دا باغی مسلمانان دی. (۲)

---

۱) (فتاویٰ کاملیة ۲٥۱ کتاب الجنایات)

۲) وفی الهندیة: اهل البغی کل فرقة لهم منعة یتغلبون ویجتمعون ویقاتلون اهل العدل بتأویل ویقولون الحق معنا ویدعون الولایة... یحل للامام العدل ان یقاتلهم وان لم یبدؤا بقتاله وهذا مذهبنا... ولا تسبی نساء هم وذراریهم ولا یملک علیهم اموالهم. (فتاویٰ هندیة ۲:۲۸۳ الباب العاشر فی البغاة)

۲: دا د پاکستانی مسلمانانو په شان دی (۱) وهوالموفق

## د جهاد د پاره استطاعت او قدرت شرط دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دي مسئلي په باره کي چي بعض خلق وائی چي تبليغی جماعت والا د حد نه زيات شوي دی او يو لويه مجمع او طاقت جوړ شوي دي، لهذا اوس په هغوی باندي د مروجه تبليغ په ځای مسلح جهاد فرض شوي دي، آيا د هغوی د تبليغی جماعت والو متعلق داسي خبره کول څنګه دی؟ بينواتوجروا

المستفتی: عبدالعزيز .... لوتهيه پيښور

**الجواب:** دجهاد د فرضيت دپاره چي کوم شرطونه دی(۲) هغه مسلمانان اهل اقتدار او حکومت کي موندلي شی، په عوام الناس کي هغه شرائط موجود نه دی، او د تبليغی جماعت والو اکثريت بيشکه عوام الناس دی لهذا په هغوی باندي دا فريضه نه عائد کيږی لما فی الهندية: واما شرائطه فشيئان احدهما امتناع العدو عن قبول ما دعی اليه من الدين الحق وعدم الامان والعهد بيننا وبينهم والثانی ان يرجوا الشوكة واهل المسلمين فی القتال فانه لايحل له القتال لما فيه من القاء نفسه فی التهلكة (عالمكيرية ۲: ۱۸۸)(۳) وهوالموفق

---

۱) قال الشيخ محمد كامل الطرابلسی: ومنه تعلم ان من يدخل تحت جوارهم وامانهم من غير اعانة لهم بنفسه ولا بماله ولا يكون لهم عينا ولا ردءا دونهم لا يباح قتله. (فتاوی كاملية ۲۵۱ كتاب الجنايات)

۲) قال العلامة التمرتاشی: ولا بد لفرضيته من قيد آخر وهو الاستطاعة، وقال العلامة الحصكفی: وفی السراج وشرط لوجوبه القدرة علی السلاح لا امن الطريق فان علم انه اذا حارب قتل وان لم يحارب اسر لم يلزمه القتال. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۲۲۱ مطلب طاعة الوالدين كتاب الجهاد)

۳) (فتاوی عالمگيرية ۲: ۱۸۸ كتاب السير الباب الاول فی تفسيره الخ)

## د فقهاء او علماء د پاره په جهاد کې د شرکت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې علماء وفقهاء او دینی مدرسین حضراتو دپاره جهادته د تلو او شرکت څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: فضل قادر کوڼ دره افغانستان

**الجواب:** چونکې په جهاد سره اعلاء کلمة الله مقصود دې او دینی تعلیم او تعلم او په درس او تدریس سره ثبات دین او قیام دین مقصود دې په دې وجه د فقیه او عالم دپاره فرض عین نه کیدو په صورت کې جهاد ته تلو سره د دین د ضائع کیدو خطره ده، لهذا د علماء فقهاء دپاره د جهاد کې تلل مناسب نه دی، وفی الدرالمختار ۳:۲۲۱ وعالم لیس فی البلدة افقه منه فلیس له الغزو خوف ضیاعهم سراجیه ولا یخفی ان المقید یفید غیره بالاولیٰ وفرض عین ان هجم العدو فیخرج الکل ولوبلا اذن انتهیٰ(۱) وکذافی الهندیة ۲:۱۹۱ فلیراجع(۲). وهوالموفق

## جهاد افغانستان او په هغې کې د قاضیانو او مفتیانو دپاره د حصې اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په افغانستان باندې یو کال مخکې روسی فوج مداخلت کولو سره کمیونستو قبضه کړې ده، د دې په مقابله کې د افغانستان مجاهدینو جهاد شروع کړو، جنگی وسله په هر مقدار کې د موجودیدو باوجود د دشمن په مقابله کې کمه ده نو آیا

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۲۲۱ کتاب الجهاد ، مطلب طاعة الوالدین فرض عین)

۲) وفی الهندیة: عالم لیس فی البلدة احد افقه منه لیس له ان یغزو لما یدخل علیهم من الضیاعة کذافی السراجیة.
(فتاوی عالمگیریة ۲:۱۹۰ کتاب السیر الباب الاول فی تفسیره)

جهاد د دنیا د هرې حصې په مسلمانانو باندې فرض عین دې یانه؟ او آیا په اهل پاکستان باندې فرض عین دې یا فرض کفایه؟

د فرض عین کیدو په صورت کې به علماء خپل مخصوص مشاغل افتاء او تدریس وغیره پرېږدي؟ او حال دا چې د بعض علماء کرامو دا خیال دې په علماء کرامو باندې په یو وخت کې هم جهاد نه فرض عین کیږي؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي: ارشاد محمد مدرسه جامعه قاسمیة فیصل آباد ۸ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ**

**الجواب:** په صورة مسئوله کې نفیر عام متحقق شوې دې او جهاد فرض عین دې، چونکې د افغانستان مسلمانان د مدافعت نه عاجز دی، لهذا نزدې اهل اسلام (پاکستان، ایران وغیره) باندې دا مدافعه فرض ده، خو په دې شرط چې د غالب کیدو امید وی.

پس اول په اهل اسلام باندې ضروری ده چې ترېننګ وکړی او د جنګ آلات برابر کړی چې خپل نفس لره په هلاکت کې د اچولو نه بچ شی.

ثانیاً د مقابلې دپاره دې میدان جنګ ته لاړ شی او چونکې د جهاد نه مقصود اعلاء دین او تقویت دین دې، لهذا د قاضیانو، مفتیانو وغیرهم متعلقه خدمت پرېښودلو سره د جنګ میدان ته تلل په حقیقت کې دین ته نقصان رسول دی (**مـاخوذازهندیة ۲/۲۱۱ تا ۲۱۷**)(۱) **وهوالموفق**

---

۱) وفي الهندية: الجهاد فرض على كل حال غير انه قبل النفير فرض كفاية وبعد النفير فرض عين وهو الصحيح... ثم بعد مجئ النفير العام لا يفترض الجهاد على جميع اهل الاسلام شرقاً وغرباً فرض عين وان بلغهم النفير وانما يفرض فرض عين على من كان يقرب من العدو... فاذا احتيج اليهم بان عجز من كان يقرب من العدو عن المقاومة مع العدو او تكاسلوا ولم يجاهدوا فانه يفترض على من يليهم فرض عين ثم وثم الى ان يفرض على جميع اهل الارض شرقاً وغرباً على هذا الترتيب... واما شرط اباحته... ان يرجوا الشوكة والقوة لاهل الاسلام باجتهاده او باجتهاد من يعتقد فى اجتهاده ورأيه وان كان لا يرجوا القوة والشوكة للمسلمين فى القتال فانه لا يحل له... [بقيه حاشيه برصفحه آئنده

## د طلباء کرامو د افغانستان جهاد ته د تلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې نن صبا د افغانستان جهاد په زور او شور سره جاری دې، آیا د پاکستان په طلباء کرامو باندې دا جهاد فرض عین دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** نور محمد کربوغه شریف... ۲۷ صفر المظفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا جهاد په اهل اقتدار باندې فرض دې نه په اهل علم باندې (۱) د اهل علم جهاد ته تلل په ظاهر کې اعلاء کلمة الله دې خو په حقیقت کې افناء کلمة الله دې. (۲) او نتائج د فتح د ظهور پاکستان په شان ښکاره کیږی

وهوالموفق

## پاکستانی طالبانو لره په جهاد افغانستان کې د حصه اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې افغان جهاد په پاکستانی طالبانو باندې فرض دې یا نه؟ او علم دین حاصلول غوره دی که

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] القتال لما فیه من القاء نفسه فی التهلکة... عالم لیس فی البلدة احد افقه منه لیس له ان یغزو لما یدخل علیهم من الضیاعة۔

(فتاویٰ عالمگیریة ۱۸۸،۱۹۰:۲ کتاب السیر، الباب الاول)

۱) وفی الفقه الاسلام وادلته: امر الجهاد موکول الی الامام واجتهاده ویلزم الرعیة طاعته فیما یراه من ذلک۔ (الفقه الاسلامی وادلته ۵۸۵۲:۸ الباب الرابع الجهاد وتوابعه، الفصل الاول حکم الجهاد وقواعده)

۲) وفی تفسیر قرطبی: عن علی الازدی قال اردت الجهاد فقال لی ابن عباس الا ادلک علی ما هو خیر لک من الجهاد تأتی مسجداً فتقرأ فیه القرآن وتعلم فیه الفقه۔

(الجامع لاحکام القرآن للقرطبی ۲۶۹:۸ سورة التوبة آیت: ۱۲۲)

وقال العلامة الحصکفی: وعالم لیس فی البلدة افقه منه فلیس له الغزو خوف ضیاعهم۔ (الدرالمختار ۲۴۲:۳ کتاب الجهاد قبیل مطلب اذا علم انه یقتل یجوز له الخ)

جهاد کول؟ او د مور پلار نه د اجازت اخستلو او نه اخستلو حکم څه دي؟ بينواتوجروا

المستفتي: عبدالعزيز بلوچستاني... ١٩ جمادی الثاني ١٤٠٤ﻫ

**الجواب:** د طلباء دين دپاره د علم دين حصول اهم دي په نسبت د هغه مفروض جهاد څکه چې اعلاء د کلمة الله په هغې کې اتم ده په نسبت د افغانستان د اسلامي ستيټ جوړيدو. (١)

**نوټ:** موجوده جهاد په اهل اقتدار باندې فرض عين دي. (٢) نه په غير مسلح اهل علم باندې. (٣) والله اعلم

## پاکستاني عوام لره په جهاد افغانستان کې د حصه اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې پاکستاني حضرات د افغانستان د مجاهدين سره يو ځای کيدو باندې جهاد کولې شي يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتي: امام مسجد شيخ الحديث صاحب... ٢٥ جمادی الاول ١٤٠١ﻫ

---

١) قال العلامة القرطبي: عن علي الازدي قال اردت الجهاد فقال لي ابن عباس الا ادلک علی ماهو خيرلک من الجهاد تاتي مسجداً فتقرأ فيه القرآن وتعلم فيه الفقه.
(الجامع لاحکام القرآن للقرطبي ٨:٢٦٩ سورة التوبة آيت: ١٢٢)

٢) وفي الفقه الاسلامي وادلته: امر الجهاد موکول الی الامام واجتهاده ويلزم الرعية طاعته فيما يراه من ذلک. (الفقه الاسلامي وادلته ٨:٥٨٥٢ الباب الرابع الجهاد وتوابعه، الفصل الاول حکم الجهاد وقواعده)

٣) وفي الهندية: واما شرط اباحته... ان يرجو الشوکة والقوة والشوکة للمسلمين في القتال فانه لا يحل له القتال لما فيه من القاء نفسه في التهلکة... عالم ليس في البلدة احد افقه منه ليس له ان يغزو لما يدخل عليهم من الضياعة.
(فتاوی عالمگيرية ٢:١٩٠ کتاب السير الباب الاول)

**الجواب:** جهاد عبادت دي (١) او ټول اهل اسلام په شان د يو بدن دي او ټول ښهرونه په شان د يو ښهر دي (٢) پس په دې موجوده جهاد کې د يو مسلمان دپاره (د استطاعت مطابق) دحصه نه اخستلو هيڅ عذر نشته. (٣) وهوالموفق

## طالب علم په چهټيانو کې د جهاد دپاره تلې شي

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې طالب علم په چهټيانو کې د جهاد دپاره تلې شي؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي:** امام مسجد شيخ الحديث صاحب ... ٢٥ جمادی الاول ١٤٠١هـ

**الجواب:** طالب علم په چهټيانو کې د جهاد دپاره تلې شي. (٤) **وهوالموفق**

---

١) قال العلامة ابن نجيم: واما الجهاد فمن اعظم العبادات۔
(الاشباه والنظائر ٢٣ القاعدة الاولى لا ثواب الا بالنية)

٢) عن النعمان قال سمعت رسول الله ﷺ يقول مثل المؤمنين فی توادهم وتراحمهم كمثل جسد واحد اذا اشتكى الرأس تداعى له سائره بالسهر والحمى۔
(مسند الامام الاعظم ٢١٥ كتاب الادب)

٣) قال العلامة ظفر احمد العثماني: لا يكون فرض عين الا على من استنفرهم الامام، وان استنفر جميع اهل الاسلام وجب على جميعهم شرقاً وغرباً۔
(اعلاء السنن ٩: ٢ كتاب السير باب وجوب الجهاد)

٤) قال العلامة الحصكفي: وعالم ليس في البلدة افقه منه فليس له الغز وخوف ضياعهم۔

قال العلامة ابن عابدين: (قوله فليس له الغزو الخ) لما كان المتن صادقا بجواز خروجه زاد قوله فليس الخ ليفيد انه لا يخرج، قلت وظاهر التعليل بخوف ضياعهم جواز خروجه لو كان فی البلدة من يساويه۔ (ردالمحتار مع الدرالمختار ٣: ٢٤٢ كتاب الجهاد)

## افغان جهاد او طالب علم لره په هغې کې د حصه اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جهاد افغانستان د فرضیت او عدم فرضیت څه حکم دې؟ او آیا دا د روس او امریکې جنګ دې؟ که یو سړې جهاد ترک کړی یعنی افغانستان ته نۀ ځی بلکې د دین علم حاصلوی نو ګناهګار به وی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد امین عرف دوست مولوی صاحب متعلم حقانیه.. ٤ ربیع الاول ١٤٠٥ھ

**الجواب:** دا معهود جهادی معرکه ده، د کمیونستو او مسلمانانو ترمینځه جنګ دې.(١) یو طرف ته د کمیونستو وسله د مسلمانانو خلاف استعمالیږی او بل طرف ته د کفار وغیر کفار نه حاصل شوې وسله د کمیونستو خلاف استعمالیږی، د دې دپاره د علم دین تعلیم پریښودل په ظاهر کې اعلاء الدین دې خو په حقیقت کې اهدام الدین دې فافهم(٢) **وهوالموفق**

## بغیر د مور پلار د اجازت نه د جهاد او علمی سفر د پاره د وتلو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ١: د یو سړی مور پلار، وروڼه او خپلوان موجود دی آیا د دې سړی دپاره بغیر د مور پلار د اجازت نه د علم حدیث او تفسیر دپاره تلل پکار دی؟

٢: یو سړې د جهاد دپاره بغیر د مور پلار د اجازت نه تلې شی. **بینواتوجروا**

**المستفتی:** محمد یار بلوچستانی متعلم حقانیه ... ٢٣ ذی القعده ١٤٠٢ھ

---

١) فی مجمع الانهر: (فان هجم) ای غلب (العدو علی بلد من بلد الاسلام او ناحیة من نواحیها ففرض عین. (مجمع الانهر ٢:٤٠٨ کتاب السیر والجهاد)

٢) وفی الفقه الاسلامی وادلته: امر الجهاد موکول الی الامام واجتهاده ویلزم الرعیة طاعته فیما یراه من ذلک. (الفقه الاسلامی وادلته ٨:٥٨٥٢ الباب الرابع الجهاد وتوابعه، الفصل الاول حکم الجهاد وقواعده)

**الجواب:** که د دې سړي مور پلار خدمت ته محتاج نه وی نو د دې سړي دپاره د حصول علم سفر کول جائز دی. (۱) او که جهاد فرض عین نه وی نو بیا د جهاد دپاره تلل (خدمت ته د محتاجۍ په صورت کې به) ناجائز وی (۲) کما فی الهندیة ٥: ٤٠١ وقال محمد فی السیر الکبیر اذا اراد الرجل ان یسافر الی غیر الجهاد لتجارة اوحج او عمرة وکره ذلك ابواه فان کان یخاف الضیعة علیهما بان کانا معسرین ونفقتهما علیه ومالہ لایفی بالزاد والراحلة ونفقتهما فانه لایخرج بغیر اذنهما... وان کان لایخاف الضیعة علیهما وان کان سفرا لایخاف علی الولد الهلاك فیه کان له ان یخرج بغیر اذنهما... الی ان قال وکذلك الجواب فیما اذا خرج للنفقة الی بلدة اخری (۳). وهو الموفق

## رونو سره د مشورې کولو نه بغیر د جهاد دپاره د تلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مور پلار د جهاد دپاره اجازت راکوی خو هغوی وائی چې د ورونو سره مشوره وکړه، نو په دې صورت کې د ورونو سره د مشورې کولو نه بغیر د جهاد دپاره تلل جائز دی یا ناجائز؟ بینوا توجروا

المستفتی: امام مسجد شیخ الحدیث صاحب ... ۲۵ مئی ۱۴۰۱ھ

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: وله الخروج لطلب العلم بلا اذن والدین (درمختار) وقال العلامة ابن عابدین: (قوله وله الخروج الخ) ای ان لم یخف علی والدیه الضیعة ان کانا موسرین ولم تکن نفقتهما علیه. (ردالمحتار مع الدرالمختار ٥:٢٨٩ کتاب الحظر والاباحة، فصل فی البیع)

(۲) قال الامام محمد رحمه الله تعالی: فاذا اراد الخروج الی الجهاد وله ابوان فلیس ینبغی له ان یخرج حتی یستاذنهما اذا لم یقع النفیر عاما.
(شرح السیر الکبیر ١:١٩١ الجهاد ما یسع منه ومالا یسع)

(۳) (فتاوی عالمگیریة ٥:٣٦٥ الباب السادس والعشرون فی الرجل یخرج الی السفر)

**الجواب:** د فرض عين نه کيدو په صورت کې مشوره ضروري ده. (۱)

وهوالموفق

## د مور پلار د اجازت او د مشر ورور يا استاذ

## د عدم اجازت په صورت کې د جهاد دپاره تلل

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړى ته مور پلار د جهاد اجازت ورکړى. خو مشر ورور يا استاذ ورته اجازت نه ورکوى نو آيا د جهاد دپاره تلې شي؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي: امام مسجد شيخ الحديث صاحب ... ۲۵ مئ ۱۴۰۱ھ**

**الجواب:** که دا سړې عالم، مدرس او متعلم نه وى نو د جهاد دپاره تلې شي.

(۲) **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن نجيم: وفى الذخيرة ان من سوى الاصول اذا كرهوا خروجه للجهاد فان كان يخاف عليهم الضياع فانه لا يخرج بغير اذنهم والا يخرج وكذا امرأته.

(البحر الرائق ۵:۷۲ كتاب السير)

۲) قال العلامة ابن نجيم: وفى الذخيرة ان من سوى الاصول اذا كرهوا خروجه للجهاد فان كان يخاف عليهم الضياع فانه لا يخرج بغير اذنهم والا يخرج ... والعالم الذى ليس فى البلدة احد افقه منه ليس له ان يغزو لما يدخل عليهم من الضياع.

(البحر الرائق ۵:۷۲ كتاب السير)

بسم الله الرحمٰن الرّحیم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوٰی فریدیه

(شپږم جلد)

# باب الغنائم وقسمتها

.........

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاوى ديوبند پاكستان

المعروف به

# فتاوى فريديه

# باب الغنائم وقسمتها

عن ابى اسامة عن النبى صلى الله عليه وسلم:

انه نهى ان تباع السهام

حتى تقسم.

(رواه الدارمى)

........

# باب الغنائم وقسمتها

## مال غنیمت د ټولو مجاهدینو حق دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د جهاد امیر د جهاد دپاره مجاهدین ولیږل او په مختلفو ګروپونو کې تقسیم کولو سره د هر یو په ذمه جدا جدا کار اوسپارلو، اوس سوال دا دې چې آیا صرف هغه ډله کوم چې د جهاد دپاره د جهاد امیر منتخب کړې دې هغه به په مال غنیمت کې شریکیږي او که هغه ډله هم کوم چې امیر د جنګ سره متعلقه په نورو امورو باندې فائز کړې وو

بله دا چې آیا مال غنیمت به د جهاد د امیر په رائې باندې تقسیمیږي کوم چې امیر کبیر دې او په افغانستان کې دې او که دلته به د پاکستان د امیر جهاد په مرضئ سره تقسیمیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوي غلام احمد پلوسئ پیښور

**الجواب:** اصولي طور دا د غنیمت مالونه د ټولو هغه خلقو حق دې کوم چې دار الحرب (افغانستان) لره د جنګ سره متعلقه امور پوره کولو دپاره متجاوز شوې وی، که هغوی د ایران د طرف نه افغانستان ته داخل شوې وی یا د پاکستان وغیره د طرفونو نه. یدل علیه مافی الهدایة ۲:۵٦۷ والردء والمقاتل فی العسکر سواء لاستواءهم فی السبب وهو المجاورة او شهود الوقعة علی ما عرف وکذلك اذا لم یقاتل لمرض اولغیره لما ذکرنا واذا لحقهم العدو فی دار الحرب قبل ان یخرجوا الغنیمة الی دار الاسلام شارکوهم فیها (۱). وهو الموفق

---

۱) (الهدایة ۲:۵٦۸ کتاب السیر باب الغنائم وقسمتها)

## مال غنیمت د ټولو مجاهدینو ترمینځه مشترک وی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو عسکر د دار الحرب نه مجاهدین لره فناء ته راوستل او دې مجاهدینو سره د بل لښکر یو مجاهد موجود وو، او د دې عسکر سره مشین هم وو، نو آیا د دې اول حزب د مجاهدینو سره (کوم چې په دې ځای موجود وو) حصه جوړیږی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: بسم الله حقانی ... متعلم حقانیه هذا ..... ۱۰ فروری ۱۹۸۸ء

**الجواب:** اگر این مشین کن غنیمت باشد، پس در مابین تمام مجاهدین داخلی و خارجی مشترکه باشد (۱) البته مصالحت امیران بر فرقه خاص مجاهدین ممنوع نیست. (۲) وهوالموفق

---

۱) وفی الهندیة: الردء والمقاتل فی العسکر سواء کذا فی الهدایة... والاصل ان من دخل للقتال استحق السهم قاتل قاتل اولم یقاتل.
(فتاویٰ هندیة ۲:۲۰۸ الباب الرابع فی الغنائم، الفصل الاول)

۲) *...وفی الهندیة: قال محمد رحمه الله تعالیٰ: ولا یستحق القاتل سلب المقتول بنفس القتل مالم ینفل الامام قبل القتل فیقول من قتل قتیلا فله سلبه وهذا مذهب علماء نا رحمهم الله.
(فتاویٰ هندیة ۲:۲۱۷ کتاب السیر، الفصل الثالث فی التنفیل)

*...وفی اعلاء السنن: وقال ابن عباس ایضا فی روایة اخری عنه هی محکمة وللامام ان ینفل من الغنائم ماشاء لبلاء ابلاه وان یرضح لمن یقاتل اذا کان فیه صلاح للمسلمین. (اعلاء السنن ۱۲:۲۶۳ کتاب السیر باب التنفیل)

*...وقال العلامة الدکتور وهبة الزحیلی: فتخصیص بعض المجاهدین به موکول الی اجتهاد الامام.
(الفقه الاسلامی وادلته ۸:۵۸۹۳ حکم الانفال والغنیمة)

## مال غنیمت د مصلحت مطابق په یو خاص ګروپ باندې د تقسیمولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د لښکر امیر خپل لښکر په څلورو ډلو (الف، ب، ج، د) کې تقسیم کړو، هغوی ټولو د قلعه محاصره وکړه، څلور واړه ډلې په څلورو واړو طرفونو کې ناست وو او جنګ ئې کولو، په هغوی کې الف ګروپ قلعه ته نژدې وو په دې وجه هغه مال غنیمت واخستلو، باقی چونکې لرې لرې وو په دې وجه هغوی راو نه رسیدل، اوس سوال دا دې چې آیا د ج، ب او د ګروپونو په دې کې حصه جوړیږی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی میر عالم وزیرستان... ٢٤ مارچ ١٩٨٤ء

**الجواب:** مال غنیمت د ټولو مجاهدینو ترمینځه مشترک وی، که د هر یو ګروپ نه وی. (١) خو د مصالحت مطابق او په اتفاق د امیرانو په یو خاص ګروپ باندې تقسیمول جائز دی (٢) وهوالموفق

## د جهاد مالونه د مجاهدینو د امیر په رائې باندې په هر کار کې خرچ کیدلې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کومه وسله د

---

١) قال العلامة ابن الهمام: (قوله الردء) ای العون (والمقاتل سواء) فی الغنيمة لا يتميز واحد منهم على آخر بشئ وهذا بلا خلاف لاستواء الكل فی سبب الاستحقاق. (فتح القدير ٥:٢٢٥ باب الغنائم وقسمتها)

٢) وفی الاختيار لتعليل المختار: (ويجوز التنفيل قبل احراز الغنيمة)... ولا ينبغی للامام ان ينفل بجميع المأخوذ لان الغنيمة حق العسكر... فان فعله مع سرية جاز لجواز ان تكون المصلحة فی ذلک. (الاختيار لتعليل المختار ٤:١٦٢ كتاب السير، فصل احكام اخماس الغنائم)

وقال الدكتور وهبة الزحيلی: فتخصيص بعض المجاهدين به موكول الی اجتهاد الامام. (الفقه الاسلامی وادلته ٨:٥٨٩٣ حكم الانفال والغنيمة)

حکومت د طرف نه د مجاهدینو تنظیمونو ته ورکولې شی. آیا د هغې خرڅول او په هغې سره نور قسم ضروریات پوره کول جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: سیف الرحمٰن میران شاه شمالی وزیرستان ... ۲۷ دسمبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** این اسلحه وغیرها زیر اختیار امیران اند که حسب صوابدید ایشان بر ضروریات مهاجرین صرف کرده شوند مثل خورد ونوش لباس معالجه تعلیم وغیره، پس بوقت حاجت صرف از مد اسلحه بر نفقه واز مد نفقه بر اسلحه حسب صوابدید امیران جائز است. (۱) وهوالموفق

## د فتح نه مخکې د مال غنیمت د تقسیمولو مسئله

**سوال:** چې میفرمایند علماء دین درین مسئله که افغانستان در صورت دار حرب بودن غنائمی که بدست مجاهدین مے آید تقسیم در آن جا در نیست، پس درباره آن چې معامله کرده شود؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالغفور مهاجر فاضل حقانیه ... ۳ ربیع الاول

**الجواب:** تقسیم غنائم ضروری است (۲) البته قبل از فتح اهل اسلام

---

۱) یدل علیه ما فی الصحیح البخاری: وقال طاؤس ومجاهد اذا دفع الیک شیئ تخرج به فی سبیل الله فاصنع به ماشئت وضعه عند اهلک ... قال عمر رضی الله تعالیٰ عنه حملت علی فرس فی سبیل الله فرأیته یباع فسألت النبی ﷺ آشتریه؟ فقال لا تشتره، وقال الحافظ ابن حجر رحمه الله تعالیٰ: وجه دخول قصة فرس عمر من جهة ان النبی ﷺ اقر المحمول علیه علی التصرف فیه بالبیع وغیره فدل علی تقویة ما ذهب الیه طاؤس من ان للآخذ التصرف فی المأخوذ۔ (فتح الباری: ۶:۱۲۴ کتاب الجهاد: باب الجعائل والحملان فی السبیل)

۲) قال العلامة الکاسانی: اذا دخل جماعة لهم منعة دار الحرب فاخذوا اموالاً منهم فانها تقسم قسمة الغنائم بالاجماع۔ (بدائع الصنائع ۶:۹۰ کتاب السیر، بیان حکم الغنائم)

وشکست شوعین تقسیم کردن یا خواستن مخالف از مذهب است.(۱) وضرر رسان با محاربه است. وهوالموفق

## مال غنیمت به د حکومت وی که د فوج؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په موجوده دور کې که اسلامی فوج په کفارو باندې غالب شی او مال غنیمت د هغوی په لاس راشی نو هغه به د حکومت وی او که په فوجیانو کې به تقسیم کولې شی د سهم له وسهمین لفرسه مطابق؟ حال دا چې فوجیانو ته سورلی، اسلحه وغیره حکومت ورکوی؟ بینواتوجروا

المستفتی: حوالدار مرجان تل سکاؤټس ... یکم رمضان المبارک

**الجواب:** دا فوجی قوانین هم د نورو قوانین په شان غیر اسلامی دی. (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن نجیم: حرم قسمة الغنائم فی دارالحرب لغیر ایداع لنهیه ﷺ عن بیع الغنائم فی دارالحرب والقسمة بیع معنىً فتدخل تحته... والاصل عندنا انه لا ملک قبل الاحراز بدار الاسلام فتحرم القسمة والبیع قبله.

(البحر الرائق ۵:۸۳،۸۴ باب الغنائم وقسمتها)

۲) شرعاً د مال غنیمت تقسیمولو طریقه داده چې دا پنځه حصې کړی، پنځمه حصه په بیت المال کې داخله کړی او باقی څلور حصې په هغه فوج تقسیم کړی چاچې د جنګ په دوران کې په دې مال غنیمت باندې قبضه کړې ده. او دا طریقه چې د غنیمت ټول مال به د حکومت وی یا به ئې په بیت المال کې داخلوی د مصلحت نه بغیر دا طریقه غیرشرعی او غیراسلامی ده. اود سنت نبوی ﷺ خلاف ده. علامه کاسانی فرمائی. اذا دخل جماعة لهم منفعة دارالحرب فاخذوا اموالاً منهم فانها تقسم قسمة الغنائم بالاجماع سواء دخلوا باذن الامام او بغیر اذنه. (بدائع الصنائع ۴:۹۰ کتاب السیر بیان حکم الغنائم) او صاحب د هدایې په دې باندې تصریح کړې ده : قال العلامة المرغینانی : ویقسم الامام الغنیمة فیخرج خمسها لقوله تعالیٰ: فان لله خمسه ولرسوله، استثنی الخمس ویقسم اربعة اخماس بین الغانمین لان النبی ﷺ قسمها بین الغانمین (الهدایة ۲:۲۶۷ باب الغنائم وقسمتها)

...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د مجاهدینو د پاره جمع شوې چنده د هغوی په اهل و عیال باندې د خرج کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی سره د مجاهدینو دپاره څه پیسې د خلقو نه راجمع کړې شوې آیا دا سړې دا رقم د مجاهدین په اهل وعیال باندې خرچ کولې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** طالب علم ...۸ جمادی الثانی ۱٤۰۱ه.

**الجواب:** د مجاهدینو په اهل وعیال باندې خرچ او په مجاهدین باندې د جنګ په میدان کې خرج یو شان دې یدل علیه ماقال طاؤس ومجاهد اذا دفع الیك شیئ تخرج به فی سبیل الله فاصنع ما شئت وضعه عند اهلك (بخاری شریف ۱: ٤۱۷)(۱) ولحدیث من خلف غازیاً فی سبیل الله بخیر فقد غزاء (بخاری ۱: ۳۹۹)(۲)۔ وهوالموفق

## د خائنه یو مجاهد حربی لره قتلولو سره د هغه نه وسله اخستل د هغه حق دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو مجاهد روسی

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] البته د مصلحت په خینې صورتونو کې په دې کې کمې زیاتې یا په خاص قسم مجاهدینو کې تقسیمول چه دا په مصلحت سره او په اتفاق د حاکمانو وی دا ددې نه مستثنی دی.قال الشیخ ظفر احمد التهانوی : وقال ابن عباس ایضاً فی روایة اخری عنه هی محکمة وللامام ان ینفل من الغنائم ماشاء لبلاء ابلاه وان یوضع لمن یقاتل اذا کان فیه صلاح للمسلمین۔

(اعلاء السنن ۱۲:۲٦۳ کتاب السیر باب التنفیل) ...ازمرتب

۱) (الصحیح البخاری ۲:٤۱۷ باب الجعائل والحملان فی السبیل ، کتاب الجهاد)

۲) عن زید بن خالد ان رسول الله ﷺ قال من جهز غازیا فی سبیل الله فقد غزا ومن خلف غازیا فی سبیل الله بخیر فقد غزا۔

(الصحیح البخاری ۱:۳۹۸،۳۹۹ باب فضل من جهز غازیا او خلفه بخیر ، کتاب الجهاد)

حربی قتل کړو او د هغه نه ئې مشین اخستلې دې او پاکستان ته راغلې دې، اوس بعض مجاهدینو په دې مجاهد باندې دعوی کړې ده چې تاسو زمونږ سره وعده کړې وه چې تاسو ته کوم مال غنیمت حاصل شی په هغې کې به زمونږ حصه وی او مدعی علیه انکار کوی او هغه خلق دې وخت کې د مجاهد سره نه وو؟ بینوا توجروا

المستفتی: گل دار افغانی اضاخیل کیمپ پشاور ... ۱۲ جون ۱٤۰۱ھ

**الجواب:** د حدیث په بنا ﴿من قتل قتیلا فله سلبه﴾ رواه الترمذی (۱) وابوداؤد(۲) وغیرهما. دا مشین صرف د هغه قاتل حق دې، په دې کې د غیر قاتلین حق نشته که د مقاتلې نه مخکې هغه د شرکت فیصله کړې وی او که نه وی، دا اسلامی او کتابی شرکت نه دې. (۳) وهوالموفق

## په دار الحرب کې د مسلمان سوداګر د مال تجارت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بعض مسلمان سوداګر په دار الحرب کې سامان تجارت وغیره راوړی او هلته اخستل خرڅول کولو سره کافی فائده او نفع حاصلوی، که مجاهدین په دې سامان تجارت باندې قبضه وکړی نو آیا دا سامان تجارت کوم چې د مسلمان نه په

---

۱) عن ابی قتادة قال قال رسول الله ﷺ من قتل قتیلا له علیه بینة فله سلبه. (جامع الترمذی ۱: ٤۱۸ کتاب السیر، باب ماجاء فی من قتل قتیلا فله سلبه)

۲) (ابوداؤد ۲: ۳۷٦ باب فی النفل)

۳) وفی الاختیار: اعلم ان الداخل دار لا یخلو اما ان کان لهم منعة اولا... وان لم یکن لهم منعة فان کان بغیر اذن الامام لا یخمس لانه لیس بغنیمة... واذا لم یکن غنیمة فما اخذه کل واحد فهو له خاصة لانه مأخوذ علی اصل الاباحة کالحشیش والصید لما مر فی الشرکة (الاختیار لتعلیل المختار ٤: ۱٦۱ فصل احکام اخماس الغنائم)

دار الحرب کې اخلی دا به غنیمت شمارلې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد نعیم اضاخیل کیمپ پېښور

**الجواب:** د مسلمان سره نه ښائی چې دار الحرب ته د تجارت سامان برابر کړی په دې سره به اهل حرب ته تقویت حاصلیږی کوم چې یو قسم اعانت دې، خو دا مال او سامان تجارت مال غنیمت نه شمارلې کیږی، مال غنیمت هغه وی کوم چې د کفارو نه د طاقت په زور واخستلې شی. وفی رد المختار ۱۳۶/۴ الغنیمة اسم لما یؤخذ من اموال الکفرة بقوة الغزاة وقهر الکفرة (١) ومثله فی البدائع ۷/۱۱۷ (٢) وهوالموفق

## په دار الحرب کې د مسلمان سوداګرو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو کافر په اسلامی ملك باندې حمله وکړی او مسلمان د هغوی خلاف جهاد شروع کړی، بیا د جنګ دوران دا کافر ملك د نورو ملکونو نه مختلف مالونه او څیزونه راوغواړی، دا مالونه په دوه قسمه وی یو قسم د دې کافر حکومت ملك وی او دویم قسم د عام مسلمان سوداګرو وی کوم چې په دې کافر حکومت کې دننه په مسلمانانو او کافرو باندې خرڅوی نو آیا د مجاهدینو دپاره دا جائز ده چې د مسلمانانو د دې مالونو نه مال غنیمت جوړ کړی بینواتوجروا

المستفتی: شیر اکبر صادق جامعه اسلامیه مدینة المنورة

کلیة الدعوة واصول الدین ... ۱۲ اګست ۱۹۸٤ء

**الجواب:** د دې څیزونو په کفارو باندې خرڅول چې په هغې سره اهل حرب ته

---

١) (ردالمحتار هامش الدرالمختار ١٣٧ : ٤ کتاب الجهاد والمغنم)

٢) قال العلامة الکاسانی : فالغنیمة عندنا اسم للماخوذ من اهل الحرب علی سبیل القهر والغلبة. (بدائع الصنائع ١١٧ : ٧ کتاب السیر)

تقویت ملاویږی مکروه تحریمی دی کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۳۱۳:۳ قبیل باب المغنم وقسمته لم یبع ای یحرم ان یبیع منهم ما فیه تقویتهم علی الحرب... ولا نحمله الیهم ولو بعد صلح لانه علیه الصلوٰة والسلام نهی عن ذلك وامر بالمیرة وهی الطعام والقماش فجاز استحسانا انتهیٰ(۱) او د مسلمانانو نه د دې په زوره اخستل مال غنیمت نه دي لان الغنیمة ما نیل عن الکفار کما فی المغرب(۲) وما یؤخذ من اموال الکفرة بقوة الغزاة وقهر الکفرة کما فی الهندیة(۳) نعم جاز تعزیر مثل هذا العاصی علی وجه۔ وهو الموفق

## د هندوانو متروکه څیزونه د مال فئ په حکم کې دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د هندوانو د پرېښودلې شوې مالونو څه حکم دې؟ او د هغې مالکان به کوم خلق متصور کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد انور نوښار ۸ جنوری ۱۹۹۰ء

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: د هندوانو متروکه اموال د فئ په حکم کې دی (۴) د دې مالکان به هغه کسان وی د چا نه چې حکومت مالکان جوړ

---

۱) الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲۴۸:۳ کتاب الجهاد قبیل باب المغنم وقسمته)

۲) وفی مجمع بحار الانوار: الغنیمة وهو ما اصیب من اموال اهل الحرب بایجاف خیل ور کاب۔ (مجمع بحار الانوار ۷۲:۴ باب الغین مع النون)

۳) وفی الهندیة: الغنیمة اسم لمال ماخوذ من الکفرة بالقهر والغلبة والحرب قائمة قبل الاحراز بدار الاسلام (فتاویٰ عالمگیریة ۲۰۴:۲ کتاب السیر الباب الرابع فی الغنائم)

٤) قال العلامة الشامی: وما اخذ منهم بلا حرب ولا قهر کالهدیة والصلح فهو لا غنیمة ولا فیٔ وحکمه حکم الفیٔ لا یخمس ویوضع فی بیت المال۔
(ردالمحتار ۲۵۰:۳ باب المغنم وقسمته، مطلب بیان معنی الغنیمة)

کړی. قال الله تبارك وتعالیٰ: وما افاء الله علی رسوله منهم فما اوجفتم علیه من خیل ولارکاب ولکن الله یسلط رسله علی من یشاء (سورة الحشر)(١)۔ والله اعلم بالصواب

## په جهاد کښې د کفار او د هغوی د معاونین باغونه پرې کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې کفارو سره په جنګ کښې د هغوی باغونه یا د هغوی د معاونین د باغونو پرې کولو څه حکم دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: قاری محمد انور مدرسه عربیه تل... ٢٣ اپریل ١٤٠١ھ

**الجواب:** کفار او د هغوی د معاونین باغونه پرې کول مشروع دی (قرآن) (٢) (حدیث) (٣) وهوالموفق

## د مجاهدینو د پاره د کابل نه غوا، چیلئ وغیره غصب کولو سره راوستل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې د مجاهدینو دپاره د کابل نه د عام خلقو د غوا او بیزې وغیره غصب کولو سره راوستل جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد حلیم متعلم حقانیه... ٢٢ صفر ١٤٠٥ھ

---

١) (سورة الحشر آیت: ٦)

٢) قال الله تعالیٰ: ما قطعتم من لینة او ترکتموها قائمة علی اصولها فباذن الله ولیخزی الفاسقین۔ (سورة الحشر آیت: ٥)

٣) عن ابن عمر رضی الله تعالیٰ عنهما قال حرق رسول الله ﷺ بعث نخل بنی النضیر وقطع وهی البویرة۔
(اعلاء السنن ١٢:٢١ کتاب السیر باب تحریق اشجار دارالحرب وقطعها الخ)

**الجواب:** قصداً عمداً دا اقدام حرام دی. (١) **وهوالموفق**

## د کمیونسټو د معاونینونښځې نیول او د هغوی نه وینزې جوړول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د کمیونسټو ښځې نیول او د هغوی نه وینزې جوړول څنګه دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی میر عالم خان وزیرستانی... ٢٤ مارچ ١٩٨٤ء

**الجواب:** چې هر کله د هغه معاونین مرتد کیدل ثابت نه وی نو دا نیول او وینزه جوړول جائز نه دی (٢) **والله اعلم**

## د جهادی مرکز نه ټوپکې غلا کیدو په صورت کې په مستعیر باندې د ضمان مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مجاهد منظر خیل د جهاد دپاره د مجاهدین د جماعت نه ټوپکې واخستلې او په وزیرستانی مجاهدینو ئې تقسیم کړې لکه چې د مجاهدینو قانون دې، عملی جهاد کولو سره یو سړی سره د خپلو ملګرو ټوپکې غلا کړې او د مرکز نه وتښتیدل، اوس د جماعت د مرکز امیر دعوی په مجاهد منظر خیل باندې

---

(١) قال العلامة الدكتور وهبة الزحيلي: ثبت تحريم الغصب في القرآن والسنة والاجماع، اما القرآن فقول الله تعالىٰ يأيها الذين آمنوا لا تأكلوا اموالكم بينكم بالباطل... اما السنة فقوله ﷺ ان دماء كم واموالكم حرام عليكم كحرمة يومكم هذا، في شهر كم هذا، في بلد كم هذا... واجمع المسلمون على تحريم الغصب وهو معصية كبيرة.

(الفقه الاسلامي وادلته ٦:٤٧٨٦ الفصل السابع الغصب)

(٢) وفي الهندية: ولا تسبى نساء هم وذراريهم ولا يملك عليهم اموالهم.

(فتاوى هندية ٢:٢٨٣ الباب العاشر في البغاة)

کوی چې یا خو د هغه غلو نه ټوپکې واپس راوړه یا ترې قیمت واخله ځکه چې ضمانت تا کړې وو.

مجاهد منظر خان په جواب کې وائی چې دا کسانو جهاد کولو او د هغوی نه تول مجاهدین راضی وو او مونږ تولو ته دهوکه راکولو سره تبنتیدلي دی دا معلومات هم شوې دی چې دا ټوپکې د جهاد دپاره امانت دی ما نه خرڅ کړې دی او نه په دې کار کې شریك یم، لهذا دا هلاك دې استهلاك نه دې، اوس سوال دا دې چې د دې ضمان په چا باندې راځی؟ او دا هلاك دې یا استهلاك؟ بینواتوجروا

المستفتی: نیك بهادر نقشبندی بویا محمد خیل.. ۲۲ ستمبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** علامه شامی وغیره په کتاب العاریة کې لیکلې دی چې مستعیر اعاره کولې شی. (۱) پس که مجاهدین د شمالی وزیرستان په شهادت شرعیه سره ثابت کړی چې دا مستعیر بین خائن وو نو دا استهلاك دې او موجب ضمان دې کنه نو موجب ضمان نه دې. (۲) واضحه دې وی که د دغه مجاهدینو جماعت دې مستعیر ته د ضمان ورکولو وعده کړې وی نو دا نامنظور او کالعدم ده. کما فی شرح المجلة ۴۵۰ العاریة امانة فی ید المستعیر ...فلاضمان ایضا ولوشرطه المعیرلان اشتراط الضمان فی الامانات باطل (۳) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصکفی: وله ان یعیر ما اختلف استعماله او لا ان لم یعین المعیر منتفعاً ویعیر مالایختلف ان عین وان اختلف لا للتفاوت- (الدرالمختار ۵۶۲: ۴ کتاب العاریة)

۲) قال الشیخ ظفر احمد العثمانی: عن شریح انه قال لیس علی المستودع غیر المغل ضمان ولا علی المستعیر غیر المغل ضمان وبالاجماع لایضمن المستودع مالم یتعد فکذلک المستعیر.
(اعلاء السنن ۱۶:۵۷ کتاب العاریة)

۳) (شرح المجلة لسلیم رستم باز ۴۵۰ الباب الثالث فی العاریة)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

(شپږم جلد)

# باب الاستیمان واحکام دارالحرب

.........

بسم الله الرحمن الرحيم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

## فتاویٰ فریدیہ

# باب الاستيمان

# واحكام دار الحرب

قال رسول الله ﷺ:

من أمن رجلاً على نفسه فقتله

اعطى لواء الغدر يوم القيٰمة

(رواه في شرح السنة)

........

# باب الاستیمان واحکام دار الحرب

## د دار الحرب او دار الاسلام تعریف

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دار الحرب او دار الاسلام تعریف څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتي: حضرت جمال تور ډهیر ... ۲۵ جمادی الاول ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** دارالحرب عبارت است از دارے که دروولایت (حکومت وتسلط) کفار باشد ودر آن حکمی ازا حکام اسلام جاری نه شود، کفار از اجرائے احکام شرع باز مے شوند بلکه احکام کفر راسبیل اشتهار جاری سازند، وکسی از اهل اسلام بلا اجازت وامان کفار درآنجا اقامت کردن نه تواند، کذا یفهم من تقریر الامام محمد فی الزیادات (مجموعة الفتاوی ۲۲)(۱)

قلت ان دارالحرب قسمان اصلية وهی مافیه تسلط الکفار ولاتمکن فیه اظهار الشرائع الا باذنهم فتامل فی شان مکة قبل الفتح، وطارية وهی مافیه ظهور احکام الکفر عند ابی یوسف ومحمد کما فی البدائع ۷: ۱۳۰ وقال ابوحنیفة انها (دارالاسلام) لا تصیر دارالحرب الا بثلث شرائط احدهما ظهور احکام الکفر فیها، والثانی ان تکون متاخمة (متصلة) لدارالکفر والثالث ان لا یبقی فیها مسلم ولا ذمی آمنا بالامان الاول وهوامان المسلمین (بدائع ۷: ۱۳۰)(۲)۔

فاقلیم الهند کانت دارالاسلام فی عهد المغل وبعد تسلط النصاری فصارت دارالحرب عندهما لا عنده لبقاء بعض الشرائع والشعائر کالجمعة والاذان وغیره واما بعد ذهاب تسلط النصاری ومجیٔ تسلط المسلمین مثله هی باقية علی ماکانت علیه بل لافرق بین الباکستان ویورب فی منع الشرائع وعدم المنع الا

---

۱) (مجموعة الفتاوی ۲: ۱۷۳ کتاب الحظر والاباحة)

۲) (بدائع الصنائع ۶: ۱۱۲، کتاب السیر، بیان الاحکام التی تختلف باختلاف الدارین)

قدراً یسیراً فبالجملة ان الباکستان دارالمسلمین حتماً ودارالاسلام عنده لا عندهما فافهم۔ وهوالموفق

## د دارالحرب تعریف او تعین

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې (چه ځان عالم ګڼی) په لویه مجمع کې وویل چې دې وخت په دنیا کې یو ځای کې هم دار الحرب نشته چې کله مونږ د هغه نه وضاحت طلب کړو آیا روس، چین او امریکه وغیره دار الحرب نه دی؟ نو هغه وویل چې هر ګز نه دی؟ په دې باندې مونږ د هغه نه د دار الحرب تعریف اوپوښتنې نو هغه وویل چې یو غیر مسلم حکومت تر هغه وخته پورې دار الحرب نه جوړیږی تر څو چې هغه په مسلمانانو باندې جنګ مسلط نه کړی، مهربانی وکړئ بیان کړئ چې د دې عالم دا خبره صحیح ده یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: صاحب زاده صفی الله ضلع دیر

**الجواب:** په کومو ملکونو باندې چې د مسلمانانو تسلط نه وی راغلې او د پخوا زمانې نه هلته د کفارو حکومت جاری وی لکه روس، چین او امریکه نو دا ملکونه بیشکه دار الحرب دی، قال العلامة الکهنوی فی فتاواه ۲: ۲۲ دارالحرب عبارت ازدارے است که در وولایت کفار باشد ودران حکمے از احکام اسلام جاری نشود وکفار از اجراء احکام شرع مانع شوند بلکه احکام کفر راعلی سبیل الاشتهار جاری سازند وکسی از اهل اسلام بلا اجازت وامان کفار درانجا اقامت کردن نتواند، کذا یفهم من تقریر الامام محمد رحمه الله فی الزیادات انتهٰی(۱)۔ واضح باد که اجازت امریکه برائے نماز وصوم مثل اجازت اهل ذمه ست در دارالاسلام فقط۔ وهوالموفق

---

۱) (مجوعمة الفتاوی ۱۷۳:۲ کتاب الحظر والاباحة)

وقال العلامة الکاسانی: واختلفوا فی دارالاسلام انها بماذا تصیر دارالکفر؟ قال ابوحنیفة انها لا تصیر دارالکفر الا بثلاث شرائط،...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د سمندری حدودو په دار الحرب کې داخلیدل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په جغرافیائی تقسیم کې د سمندر څه حصه هغې ته د نژدې ملکونو په قبضه کې وی، چې په هغې کې د نورو ملکونو بغیر د اجازت نه د سمندری حدود خلاف ورزی کنیلې شی، آیا په دې صورت کې د کافر ملکونو سمندری حدود به هم د دار الحرب په حکم کې وی؟ یعنی سمندر په دار الحرب کې داخلیدلې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: انور حیات چکوال پنجاب

**الجواب:** کوم ملك چې دار الحرب شی نو د هغې د قبضې نه لاندې ټول حدود حکما په دار الحرب کې شامل دی په دې شرط چې د اسلامی ملکونو سره د هغه علاقې تعلق ختم شی وفی ردالمحتار۳: ۲۱۱ قوله: واحرزوها دارهم ویلحق بها البحر الملح ونحوه کمفازة لیس ورائها بلاد الاسلام نقله بعضهم عن الحموی وفی حاشیة ابی السعود عن شرح النظم انها علی سطح البحر له حکم دارالحرب(١)۔وهوالموفق

## آیا افغانستان دار الحرب دې یا دار الاسلام

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په دې زمانه کې د افغانستان څۀ حکم دې؟ هغه دار الحرب دې یا دار الاسلام؟ او د تقدین په

---

بقیه ازحاشیه گذشته] احدها: ظهور احکام الکفر فیها، والثانی: ان تکون متاخمة لدار الکفر والثالث :ان لایبقی فیها مسلم ولاذمی آمنا بالامان الاول وهوامان المسلمین، وقال ابویوسف ومحمد رحمهم الله انها تصیر دارالکفر بظور احکام الکفر فیها۔
(بدائع الصنائع ۱۱۲: ۶ بیان الاحکام التی تختلف باختلاف الدارین)

١) (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲۶۶: ۳ باب استیلاء الکفار کتاب الجهاد)

صورت کې د هغه مالونو څه حکم دی کوم چې مجاهدین او غازیان د افغان حکومت نه جبرا اخلی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد متعلم حقانیه .... ١٧ جمادی الاول ١٤٠٢هـ

**الجواب:** افغانستان په ظاهره کې دار الاسلام دی او په حقیقت کې دار الحرب دی. اما الاول فلعدم ظهور احکام الکفر فیه، قال العلامة الشامی قوله باجراء احکام اهل الشرك ای علی الاشتهار وان لا یحکم فیها بحکم اهل الاسلام هندیه وظاهره انه لو اجریت احکام المسلمین واحکام اهل الشرك لا تکون دارحرب، (ردالمحتار ٣: ٣٥٠)(١) واما الثانی فلما فی البدائع وجه قول ابی حنیفة ان المقصود من اضافة الدار الی الاسلام والکفر لیس هو عین الاسلام والکفر وانما المقصود هو الامن والخوف ومعناه ان الامان ان کان للمسلمین فیها علی الاطلاق والخوف للکفرة فیها علی الاطلاق فهی دارالاسلام الخ(٢)،

قلت والخوف فی بلد افغانستان لاهل الاسلام الا لمن کتم او استلم او داهن اظهر من الشمس، ثم ایمانهم ایاهم لایلافهم الدهریة مثل ایمانهم اهل بخاری. وهوالموفق

## د کینیا د دار الحرب کیدو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په کینیا کې هر سړی ته مذهبی او شهری آزادی حاصل ده آیا په هغې باندې د دار الحرب احکام جاری کیدې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد اشفاق راولپنډی... ١٥ اگست ١٩٧٩ء

١) (ردالمحتار هامش الدر المختار ٢٧٧:٣ قبیل باب العشر والخراج والجزیة)

٢) (بدائع الصنائع ١١٢:٦ کتاب السیر)

**الجواب:** چې کله مذهبی آزادی د اجازت محتاج دی نو دا آزادی آزادی نه ده بلکې پابندی ده، بهر حال امریکه یقینی طور دار الحرب دې خصوصا د امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله په نزد، د هغوی په نزد دار ومدار په احکاماتو باندې دې، یعنی چې کله غیر اسلامی احکام او قوانین علانیه نافذ او جاری وی نو دا وطن به دار الحرب وی **كما فى الهندية ٣/٢٣٢**(١) **وهوالموفق**

## آیا تهانی لینډ دار الحرب دې؟

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دار الحرب تعریف څه دې؟ آیا تهائی لینډ دار الحرب دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم ..... ۲۰ جون ۱۹۷۶ء

**الجواب:** دار الحرب هغه وطن دې چې په هغې کې د شروع نه د کفارو تسلط راروان وی، او یا ټول شعائر اسلام په هغې کې ممنوع وی او حال دا چې د مسلمانانو نه قبضه اخستلې شوې وی، او په ظاهره تهائی لینډ په اول قسم کې داخل دې، **والتفصيل فى ردالمختار ٣/٢٣٩،٢٥٠**(٢) **وهوالموفق**

---

(١) وفى الهندية: قال محمد رحمه الله تعالىٰ فى الزيادات انما تصير دارالاسلام دارالحرب عند ابى حنيفة رحمه الله تعالىٰ بشروط ثلاثة احدها اجراء احكام الكفار على سبيل الاشتهار وان لا يحكم فيها بحكم الاسلام والثانى ان تكون متصلة بدار الحرب لا يتحلل بينهما بلد من بلاد الاسلام والثالث ان لا يبقى فيها مؤمن ولا ذمى آمنا بامانه... وقال ابويوسف ومحمد رحمهما الله تعالى بشرط واحد لاغير وهو اظهار احكام الكفر وهو القياس. (فتاوى هندية ٢:٢٣٢ كتاب السير، الباب الخامس فى استيلاء الكفار)

(٢) قال العلامة الحصكفى: (لاتصير دارالاسلام دارحرب الا) بامور ثلاثة: باجراء احكام اهل الشرک وباتصال بدارالحرب وبان لا يبقى فيها مسلم ولا ذمى آمنا بالامان الاول، وقال الشامى (قوله لا تصير دارالاسلام دارحرب الخ)... [بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

## د کمیونزم د وجې نه افغانستان دار الحرب او دار بغاوت دي

**سوال:** څه فرمائی علماء، دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا د کمیونزم د وجې نه افغانستان دار الحرب دې یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: کل قدم میرا على ناظم اعلى مير عل وزيرستان ... ۲۱ جمادی الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** افغانستان د امام ابویوسف او امام محمد رحمهما الله په نزد دار الحرب دې، او د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دار البغاة دې (۱) **وهوالموفق**

## د دار الحرب طرف ته تلونکی د خوراک څښاک د څیزونو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء، دین د دې مسئلې په باره کې چې حالیه جهاد افغانستان کوم چې د روس خلاف جاری دې، څه مجاهدین په خوست کې د جهاد کولو دپاره روان شو، د شپې په لاره کې یو ټریکټر او بس چې په هغې باندې د خوراک څښاک سامان خوست ته وړلې شو لره قبضه کولو سره ټریکټر

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] ای بان بغلب اهل الحرب على دار من دورنا او ارتد اهل مصر وغلبوا واجروا احکام الکفر او نقض اهل الذمة العهد وتغلبوا على دارهم ففی کل من هذه الصور لا تصیر دارحرب الا بهذه الشروط الثلاثة وقالا بشرط واحد لا غیر وهو اظهار حکم الکفر وهو القیاس- (ردالمحتار ۳:۲۷۷ کتاب الجهاد، مطلب فیما تصیر به دارالاسلام دارحرب)

۱) قال العلامة الکاسانی: واختلفوا فی دارالاسلام انها بما ذا تصیر دارالکفر قال ابوحنیفة: انها لاتصیر دارالکفر الا بثلاث شرائط: احدها ظهور احکام الکفر فیها والثانی ان تکون متاخمة لدار الکفر والثالث ان لایبقى فیها مسلم ولا ذمی آمنا بالامان الاول وهو امان المسلمین وقال ابویوسف ومحمد رحمهما الله انها تصیر دارالکفر بظهور احکام الکفر فیها. (بدائع الصنائع ۶:۱۱۲ کتاب السیر، فصل واما بیان الاحکام التی تختلف باختلاف الدارین)

اوسوزولې شو او بس لره په میرانشاه بازار باندې راوستلې شو، د بس د مالك متعلق لاتر اوسه پورې نه ده معلومه چې کوم قسم سړې دې، بلکه دا چې هلته د علاقې عام مسلمانانو وسیدونکو ناکه لګولې ده چې مونږ به د پاکستان نه د خوست بازار دپاره د یو څیز سمګلنګ ته هم نه پرېږدو ځکه چې د خوست او کابل لاره بنده ده او هیڅ سامان د هغه طرف نه نه راځي. اوس مونږ د مجاهدینو نه تپوس کوو چې دا بس غنیمت شمار کړې شي او که د تعزیر بالمال په طور وسیزلې شي او که بغیر د څه شرط نه مالك ته واپس کړې شي؟ بینواتوجروا

**المستفتی: مولانا غلام حقانی زرګری هنګو .... ٤ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ**

**الجواب:** صرف په افواه ګانو باندې د مسلمانانو مال هلاکول یا د تعزیر بالمال دفعه لګول بې احتیاطي او بدنامي ده. (۱) چې کله د حکومت پاکستان د طرف نه د دې اجازت موجود دې نو د مجاهدینو امیر به په کوم قانون باندې د دې تباهۍ اجازه وي. **وهوالموفق**

## په دار الحرب کې وسیدونکی مسلمان محقون الدم او معصوم المال دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا د افغانستان حالا مسلمانان مباح الدم دی؟ او د هغوی مالونه به غنیمت شمارلې شي؟ حال دا چې هغوی د افغانستان حکومت خلاف جنګ هم کوی او مخالف هم دی صرف هجرت نه کوی؟ بینواتوجروا

**المستفتی: نامعلوم فاضل حقانیه ... ٦ شعبان ۱۴۰۱ھ**

---

(۱) قال فی عقد الفرائد: لایجوز لاحد ان یاخذ مال احد بلا سبب شرعی، ای لا یحل فی کل الاحوال عمداً او خطأً ونسیانا جدا او لعباً ان یاخذ مال احد بوجه لم یشرعه الله تعالیٰ ولم یبحه... واما قید بلا سبب شرعی احتراز عن وجود سبب شرعی للاخذ.
(عقد الفرائد البهیة فی جمع القواعد الفقهیة ۱۱۴ رقم مادة: ۱۱۹)

**الجواب:** کمیونسټ او د هغوی کومکیان او مدافعینو نه علاوه نور د اسلام دعوه لرونکی محقون الدم او معصوم المال دی (١) وهوالموفق

## کمیونسټ عقیده ساتونکی او د هغوی معاونین او مالونو حکم

**سوال:** چې میفرمایند علماء کرام درین مسئله که در افغانستان چند فرقه ها موجود اند، یك فرقه پرچم و خلق اند که در وقت ظاهر شاه و داؤد تعلیم و مدرسه روس حاصل کردند عقیده ایشان مخالف از قرآن و حدیث باشد، ودیگر فرقه یمین اند که تعلق به روسها بودند، حکم این فرق چیست؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرؤف... کربوغه شریف کوهاټ... ٢٢ ربیع الثانی ١٤٠١هـ

**الجواب:** کمیونسټ و معاونین ایشان مباح الدم اند البته از معاونین ایشان اموال بطورتملك گرفته نمی شوندمثل اهل البغي بخلاف کمیونسټ که اموال ایشان مباح و غنیمت انداء (ماخوذازشامی،باب البغاة) (٢) وهوالموفق

---

١) قال الشیخ محمد کامل الطرابلسی : سئلت عن بلدة استولی علیها الکفار وتمکنوا منها فانضم الیهم بعض القبائل والعشائر وصار وایقاتلون معهم المسلمین وینهبون مالهم وینصحون الکفار ویعینوهم علی اذی المسلمین فکانوا اشد ضرراً علی المسلمین من الکفار فما الحکم فیهم وهذا حالهم؟ فالجواب انی لم اقف علی حکم هؤلاء فی کتب مذهبنا معاشر الحنفیة ولکن وقفت عن حکمهم فی کتب بعض السادات المالکیة والظاهر ان حکم هؤلاء حکم اهل دارالحرب فی قتلهم واخذ مالهم لکونهم رداً لعدو الحرب ومعینون له بانفسهم ... ومنه تعلم ان من یدخل تحت جوارهم وامانهم من غیر اعانة لهم بنفسه ولا بماله ولایکون لهم عینا ولا رداً دونهم لا یباح قتله. (فتاوی کاملیة ٢٥١ کتاب الجنایات)

٢) قال العلامة الحصکفی : فاذا خرج جماعة مسلمون عن طاعته ای طاعة الامام وغلبوا علی بلد دعاهم الیه ای الی طاعته و کشف شبهتهم ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## د افغان غیر مهاجرین نفسونو او مالونو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د افغانستان بعض خلقو هجرت نه دې کړې او هلته په خپلو کورونو کې وسیږی او د مجاهدینو امداد هم نه کوی، دې خلقو ته نقصان رسول څنګه دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: قاری انور مدرسه عربیه تل .... ۲۳ جون ۱٤۰۱ﻫ

**الجواب:** د هغوی نفسونو او مالونو سره به کار نه شی لرلې. لعدم المبیح (لعدم کونهما کفارا ولا بغاة ولا معاونیهم) (١) وهوالموفق

## د کمیونستو معاونین ته د امن ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بعض ناخبره مسلمانان په افغانستان کې د کمیونستو معاونت کوی او د مسلمانانو سره په جنګ کې هم حصه اخلی او بعض وخت هغوی د مسلمانانو نه امن طلب کوی، نو آیا د مسلمانانو دپاره هغوی ته امن ورکول جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: نواز افضل ننګرهاری متعلم حقانیه ... ٥ ربیع الاول ١٤٠٢ﻫ

**الجواب:** جاز ایمانهم الا ان یکون خلاف المصلحة فیفسخه الامام والامیر

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] فان تحیزوا مجتمعین حل لنا قتالهم بدأ حتی نفرق جمعهم ... وتحبس اموالهم الی ظهور توبتهم فترد علیهم.
(الدارالمختار ۳:۳٤۰ باب البغاة)

١) قال الشیخ محمد کامل الطرابلسی : ومنه تعلم ان من یدخل تحت جوارهم وامانهم من غیر اعانة لهم بنفسه ولا بماله ولا یکون لهم عینا ولا ردأ دونهم لا یباح قتله.
(فتاوی کاملیة ۲٥١ کتاب الجنایات)

كمافى الشامية. ٢/٢٢٣(١) وهوالموفق

## په اسلامی ملک کښ بغیر د امان نه د داخلیدونکی حربی کافر حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښ چې آیا حربی اسلامی ملك ته بغیر د پاسپورټ نه راتلې شی یا نه؟ كه راتلې شی نو د څومره مودې پورې په اسلامی ملك كښ بغير د ټيكس ادا كولو نه وسيدې شی؟ او څومره موده پس به اسلامی ملك په هغه باندې جزيه لګوی؟ بينواتوجروا

المستفتی: (مفق) سيف الله حقانی (رئيس حال دار الافتاء) دار العلوم حقانيه اكوړه خټك ... ١٣٨٩هـ

**الجواب:** داسې كافر كوم چې بغير د امان نه داخل شوې دې د هغه نه به عبد جوړولې شی هغه نه به جزيه نه شی اخستلې، قال فی الفتح ومن يوجد فی دارنابلاامان فهوومامعه فیء ٥/٢٥٢(٢) وبمعناه فی ردالمختار ٢/٢٢٣(٣) فقط... وهوالموفق

---

(١) قال العلامة الحصكفی: ولا نقتل من امنه حر او حرة ولو فاسقاً بأی لغة كان الامان... وينقص الامام الامان لو بقاء ه شراً-
(الدرالمختار ٣: ٢٤٨، ٢٤٩ كتاب الجهاد، بحث الامان)

وفی الهندية: اذا امن رجل حر او امرأة كافرا او جماعة او اهل حصن او مدينة صح امانهم ولم يكن لاحد من المسلمين قتالهم الا ان يكون فی ذلک مفسدة فينبذ اليهم كما اذا امن الامام بنفسه ثم رأی المصلحة فی النبذ-
(فتاویٰ هندية ١٩٨: ٢ ابواب السير، فصل الامان)

(٢) (فتح القدير ٢٧١: ٥ باب المستأمن)

(٣) قال العلامة ابن عابدين: (قوله ولا يمكن حربی مستأمن الخ) قيد بالمستأمن لانه لو دخل دارنا بلا امان كان وما معه فيئا-
(ردالمحتار ٢٧٢: ٣ فصل فی الاستئمان الكافر)

## د کفري حکومتونو د بیعت او شناختي کارډ جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا د موجود افغاني دهری حکومت بیعت جائز دې یا نه؟ د دې حکومت شناختي کارډ جوړول خاص کر د حج دپاره څنګه دی؟ **بینواتوجروا**

المستفتي: عبدالمنان متعلم خیر المدارس مردان ... ۱۵ نومبر ۱۹۸۶ء

**الجواب:** دریں عصرلگام هرسربراه مملکت اهل اسلام دردست روس یا امریکه است،انا لله وانا الیه راجعون،نه در دست الله تعالیٰ ورسول وے، البته سربراه مملکت افغانستان متجاوزبه قتل وقتال اهل حق نیز شده است پس تسلیم کنندگان این حکومت ویا هجرت نه کنندگان ازین حکومت مثل تسلیم کنندگان حکومت روسی وباشندگان روس اند، ومثال ایشان مثال باشندگان دارالحرب است، ویا مثال ایشان مثال آن اهل اسلام است که بطور امن در دارالحرب رفته باشد(۱) این هر دو مانع از گرفتن شناختی کارڈ یا پاسپورٹ نه هستند، البته بیعت کردن حرام بلکه مورث کفر است(۲)- **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة شیخی زاده :المستأمن هو من یدخل دار غیره بأمان فشمل مسلما دخل دارهم بأمان وکافراً دخل دارنا بامان وتقدیم استیمان المسلم علی الکافر ظاهر اذا دخل تاجرنا الیهم بامان لا یحل له ان یتعرض لشیئ من مالهم ودمائهم- (مجمع الانهر ۲:۴۴۸ باب المستأمن)

۲) فی حاشیة شرح العقائد : الامام الحق هو الذی استجمع شرائطه الخمسة للامامة من الاسلام والحریة والعقل والبلوغ والعدالة وصار اماما ببیعة جماعة من المسلمین ومن لیس کذلک فهو لیس بامام حق فلا یجب اعانته بل یجب القتال معه والخروج علیه-

(شرح العقائد ۱۱۰ حاشیة : ۴)

قال العلامة النواوی : قال القاضی عیاض ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## مستامن د یو کال نه کم اسلامی ملک کې بغیر د جزیه نه وسیدلې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یو اسلامی ملك کې د امن په صورت کې حربی د څومره مودې پورې بغیر د جزیه نه وسیدې شی؟ او د څومره مودې نه پس به اسلامی حکومت په هغې باندې جزیه لګوی، د مدت تعین فرمائیلو سره جواب راکړئ. بینواتوجروا

المستفتی: سیف الله بنوی ... (حال رئیس دار الافتاء دار العلوم حقانیه) ١٣٨٩ھ

**الجواب:** د یو کال نه به کم وسیږی او د مکمل کال نه پس به په دې باندې جزیه مقرر کولې شی. (الدرالمختار)(۱) وهوالموفق

## د کفار او کمیونستو د معاونین حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په افغانستان کې چې د کمیونستې کفارو خلاف کوم جهاد شروع دې د دې کمیونستو د معاونین او حمایت کونکو مسلمانانو څه حکم دې، آیا د هغوی قتل جائز دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: غلام محمد شمالی وزیرستان

---

... بقیه ازحاشیه گذشته ] اجمع العلماء على ان الامامة لا تنعقد لكافر فلو طرأ عليه كفر او تغير للشرع او بدعة خرج عن حكم الولاية وسقطت طاعته ووجب على المسلمين القيام عليه وخلعه ونصب امام عادل ان امكنهم... فان تحققوا العجز لم يجب القيام وليها جر المسلم عن ارضه الى غيرها ويفر بدينه.

(حاشية النواوى على الصحيح المسلم ٢: ١٢٥ باب وجوب طاعة الامراء فى غير معصية)

۱) قال العلامة الحصكفى: لا يمكن حربى مستأمن فينا سنة لئلا يصير عينا لهم وعونا علينا وقيل له من قبل الامام ان اقمت سنة... وضعنا عليك الجزية فان مكث سنة بعد قوله فهو ذمى... ولا جزية عليه فى حول المكث الا بشرط اخذها منه فيه.

(الدرالمختار ٣: ٢٧٢ كتاب الجهاد، فصل فى استئمان الكافر)

**الجواب:** کمیونسټ د خپلو عقائدو او نظریاتو په بناء اهل حرب دی لهذا واقعتا چې کوم خلق د هغوی سره وی او د مسلمانانو په مقابله کې د هغوی معاون او امداد کونکی وی نو هغوی هم د هغه خلقو په حکم کې دی لهذا د تحقیق نه پس د هغوی قتل جائز دي وفي الفتاوى الكاملية ۲۵۰ والظاهران حكم هؤلاء حكم اهل الحرب في قتلهم واخذ اموالهم واما اولادهم فلا يقتلون ولا يكون فيأ وانما ابيح قتل البالغين منهم لكونهم ردئا لعدو الحرب ومعينون له بانفسهم وحكم الردء اذا لم يقاتل مع العدو حكم المقاتل فأحرى اذا قاتل (۱) انتهى. وهو الموفق

...

۱) (فتاوى كاملية للطرابلسى ۲۵۰ كتاب الجنايات)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاوٰی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوٰی فریدیه

(شپږم جلد)

# باب الاستعانة

# من الکفار وغیره

.........

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

# باب الاستعانة من الکفار وغیره

.............

ان رسول الله ﷺ:
استعان بیهود بنی قینقاع
علی بنی قریظة.

(شرح السیر الکبیر)

.........

# باب الاستعانة من الكفار وغيره

## د افغانستان جهاد او ددې دپاره د کافرانو نه د مدد اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په افغانستان کې د روس او د هغوی د معاونین خلاف جنګ شرعی جهاد دې یا نه؟ که وی نو د مسلمانانو دپاره څه حکم دې؟ او د دې د تعاون څه حکم دې؟ او د هغوی دپاره د امریکې نه د امداد اخستلو څه حکم دې؟ او د هغوی د مخالفین څه حکم دې؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: احمد خان توچی وزیرستان ... ۱۷ ذی قعده ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** این جنگ بلا شک وشبه جهاد است(۱) این جنگ برائے دفع دهریین وبرائے حفظ اسلام واهل اسلام است، پس برتمام اهل اسلام فرض است که هر قسم تعاؤن این مجاهدین کند، خواه این اعانت جانی باشد یا مالی(۲)، ومخالفین این شان مباح الدم اند وبرباطل هستند، واضح باد که مجاهدین راامداد حاصل کردن از کفار چین وامریکه ممنوع شرعی نیست، کما صرح به فی الروایات الحدیثیة وغیرها(۳)- وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصكفی: (وفرض عین ان هجم العدو فیخرج الكل، وقال العلامة ابن عابدین: (وفرض عین) ای علی من یقرب من العدو فان عجزوا او تكاسلوا فعلی من یلیهم حتی یفترض علی هذا التدریج علی كل المسلمین شرقاً وغرباً.

(ردالمحتار مع الدرالمختار ۳:۲۴۲ كتاب الجهاد)

۲) عن انس عن النبی ﷺ جاهدوا المشركین باموالكم وانفسكم والسنتكم.

(مشكواة المصابیح ۳۳۲ كتاب الجهاد)

۳) قال الامام محمد رحمه الله تعالی: ولا بأس بان یستعین المسلمون باهل الشرك علی اهل الشرك لان رسول الله ﷺ استعان بیهود بنی قینقاع ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

# د کفارو سره موالات، مواسات، مدارات، مصالحت

# او دهغوی نه د هدیه او وسلې اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د کفارو سره، موالات، مواساة او مدارات کولو څه حکم دې؟ او هغوی سره مصالحت او اتحاد جائز دې یا نه؟ او د هغوی نه د عارية په طور وسله اخستل جائز دی یا نه؟ او د هغوی هدایا قبلول جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولانا گلزار جان وزیرستانی ... ۲۱ صفر ۱۴۰۸ھ**

**الجواب:** د کفارو سره مولاة (رازدار جوړول) حرام دی. **لقوله تعالیٰ ﴿لایتخذ المومنون الکافرین اولیاء من دون المومنین﴾** (۱) و د هغوی سره مواساة (همدردی) جائز ده. **مثل العیادة والاطعام والمداواة وهدایة السبیل وغیر ذلك لقوله تعالیٰ: لا ینهاکم الله عن الذین لم یقاتلوکم فی الدین ولم یخرجوکم من دیارکم ان تبروهم** (۲) **والاحادیث وردت فی هذا الباب** (۳)،

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] علی بنی قریظه، ولان من لم یسلم من اهل مکة کانوا خرجوا مع رسول الله ﷺ رکبانا ومشاة الی خیبر ... وخرج صفوان وهومشرک ومعه امرأة مسلمة ولم یفرق بینهما النبی ﷺ حتی شهد مع النبی ﷺ حُنیناً والطائف وهو مشرک۔ (شرح السیر الکبیر ۱۴۱ : ۴ باب الاستعانة باهل الشرکة)

۱) (سورة آل عمران : آیت : ۲۸)

۲) (سورة الممتحنة آیت : ۸)

۳) عن انس رضی الله تعالیٰ عنه ان غلاما لیهود کان یخدم النبی ﷺ فمرض فاتاه النبی ﷺ یعوده فقال اسلم فاسلم وقال سعید بن المسیب. [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

او د هغوی سره (ظاهری خوش اخلاقی) په درې وختونو کې جائز ده. اذا کان حاکماً، لقوله تعالیٰ: الا ان تتقو منهم تقاة (۱) واذا کان یرجی منه الاسلام لقوله تعالیٰ: عبس وتولیٰ الخ (۲) حیث انکر علی تقدیم الکفار علی المخاص دون اکرام الکفار، اذا کان ضیفاً۔

او هغوی سره مصالحت جائز دې. لقوله تعالیٰ: وان جنحوا للسلم فاجنح لها (۳) ولان النبی صلی الله علیه وسلم صالح اهل مکة وغیرهم (۴)

او د هغوی نه د وسلې وغیره استعار جائز دې، لما رواه ابوداؤد: ان النبی صلی الله علیه وسلم استعار من صفوان ادراعه یوم حنین (۵)

---

...بقیه ازحاشیه گذشته] عن ابیه لما حضر ابوطالب جاء ه النبی ﷺ۔
(الصحیح البخاری ۲:۸۴۴ کتاب المرض، باب عیادة المشرک)
عن اسماء بنت ابی بکرؓ قالت اتتنی امی راغبة فی عهد النبی ﷺ فسالت النبی ﷺ اصلها قال نعم قال ابن عیینه فانزل الله فیها لا ینهاکم الله عن الذین لم یقاتلوکم فی الدین۔ (الصحیح البخاری ۲:۸۸۴ کتاب الادب، باب صله الوالد المشرک)

۱) (سورة آل عمران، آیت: ۲۸)

۲) (سورة عبس، آیت: ۱)

۳) (سورة الانفال، آیت: ۶۱)

۴) عن البراء بن عازب، قال صالح النبی ﷺ المشرکین یوم الحدیبیة علی ثلثة اشیاء علی ان من اتاه من المشرکین رده الیهم الخ۔
(الصحیح البخاری ۱:۳۷۲ کتاب الصلح، باب الصلح مع المشرکین)

۵) عن امیة بن صفوان ان رسول الله ﷺ استعار منه ادرعا یوم حنین فقال اغصب یا محمد فقال لا بل عاریة مضمونة۔
(سنن ابی داؤد ۲:۵۰۱ کتاب البیوع، باب تضمین العاریة)

او هغوی سره اتحاد جائز دي. لما رواه ابوداؤد وستصالحون الروم صلحا امنا فتغزون انتم وهم عدوا من وراءكم فتنصرون.(١)

او د کفارو عطیه قبلول هم جائز دی لما رواه البخاری وغیره، انه علیه الصلوٰة والسلام قبل هدایاهم، واما الامتناع منه فلعوارض خارجیة کما اذا کان موهماً للذلة او المداهنة(٢)۔ وهو الموفق

## د حکومت افغانستان دپاره د فورسز پیدا کولو او هلته د ترقیاتی کارونو زیاتولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د افغانستان د کمیونسټ حکومت دپاره فورسز پیدا کوی او ترقیاتی کارونه زیاتوی او د هغه سړی دفع کول بغیر د قتل نه ناممکن وی نو د هغه سړی قتل به جائز وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سیف الرحمن شبقدر پیښور ... ٢٢ ذی الحجة ١٤٠٢ھ

---

١) (سنن ابی داؤد ٢:٥٩٠ کتاب الملاحم، باب مایذکر من ملاحم الروم)

٢) باب قبول الهدیة من المشرکین ... اهدیت للنبی ﷺ شاة فیها سم وقال ابوحمید اهدیٰ ملک آیلة للنبی ﷺ بغلة بیضآء فکساه بُردا وکتب له بجرهم ... عن انس قال اهدی للنبی ﷺ جبة سندس۔

قال العلامة العینی: انما رد هدیته لیغیظه بردها فیحمله ذلک علی الاسلام وقیل ردها لان للهدیة موضعا من القلب ولا یجوز ان یمیل بقلبه الی مشرک فردها قطعا لسبب المیل۔

(الصحیح البخاری مع عمدة القاری ١٣:١٦٧ باب قبول الهدیة من المشرکین)

**الجواب:** د ثبوت شرعی نه پس د امراء په مشورې سره هر اقدام جائز دې

(۱) خو صرف په الزام سره دا اقدام ناجائز دې وهوالموفق

## د مسلمانانو په مقابله کې د کفارو نه استعانت ناجائز دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې عراق او سعودی عرب یعنی د اتحادیانو جنګ شروع دې، مونږ د عراق دپاره دعاګانې کوو خو بعض خلق وائی چې هغوی خو ظالم او غاصب دی، که تاسو مونږ د خپلې رائې نه خبر کړئ ډیره مهربانی به وی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حبیب الرحمن بټګرام مانسهره... ۲۳ فروری ۱۹۹۱ء

**الجواب:** د پوهه خلقو خیال دې چې دا د اهل اسلام او یهودو او نصاری ترمینځه جنګ دې او د کفارو نه د کفارو د مقابلې دپاره استعانت جائز دې، خو د اهل اسلام د مقابلې دپاره ناجائز دې، فافهم(۲) وهوالموفق

## د کمیونسټو نه د مجاهدین د مقابلې د پاره وسله وغیره اخستل جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې موجوده ببرک

---

۱) قال العلامة محمد کامل الطبرابلسی: وحکم الردء فی جمیع احوال الاسلام حکم المقاتل ففیه کفایة فی تبیین مایجب علی الحصن الذی صار رداء للکفرة... فیجب علی المسلمین قتال الحصن الردء المذکور وقتلهم واخذمالهم ان ثبت ردئیتهم و کونهم عیوناًلهم. (فتاوی' کاملیة ۲۵۱ کتاب الجنایات)

۲) قال العلامة الطحطاوی: (قوله ومفاده جواز الاستعانة بالکافر) قال فی الفتح ولابأس ان یستعان بالمشرکین علی قتال المشرکین اذا خرجوا طوعا ویرضخ لهم ولا یسهم ولا تکون لهم رأیة تخصهم... وقد استعان علیه الصلوة والسلام بالیهود علی الیهود. (الطحطاوی علی الدرالمختار ۲:۴۵۱ فصل فی کیفیة القسمة)

کارمل کمیونسټ حکومت او د مجاهدین ترمینځه چې کوم جنګ شروع دی دا جهاد دې یا نه؟ او بعض خلق د ببرك کارمل حکومت نه وسله او پیسې راوړلو سره په مسلمانانو تقسیموی او په دې شرط چې کله وطن ته لاړ شی نو په وطن کې به د ببرك کارمل او د روس حمایت کونکی او د مجاهدینو دشمنان جوړ شی او په جهاد کې به بندیز جوړ شی، او مجاهدین به د وطن نه راوباسی، چې د هغې په وجه باندې مجاهدین کمزوری کیږی، اوس د ذکر شوې خلقو څه حکم دې؟ او دا خلق دا هم وائی مجاهدین وسله د امریکې نه راوړی مونږ ئې د روس نه راوړو، په دې کې څه فرق دې؟ که مجاهدین دا ذکر شوې خلق په لارو یا کورونو کې قتل کړی یا ئې ونیسی نو د دې څه حکم دې؟ او مجاهدینو لره هغوی سره څه عمل کول پکار دی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: نیاز محمد قریشی متعلم دار العلوم حقانیه ..... ۱۳ نومبر ۱۹۸۵ء**

**الجواب:** دا جنګ جهاد دې، دا د کمیونزم او اسلام مقابله او محاربه ده (۱) او د کارمل حکومت نه مالونه او وسله اخستل حرام دی دا د مجاهدین او جهاد دپاره خلل جوړوی، بلکې د مجاهدین او حاصلونکو ترمینځه د جنګ اینختلو ذریعه ده (۲)

د داسې خلقو سره ترک موالات جائز بلکې ضروری دې (۳) خو مقاتله خلاف

---

۱) فی مجمع الانهر: (فان هجم) ای غلب (العدو علی بلد من بلد الاسلام او ناحیة من نواحیها ففرض عین- (مجمع الانهر ۲:۴۰۸ کتاب السیر والجهاد)

۲) قال الامام محمد رحمه الله تعالی: وروی ان النبی ﷺ رده (مشرک) حین عرض علیه ان یخرج فیقاتل معه، فقال: لا انا لا نستعین بمشرک... وعندنا اذا رأی الامام الصواب فی الایستعین بالمشرکین لخوف الفتنة فله ان یردهم-

(شرح السیر الکبیر ۴:۱۴۲۳ باب الاستعانة باهل الشرک)

۳) وفی المرقاة: قال الخطابی رخص للمسلم ان یغضب علی اخیه ثلاث لیال لقلته ولا یجوز فوقها الا اذا کان الهجران فی حق من حقوق الله... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

مصلحت ده، د کفارو نه د کميونزم د مقابلې دپاره د وسلې حاصلولو نه دا جواز نه لازميږي چې کميونسټ نه د مجاهدينو د مقابلې دپاره وسله وغيره حاصله کړې شي. **وهوالموفق**

## د ببرک کارمل نه د وسلې اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې که يو سړی دا اوائی چې د ببرک کارمل نه وسله اخستل جائز دی د دې سړی متعلق څه حکم دې؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: محمد اسماعيل وزيرستانی .... ۱۱ محرم ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا سړې شرعا او عرفا په غلطۍ باندې دې په هغه باندې ضروری ده چې د دې خبرې نه واپس شی ځکه چې په اعانت کولو سره د ببرک خيرخواه او معاونين زياتيږی او په دې رويه سره د قوم ترمينځه د اختلاف او فساد خطره وی. (۱) **وهوالموفق**

---

... بقيه ازحاشيه گذشته] فيجوز فوق ذلک ... واجمع العلماء على ان من خاف من مكالمة احدو صلته ما يفسد عليه دينه او يدخل مضرة فی دنياه يجوز له مجانبته فان هجرة اهل الاهواء واجبة على مر الاوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع الى الحق-
(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲ باب ماينهى عن التهاجر والتقاطع)

۱) قال الامام محمد رحمه الله تعالىٰ: وروى ان النبی ﷺ رده (مشرک) حين عرض عليه ان يخرج فيقاتل معه، فقال: لا، انا لانستعين بمشرک، وانما کره ذلک لانه کان معه سبعمائة من يهود بنی قينقاع من حلفائه، فخشى ان يکونوا على المسلمين ان احسوا بهم زلة قدم، فلهذا ردهم، وعندنا اذا رأى الامام الصواب فی الايستعين بالمشرکين لخوف الفتنة فله ان يردهم-
(شرح السير الكبير ۴:۱۴۲۳ باب الاستعانة باهل الشرک)

بسم الله الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوی فریدیه

(شپږم جلد)

# کتاب الحدود والتعزیرات

## باب التعزیر

........

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاوی فریدیه

# باب التعزیر

قال رسول اللہ ﷺ:

ادرؤا الحدود

عن المسلمین ما استطعتم.

(رواہ الترمذی)

........

# کتاب الحدود والتعزیرات

## باب التعزیر

...........

### مبتدع ته تعزیر ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مبتدع باندې به شرعاً کوم حد جاری کیږي، او هغه ته به څه سزا ملاویږي، امید چې په اولنی فرصت کې به راته جواب راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد یعقوب..آزاد کشمیر ۱۱ نومبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** مبتدع ته به د وخت حکومت تعزیر ورکوی، که په کور کې د پابند کولو په شکل کې وی یا ضلع خارج او د قید کولو په شکل کې وی یا د وهلو په شکل کې وی، فلیراجع الی معین الحکام ص۱۹۵ (۱) والله اعلم بالصواب.

### زندیق ته د تعزیر ورکولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د وزیرستان په

---

(۱) قال العلامة الامام علاؤ الدین : والتعزیر لا یختص بفعل معین ولا قول معین فقد عزر رسول الله ﷺ بالهجر وذلک فی حق الثلاثة الذین ذکرهم الله تعالیٰ فی القرآن العظیم... وعزر رسول الله ﷺ بالنفی فامر باخراج المخنثین من المدینة ونفاهم.

(معین الحکام ۱۹۵ فصل فی عقوبة العائن)

علاقه کې یو ملعون سړی دې هغه د ډیر فسق او فجور ارتکاب کړې دې.

۱: ډیر خلق ئې بربنډ کړې دی

۲: یو د ډول ډال محل ئې جوړ کړې دې او دا وائی او وائی چې زمونږ ملاقات دپاره دې محل ته انبیاء علیهم السلام او اولیاء کرام رحمهم الله راځی.

۳: دا هم وائی چې کوم کار زه کوم مونږ ته د الله پاك د طرف نه خبر راځی

۴: په خپل متبعین کې ئې دوه کسان د منکر او نکیر په نوم باندې د سزا ورکولو دپاره مقرر کړې دی، او هم دغه شان ئې عزرائیل علیه السلام هم مقرر کړې دې او خلقو ته سزا ورکوی تردې چې بعض خلق وژنی.

۵: چې کله د دې سړی مقرر کړې شوې منکر، نکیر او عزرائیل یو سړې اووهی نو د هغې نه وروستو دا سړې مضروب ته مبارکی ورکوی چې ستا ګناهونه معاف شوې دی، د دې ذکر شوې سړی حکم څه دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: اصل میر بنون... ۳۰ ربیع الاول ۱۳۹۵ھ

**الجواب**: السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته اما بعد! پس واضحه دې وی چې داسې زندیق لره مسلمان حاکم یا د هغه قائم مقام سزاء موت یا حبس یا تعزیر ورکولې شی.(۱) او چېرته چې مسلمان حاکم نه وی نو نه مونږ فتوی ورکولې شو او نه د مقامی باثر علماء او مشرانو په تعزیر باندې اعتراض کولې شو. **وهوالموفق**

---

۱) قال العلامة ابن نجیم: الثالثة لا تقبل توبة الزندیق فی ظاهر المذهب وهو من لایتدین بدین... وفی الخانیة قالوا ان جاء الزندیق قبل ان یؤخذ فاقر انه زندیق فتاب عن ذلک تقبل توبته وان اخذ ثم تاب لم تقبل توبته ویقتل اه وهو تفصیل حسن موافق لما بحثه فی فتح القدیر.

(البحر الرائق ۵: ۱۲۶ باب احکام المرتدین)

## تعزیر مالی د ضرورت په وخت جائز دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې تعزیر باخذ المال جائز دي یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالله متعلم ... دار العلوم حقانیه ۸ نومبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** تعزیر بالمال د ضرورت په وخت صحیح دي. کما اشیرالیه فی معین الاحکام وکذا روی قسمته علی اهل الجرائم والمسلمین سواهم (۱) فلیراجع. وهوالموفق

## د تعزیر باخذ المال او تعزیر باهلاک المال تفصیل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زجر بالمال جائز دي یا نه؟ او چې کوم قائلین بالجواز دی نو د هغوی څه رائې ده چې په دې صورت کې به مال ماخوذه په کوم مصرف کې خرچ کولې شي؟ مهربانی وکړئ په دې مسئله باندې سره د حوالې لیکل وکړئ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی عبدالمالک چارسده شبقدر ډهیرئ ... ۱۰ جون ۱۹۸۵ء

**الجواب:** (الف) تعزیر باخذ المال منسوخ دي (یعنی ظاهر المذهب کښ) او چا چې په جواز باندې قول کړې دي نو د هغه په نزد د دې طریقه دا ده چې د

---

(۱) قال الامام علاؤ الدين: ومنها مصادرة عمر عماله بأخذ شطر اموالهم فقسمها بينهم وبين المسلمين... يجوز التعزير بأخذ المال وهو مذهب ابی یوسف وبه قال مالک ومن قال ان العقوبة المالية منسوخة فقد غلط علی مذاهب الائمة نقلا واستدلالا وليس بسهل دعوی نسخها. وفعل الخلفاء الراشدين واکابر الصحابة لها بعد موته ﷺ مبطل لدعوی نسخها والمدعون للنسخ ليس معهم سنة ولااجماع يصحح دعواهم الا ان يقول احدهم مذهب اصحابنا لا يجوز. (معين الحكام ۱۹۵ فصل عقوبة الخائن)

مجرم نه مال واخستلې شي او محفوظ وساتلې شي د دې نه پس که دا مجرم د خپل جرم نه واپس شي نو واپس به ورکولې شي، کنه نو حاکم به ئې په خپله رائې باندې خرچ کوی فی الدر المختار: لا بأخذ المال فی المذهب بحر وفیه عن البزازیة وقیل یجوز ومعناه ان یمسکه مدة لینزجر ثم یعیده له فان ایس من توبته صرفه الی ما یری قال العلامة الشامی ۳:۲۴۷ والحاصل ان المذهب عدم التعزیر بأخذ المال (۱) ویؤیده ما روی مرفوعا لا یحل مال امرئ مسلم الا عن طیب قلبه (۲).

(ب) او باقی پاتې شو تعزیر باهلاك المال نو په بعض مقاماتو کې جائز دې. فی الهندیة ۵:۳۸۰ وعن عمر رضی الله تعالیٰ عنه انه احرق بیت الخمار وعن الامام الزاهد الصفار انه امر بتخریب دار الفاسق بسبب الفسق هکذا فی الخلاصة، وفی الفتاوی النسفی انه یکسر دنان الخمر وان کان قد القی فیها الملح ولا ضمان علی الکاسر فی شیئ من ذلك کذا فی المحیط (۳) وفیها ۳۹۰ المحتسب اذا نهی قطان عن وضع القطن علی طریق العامة فلم یمتنع فاوقد المحتسب النار فی قطنه واحرقه یضمن الا اذا علم فسادا فی ذلك ورأی المصلحة فی احراقه فلا یضمن کذا فی الخلاصة (۴). وهو الموفق

## په قبائلی علاقو کې د جرمونو او تعزیر مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په قبائلی

---

۱) (الدر المختار مع رد المحتار ۳:۱۹۵،۱۹۶ باب التعزیر)

۲) عن ابی حرة الرقاشی عن عمه رضی الله تعالیٰ عنه الا لا تظلموا الا لا یحل مال امرئ الا بطیب نفس منه. (مشکواة المصابیح ۲۵۵ باب الغصب والعاریة)

۳) (فتاویٰ هندیة ۵:۳۵۳ کتاب الکراهیة الباب السابع عشر فی الغناء واللهو الخ)

۴) (فتاویٰ هندیة ۵:۳۵۴ کتاب الکراهیة الباب السابع عشر فی الغناء واللهو الخ)

علاقو کې نه باقاعده حکومت دې او نه پولیټکل په شرعی امور کې دلچسپی اخلی د علاقې علماء کرامو دلته په غیر شرعی امورو باندې پابندی لګولې ده، په مونځ پریښودونکی او جماعت پریښودونکی باندې، په واده کې هیجړه ګان راوستونکی باندې، په اوږده ویښته پریښودونکی او دغه شان په نورو غیر شرعی امورو باندې ئې جرمانې مقرر کړې دی، د هر یو څیز بیله بیله جرمانه ده، که په دشمن باندې وسله استعمال کړی نو جرمانه څلور لاکه ده وغیره وغیره، که دا جرمانه بیا واپس کړې شی نو مجرم نور هم زړور شی چې زه د څو میاشتو دپاره مو پیسې بندې شوې، د دې په باره کې شرعی څه حکم دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: علماء کرام ... کرم ایجنسی پاره چنار ... ۱۳ کتوبر ۱۹۹۵ء

**الجواب:** چې کله د جرمونو بندول بغیر د تعزیر باخذ المال نه ګران وی نو په معین الحکام کې د دې د جواز طرف ته اشاره کړې شوې ده. (۱) لحدیث ابی داؤد(۲) ولاثر عمر رضی الله عنه(۳) وهو الموفق

---

۱) قال العلامة الامام علاؤالدین: یجوز التعزیر باخذ المال وهو مذهب ابی یوسف وبه قال مالک، ومن قال ان العقوبة المالیة منسوخة فقد غلط علی مذاهب الائمة نقلا واستدلالاً ولیس بسهل دعویٰ نسخها، وفعل الخلفاء الراشدین واکابر الصحابة لها بعد موته ﷺ مبطل لدعوی نسخها والمدعون للنسخ لیس معهم سنة ولا اجماع یصحح دعواهم الا ان یقول احدهم مذهب اصحابنا لایجوز- (معین الحکام ۱۹۵ فصل فی عقوبة الخائن)

۲) عن عمرو بن العاص عن رسول الله ﷺ انه سئل عن الثمر المعلق فقال من اصاب بفیه من ذی حاجة غیر متخذ خبنة فلا شیئ علیه ومن خرج بشیئ منه فعلیه غرامة مثلیه والعقوبة- (سنن ابی داؤد ۲:۶۰۳ کتاب الحدود، باب مالاقطع فیه)

۳) قال الامام علاؤالدین: ومنها تحریق عمر المکان الذی یباع فیه الخمر ومنها تحریق عمر قصر سعد بن ابی وقاص لما احتجب فیه عن الرعیة وصار یحکم فی داره ومنها مصادرة عمر عماله باخذ شطر اموالهم فقسمها بینهم وبین المسلمین.
(معین الحکام ۱۹۵ فصل فی عقوبة الخائن)

## د جرمونو د بندولو د ضرورت د وجې نه تعزیر بالمال جائز دي

**سوال:** نستفتیکم فی هذه المسئلة صورته هکذا ان اشراف القوم ان اخذوا المال من احد علی وجه الجریمة انسدادًا لباب المعصیة، هل علیهم رد هذا المال الی مالکه امْ لا؟ وان لم ینسد باب المعصیة فی رد المال الیه فهل یجوز ان یصرفوا المال؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم ... ۲۷ جمادی الثانی ۱٤۰٤ھ

**الجواب:** اگر انسداد جرائم بغیر از تعزیر باخذ المال (بطریق مذکور دراستفتاء )مشکل بود، جائز است، کما فی خلاصة الفتاوی ۴:۴۴۴ وسمعت من ثقة ان التعزیر باخذ المال ان رأی القاضی اوالوالی جاز(۱) وذکر فی تعزیر معین الحکام ۲۳۱ الآثار اللتی تدل علی جوازه(۲)۔ وهوالموفق

## په بعض جرمونو کې مالي جرمانه کالعدم او نامنظور ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مسماة فلانة کومه چې د یو ماشوم مور ده د نن نه څه موده مخکې د یو بل سړي سره وتښتیدله د دې نه پس په خبریدلو باندې د هغې خاوند او پلار په هغې پسې لاړل، نو جرګې فیصله وکړه چې جینۍ دې واپس کړې شي او د هغې سره دې پنځه زره روپۍ د بې عزتۍ په طور وارثانو ته ورکړې شي، که د جینۍ نکاح وشوه نو دا روپۍ به د جینۍ د وارثانو نه واپس مسمیان وغیره ته ورکولې شي

---

۱) (خلاصة الفتاوی ۴۴۴:۴ کتاب الحدود الفصل الاول)

۲) قال العلامة الامام علاؤالدین : ومنها تحریق عمر المکان الذی یباع فیه الخمر ومنها تحریق عمر قصر سعد بن ابی وقاص لما احتجب فیه عن الرعیة وصار یحکم فی داره ومنها،مصادرة عمر عماله باخذ شطر اموالهم فقسمها بینهم وبین المسلمین۔ (معین الحکام ۱۹۵ فصل فی عقوبة الخائن)

اوس هغه جينئ د خاوند سره وسيږي لهذا د دې خبرې شرعی حکم وليکئ

بينواتوجروا

المستفتي: شاهين مری...۲۹ نومبر۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په داسې جرمونو کې مالی جرمانې مقرر کول نامنظور او کالعدم دی (۱) لحديث رد الاشاء علی الزاني (رواه البخاری وغیره) (۲) وهوالموفق

## تعزير باخذ المال منسوخ دې په بې بنياده دلائلو باندې نه جائز کيږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو خاندان د سندرو او سرودونو د بندولو دپاره معاهده وکړه، چې که چا په موږ کې د خپل خوئی يا ورور وغيره په وادهٔ کې د سندرو او سرودونو پروګرام جوړ کړو نو د هغه نه به پنځه سوه روپئ نقدې او دوه ګډان جرمانه اخستلې شی، پس بيا يو سړی د وادهٔ په موقع باندې د سندرونو او سرودونو پروګرام وکړو نو قوم د هغه نه پنځه سوه روپئ او دوه ګډان جرمانه واخستله، او بيا ئې په دې جرمانه باندې خپل مينځ کې ډوډئ پخولو سره وخوړله، اوس په دې جرمانې سره دا خوراك کول جائز دی يا نه؟ خوړونکو ددې مال د حلت دپاره دا دليل

---

(۱) وفی الهندية: رجل زنی بامرأة رجل فعلم الزوج واراد حدهما فصالحاه معا او احدهما علی دراهم معلومة او شيئ آخر علی ان يعفو عنهما كان باطلا لا يجب المال وعفوه باطل .... ولكل واحد منهما ان يرجع بماله الذی دفع.

(فتاوی هندية ۴:۲۸۳ كتاب الصلح الباب الحادی والعشرون فی المتفرقات)

(۲) عن ابی هريرة وزيد بن خالد الجهنی: قالا جآء اعرابی فقال يا رسول الله اقض بيننا بكتاب الله... فقال الاعرابی ان بنی كان عسيفا علی هذا فزنیٰ بامرأته فقالوا علی ابنک الرجم ففديت ابنی بمائة من الغنم ووليدة ثم سالت اهل العلم فقالوا انما علی ابنک جلد مائة وتغريب عام فقال النبی ﷺ لا قضين بينكما بكتاب الله اما الوليدة والغنم فرد عليک وعلی ابنک جلد مائة وتغريب عام.

(الصحيح البخاری ۱:۳۷۱ كتاب الصلح باب اذا اصطلحوا علی صلح جور فهو مردود)

بیان کړي دي چې قوم ماته ویلې دي چې که تا دا جرمانه خپل مالك ته واپس کړه نو موږ به ستا په دیني مدرسه کې د سندرو پروګرام کوو، پس دا فتوی ورکونکې او د دې مال اخستونکې یو جاهل مولوی دې او وائي چې شامی دا ویلې دی چې ﴿الرجل اذا ابتلی ببلیتین فلیختر اهونهما﴾، لهذا که زما دا مال او نه خورم او خپل مالك ته ئې ورکړم نو قوم به زما په مدرسه کې د سندرو وغیره پروګرام وکړی، آیا د دې دپاره په دې استدلال باندې اعماد کیدلې شي یا نه؟ اګر چې استحلال حرام هم لویه ګناه ده او هغه مال اوس قوم خوړلې دې او دې مولوی ئې د جواز فتوی ورکړې ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد علی شاه حقانی بیرون لکی ګیټ بنون... ۲۲ لومبر ۱۹۶۹ء

**الجواب:** چونکې تعزیر بالمال یعنی باخذ المال منسوخ دې لهذا د دې جرمانې وصولی او خوراك ټول ناجائز دی، قال رسول الله ﷺ صلی الله علیه وسلم لا یحل مال امرء مسلم الا عن طیب قلبه او کما قال (۱) وفی الدر المختار ولا باخذ مال فی المذهب (۲) لهذا په مولوی صاحب وغیره باندې ضروری ده چې دا مال واپس کړی او د اهون البلیتین په صورت کې د چا مال حلال نه وی، د هغې واپس کول ضروری وی، صرف د هغې خوراك په بعض صورتونو کې جائز وی ولیس هناك ما هو المبیح (۳) وهو الموفق

---

(۱) عن ابی حرة الرقاشی عن عمه رضی الله تعالیٰ عنه الا لا تظلموا الا لا یحل مال امرئ الا بطیب نفس منه. (مشکوٰة المصابیح ۲۵۵ باب الغصب والعاریة)

(۲) (الدر المختار ۳:۱۹۵ باب التعزیر مطلب فی التعزیر باخذ المال)

(۳) قال العلامة الشامی: وفی المجتبی لم یذکر کیفیة الاخذ واری ان یاخذها فیمسکها فان ایس من توبته یصرفها الی مایری. (ردالمحتار ۳:۱۹۴ باب التعزیر، مطلب فی التعزیر باخذ المال)

## د جرمونو د بندولو دپاره د ضرورت په وخت تعزیر بالمال جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په نزد په قبائل کې بعض وخت د انسداد معصیت دپاره تعزیر باخذ المال کوی آیا د احنافو په نزد تعزیر باخذ المال په څه صورت کې جواز لری؟ بینواتوجروا

المستفتی: دیدان کل علاقه میدان تیره... ۲۶ جون ۱۹۸۵ء

**الجواب:** که د دې نه بغیر د جرمونو بندول گران وی نو په دې صورت کې تعزیر بالمال جائز دې، مافی خلاصة الفتاوی ۴/۳۴۴ سمعت من ثقة ان التعزیر باخذ المال ان رای القاضی اوالوالی جائز(۱) وهوالموفق

## د بعض اصلاحاتو د خلاف ورزئ په صورت کې د مالی جرمانې حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو قوم د اصلاح دپاره په څه اهم خبرو باندې اتفاق وکړو چې د هغې به یو سرې هم خلاف ورزی نه کوی، که چا وکړه نو په هغوی باندې به معلوم المقدار جرمانه وی، آیا د خلاف ورزئ په صورت کې به د هغه نه جرمانه اخستل جائز وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد سردار وزیرستانی متعلم حقانیه... ۲۳ ذی قعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** جازالتعزیر باخذ المال عندالضرورة کمافی معین الحکام(۲) وهوالموفق

---

۱) (خلاصة الفتاوی ۴: ۳۴۴ کتاب الحدود، الفصل الاول)

۲) قال العلامة الامام علاؤالدین: یجوز التعزیر باخذ المال وهو مذهب ابی یوسف وبه قال مالک ومن قال ان العقوبة المالیة منسوخة فقط غلط علی مذاهب الائمة نقلاً واستدلالاً ولیس بسهل دعوی نسخها وفعل الخلفاء الراشدین واکابر الصحابة لها بعد موتبه ﷺ مبطل لدعوی نسخها والمدعون للنسخ لیس معهم سنة ولا اجماع یصحح دعواهم الاان یقول احدهم مذهب اصحابنا لایجوز [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## د ارباب اقتدار بعض تعزيرات قابل احتجاج او د شريعت سره متصادم دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ۱: يو عالم دين د موجود حکومت په غير اسامی کارونو باندې تنقيد وکړو او مطالبه ئې وکړه چې د اسلام په باره کې دې قوم ته دهوکه ورنکړې شی نو د دې تقرير په جواب کې يو مرزائی وزير د هغه عالم دين ټول سامان د دوه کمرو نه بهر وغورځولو او کمرې ئې بندې کړې، آيا داسې کول جائز دی؟

۲: زمونږ امام کوم چې ممتاز عالم دين دې امام صاحب د روسی وزيراعظم برزنيف په مرداريدلو باندې د پاکستان د جهنډې ښکته کولو کارروايئ ته د يو تقرير دوران کې خلاف اسلام ووبل او وېې ويل چې چا دا کار وکړو هغه دې د الله پاك نه معافی وغواړی چې هغوی د کافر په مرګ باندې د جهنډې د ښکته کولو ارتکاب کړې دې، يو وزير د دې امام د جومات د امامت نه د لرې کولو سرکاری حکم جاری کړو د جومات سل فيصده مقتديانو د دې حکم د منلو نه انکار وکړو، او وېې ويل چې مونږ بل امام نه پرېږدو آيا په دې تقرير باندې د پنځوس کالو متفق عليه امام يو وزير لرې کولې شی؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: محمد الياس جنرل سکيرټری
منتظم کميټی مسجد مهابت خان پيښور .... ۱۰ ستمبر ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** د صدق او ثبوت په شرط د ارباب اقتدار دا تعزيرات قابل احتجاج دی.(۱) د خيرخواهانه تنقيد په ځای د يو کس ټوله قومی اداره معطل کول او

---

.... بقيه ازحاشيه گذشته] (معين الحكام ۱۹۵ فصل فی عقوبة العائن)

(۱) قال العلامة الحصكفی: امر السلطان انما ينفذ اذا وافق الشرع والا فلا اشباه. (الدرالمختار ۳۸۲:۴ كتاب القضاء، مطلب طاعة الامام واجبة)

د عدم تملق د وجې نه د اهل منصب قدیمه نه معزول کول د اصول شریعت سره متصادم اقدامات دی (۱) وهوالموفق

**د راضی نامې نه پس بغیر د سبب شرعی نه مالی جرمانه حرام او ظلم دی**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو حاکم د شریعت د حکم خلاف کوی او وائی چې اګر چې په شریعت کې د عفو تسامح اجازت دې او فریقین اګر چې راضی شوې دی او مظلوم اګر چې معاف کړې دې خو بیا هم د خپل قانون مطابق ظالم ته زر روپۍ جرمانه ادا کوم، آیا دا جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد صادق مدرس مدرسه قاسمیه شعبه بازار پیښور ... ۱۲ ستمبر ۱۳۹۶ھ

**الجواب:** این جرمانه حرام وظلم صریح است(۲) ومستحل او کافر وظالم ست،لان استحلال المعصیة کفرصرح به فی الفقه(۳)والکلام(۴)وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصکفی: لیس للقاضی عزل الناظر بمجرد شکایة المستحقین حتی یثبتوا علیه خیانة (الدرالمختار)

قال العلامة ابن عابدین: فی جامع الفصولین قال: لا یملک القاضی عزله مطلقاً الا لموجب وتقدم تمامه وانه فی البحر اخذ منه عدم العزل لصاحب وظیفة الا بجنحة او عدم اهلیة. (ردالمحتار ۳:۴۵۹ کتاب الوقف مطلب لیس للقاضی عزل الناظر)

۲) قال العلامة ابن نجیم :الا ان یاخذه الحاکم لنفسه او لبیت المال کما یتوهمه الظلمة اذ لایجوز لاحد من المسلمین اخذ مال احد بغیر سبب شرعی. (البحر الرائق ۵:۴۱ فصل فی التعزیر)

۳) فی التاتار خانیة: قال الخمر لیست بحرام فهو کافر ... لانه استحل الحرام قطعاً. (فتاوی تاتار خانیة ۵:۳۴۳ فصل فیما یتعلق بالحلال والحرام)

۴) وفی شرح العقائد: ویجوز العفو عن الکبیرة اذا لم تکن عن استحلال والاستحلال کفر لما فیه من التکذیب المنافی للتصدیق. (شرح العقائد ۸۷)

## مجرم لره د مصلحت مطابق جلا وطن کول جائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د قومی فیصلې مطابق مجرم د ملك نه شړل جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد طیب مدرس قاسم العلوم باغ آزاد کشمیر ... ۵ جنوری ۱۹۸۱ء

**الجواب:** د دې فیصلې نه نۀ معلومیږی چې دې ملزم د څه جرم اعتراف کړې دې، بهر حال یو مجرم لره د مصلحت د وجې نه د جلا وطن کول جائز دی (۱) کما عقد له الامام البخاری الترجمة (۲) وهوالموفق

## صرف په الزام او تهمت سره تعزیر مالی صحیح نه دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د افغانستان د حکومت نه وسله وغیره راوړنکو او د هغوی دپاره جاسوسی کونکو باندې د مالی جرمانې لګولو څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالله متعلم دار العلوم حقانیه ... ۸ نومبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** د کوم قوم چې شرعی امیر نه وی د هغوی دپاره داسې اقدامات کول رسوا کونکی دی صرف په الزام او اتهام سره داسې تعزیرات نافذ کولو د وجې نه به د لوټ مار کونکو نوم بدنامیږی **والله اعلم بالصّواب**

---

۱) قال العلامة محمد احسن: ولو نفی الامام العادل بمدة یری مصلحة صح النفی سیاسة وهذا لا یختص بالزنا بل فی کل جنایة رایٰ الامام مصلحة فی النفی فله ذلک۔ (حاشیة کنز الدقائق ۲۱۱ حاشیة ۳ کتاب الحدود)

۲) قال الامام البخاری: باب نفی اهل المعاصی والمخنثین ... عن ابن عباس لعن النبی ﷺ المخنثین من الرجال والمترجلات من النساء وقال اخرجوهم من بیوتکم واخرج فلانا واخرج فلانا۔

(الصحیح البخاری ۲:۱۰۱۰ کتاب المحاربین من اهل الکفر والردة)

## د افغان کمیونسټو سره د تعلق ساتونکو نه د جرماني اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کوم خلق د افغانستان د بې دینه حکومت سره تعلق ساتی، قومی لحاظ سره د هغوی نه جرمانه اخستلې شی آیا د دې جرمانې د علماء کرامو او طلباء دپاره خوړل جائز دی؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** تنظیم طلباء قوم ممیت خیل... ١٩٨٦ء | ٣ | ٢٩

**الجواب:** که ددې جرم بندیز (مخ نیوې) د مالی جرمانې نه بغیر نه کامیابیږی نو ددې اخستل او خوړل جائز دی. (مأخوذ از خلاصة[١] ومعین الحکام)[٢]. وهوالموفق

## په چا باندې معافی غوښتلو سره سره د مالی جرمانې اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین ددې مسئلې باره کې چه دلته یو پیر قبرپرست دې او سخت شرکی عقائد لری هغه دوه سړو ته وویل چه تاسو زما وژلو پسې لګیدلی یئ او دا خبره پیرصاحب ته یو مرید ویلی وو، په دې باندې پیرصاحب وویل چه تاسو مانه معافی وغواړئ هغوی د خلقو په مخکې معافی وغوښتله بیا د اووه کلو خلق راجمع شو اوهغه ته ئې وویل چه تاسو بیا پیرصاحب ته ورشئ اوهغه ته ووایئ چه معاف مو کړه، اود جرمانې په طور

---

١) قال العلامة طاهر بن عبد الرشید: سمعت من ثقة ان التعزیر باخذ المال ان رأی القاضی او الوالی جاز. (خلاصة الفتاوی ۴۴۴: ۴ کتاب الحدود، الفصل الاول)

٢) قال العلامة علاؤ الدین: یجوز التعزیر باخذ المال وهو مذهب ابی یوسف وبه قال مالک، ومن قال ان العقوبة المالیة منسوخة فقد غلط علی مذاهب الائمة نقلاً واستدلالاً ولیس بسهل دعوی نسخها، وفعل الخلفاء الراشدین واکابر الصحابة لها بعد موته ﷺ مبطل لدعوی نسخها والمدعون للنسخ لیس معهم سنة ولا اجماع یصحح دعواهم الا ان یقول احدهم مذهب اصحابنا لا یجوز. (معین الحکام ١٩٥ فصل فی عقوبة العائن)

خان سره یوه غوا هم بوځئ چې دهغې قیمت دوه زره روپئ وو. دا هرڅه د پیرصاحب په اشاره باندې وشول. نو آیا په شریعت کې دا جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: قیصر خان ضلع پیښور... ۲۹ صفر المظفر ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د تعزیر حکم زمونږ په مسلک کې نشته (شامی) [۱] لهذا دا جرمانه د شریعت مخالفت دې او که دا دواړه افراد بغیر د څه وجې نه تنګوی نو دا هم ناجائز ده. لحدیث المسلم ﴿من سلم المسلمون من لسانه ویده﴾ (الحدیث)[۲] والله اعلم بالصواب.

## متفقه دینی خدمات کې ورانی پیدا کونکی نه مالی جرمانه اخستل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې چې د هغه عادت ضلال او اضلال دې او د قوم خپل مینځ کې متفقه دینی مسائل چې څنګه هم وی انتشار پیدا کوی نو دې سړی ته به تعزیر مالی ورکول جائز وی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد سردار وزیرستانی... ۲۳ ذی قعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** جاز التعزیر باخذ المال عند الضرورة کما فی معین الحکام[۳] وهوالموفق

---

۱) قال العلامة ابن عابدین: وفی شرح الآثار التعزیر بالمال کان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ اه والحاصل ان المذهب عدم التعزیر باخذ المال-
(ردالمحتار ۳:۱۹۶ باب التعزیر مطلب فی التعزیر باخذ المال)

۲) (مشکوٰة المصابیح ۱۲ کتاب الایمان)

۳) قال العلامة علاؤ الدین: یجوز التعزیر باخذ المال وهو مذهب ابی یوسف وبه قال مالک ومن قال ان العقوبة المالیة منسوخة فقد غلط علی مذاهب الائمة نقلا واستدلالاً ولیس بسهل دعویٰ نسخها وفعل الخلفاء الراشدین واکابر الصحابة لها بعد موته ﷺ مبطل لدعویٰ نسخها والمدعون للنسخ لیس معهم سنة ولا اجماع.. [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## بغير د شرعي وجې نه د حجرې مشران او جرګې والا بدناموںکی د تعزير لائق دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په دوه ډلو کې د جائیداد اختلاف وو، هر دواړو ډلو دکلی د جرګې په خپل مینځ کې رضامندئ سره درخواست وکړو چې زمونږ امام او خطیب په سربراهئ کې زمونږ فیصله شرعی طریقې سره مقرر کړئ. لهذا مولانا صاحب سره د حجرې د مشرانو په اهتمام د حقانیه اکوړه خټك او د علاقې د پټواری د رپورټ مطابق فیصله وکړه، د فیصلې د کیدو نه پس یو ډلې نه صرف د حجرې د فیصلې منلو نه انکار وکړو بلکې د فیصلې په مشر مولانا صاحب باندې ئې د لالچی، فراډی او غدار الزام ولګولو، او په اشتهاراتو کې شائع کولو سره د ذکر شوې امام شهرت ته نقصان ورسولو، بدنام ئې کړو، لهذا د داسې فریق دپاره د شریعت محمدی څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: اصلاحی کمیټی سربلند پوره پیښور... ۲۸ ذی الحجة ۱۴۰۲ھ**

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت دا الزام لګونکې د تعزیر لائق دې. (۱) خصوصاً چې کله په دې الزام لګولو باندې باعث شرعی فیصله باندې رضامند نه دې لکه دا عام طور د بیلات کونکو عادت دې.

**نوټ:** دتعزیرنه مراد په غم ښادئ کې بائیکاټ دې، چې پښیمانه شی. (۲) **وهو الموفق**

---

... بقیه ازحاشیه گذشته ] یصحح دعواهم الاان یقول احدهم مذهب اصحابنا لایجوز۔ (معین الحکام ۱۹۵ فی عقوبة الخائن)

۱) وفی التاتار خانیه: واذا قال لغیره یا فاجر یا خبیث یا فاسق یا خائن، یا لص فعلیه التعزیر۔ (الفتاوی التاتارخانیة ۵:۱۰۲ الفصل الثامن فی التعزیر)

۲) قال العلامة العینی: ولا یحل لمسلم الی آخره فیه تصریح بحرمة الهجران فوق ثلاثة ایام وهذا فیمن لم یجن علی الدین جنایة فاما من جنی علیه.. [بقیه حاشیه برصفحه آئنده

## د صحیح فیصلې نه انکار کولو باندې مشروط د مالی جرمانې فیصله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مدعی او مدعی علیه قاضی لره منصف کړی او جانبین ته اختیار ورکړی او قاضی د هغوی ترمینځه صلح او فیصله وکړی چې په تاسو کې چا هم د فیصلې د منلو تعمیل نه دې کړې نو هغه به ماته دوه زره روپۍ جرمانه راکوی او مدعی ته به ۱۰۰۰ روپۍ ادا کوی وروستو مدعی د قاضی د فیصلې نه انکاری شو آیا اوس هغه د قاضی شرائط کوم ئې چې دصلح په وخت کړې وو ادا کوی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی فضل الرحمن صاحب....۱۰ ربیع الاول ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** که هغه سړی د مجلس نه بهرانکار وکړونودا انکارصحیح نه دې خو سره دهغې د هغه نه جرمانه اخستل ناجائز دي، فی الدرالمختاروحکمه وقوع البراءة عن الدعوی الخ (۱)وفیه ایضاً لاباخذ مال فی المذاهب (۲)وهو الموفق

## د چا د راضی کولو د پاره څاروي ورکول او ذبح کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید د عمر نه نسبی رشته وه او بکر د زید اوښې دې، زید د خپل خوئی په وادهٔ باندې دواړو ته دعوت ورکړو د عمر او بکر دواړو خپل مینځ کې په دنیاوی معاملاتو باندې اختلافات دی، عمر د زید نه خفه شو او وېې ویل چې تاسو زمونږ مخالف فریق ته ولې دعوت ورکړو ځکه چې زمونږ رشته تاسو سره نسبی وه

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] وعصیٰ ربه فجائت الرخصة فی عقوبته بالهجران کالثلاثة المتخلفین عن غزوة تبوک فامر الشارع بهجرانهم-

(عمدة القاری ۲۲:۱۳۷ کتاب الادب باب ماینهیٰ من التحاسد والتدابر الخ)

۱) (الدرالمختار ۴:۵۲۷ کتاب الصلح)

۲) (الدرالمختار ۳:۱۹۵ باب التعزیر مطلب فی التعزیر باخذ المال)

او هغې سره صرف د ښځې د طرف نه تاسو په زمونږ خیال ساتلو سره هغوی نه رابللې په دې وجه مونږ تاسو نه خفه کیدو سره راغلو لهذا زمونږ تاسو سره د رشته نسبی بائیکاټ دې، څه موده پس په راضی نامه کې عمر په زید باندې دا شرط ولګولو چې تاسو یو ګډ ورکولو سره زمونږ ناراضګی لرې کړئ او دا تعزیربه دمال په صورت کې وی، ګډ اخستلو سره هغوی په خپل خاندان کې ذبح کړو، آیادا تعزیرمالی اوبیا دهغې خوراك د اتقیاء دپاره په شریعت کې جائز دی یا نه؟ دقرآن و سنت او دفقه د تصریحات نه مو مستفید کړئ؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: خطیب محمد عزیز جامع مسجد خیل خانه**

**چوك ناصر خان پیښور ښهر ... ۱۵ مارچ ۱۹۷۲ء**

**الجواب:** چونکې زید په دې ګډ ورکولو باندې مجبور نه وو بلکې زید دا ګډ بغیر د جبر او اکراه نه ورکړې وه لهذا دې ته به تعزیر بالمال نه شی ویلې (۱)

**وهوالموفق**

## په امتحان کې د نقل د وجې نه نیولې شوې کتاب لره ضبط کول ناجائز دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی امتحان ورکولو په غلطئ سره د دې سړی نه کتاب برآمد شو ممتحن نیولو سره کتاب ضبط کړو، او حال دا چې هغه سړې د کتاب په ضبط کولو باندې خوشحاله نه دې، نو آیا دا جائز ده؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: نامعلوم ...... ۱۰ رمضان المبارک ۱۴۰۳ھ**

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: التعزیر شرعاً تادیب دون الحد (درمختار) وقال العلامة ابن عابدین: والتعزیر یسمیٰ عقوبة لان التعزیر شرع للتطهیر ... ان معنی التعزیر باخذ المال علی القول به امساك شیئ من ماله عنه مدة لینزجر ثم یعیده الحاکم الیه.

(الدرالمختار ۱۹۵، ۱۹۴: ۳ کتاب التعزیر مطلب فی التعزیر باخذالمال)

**الجواب:** دا تعذیر باخذ المال دی، کوم چی د حدیث په بناء ((الا لایحل مال امرءالا بطیب نفس منه)) رواه البیهقی (۱) منسوخ کړی شوی دی، باخذ المال فی المذهب بحر، وفیه عن البزازیة وقیل یجوز ومعناه ان یمسکه مدة لینزجر ثم یعیده له فان ایس من توبته صرفه الی مایری، وفی المجتبی انه کان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ انتهی (۲) قلت وبعض الاحادیث (۳) والآثار تدل علی الجواز (۴) ولکن الافتاء علیه اعانة للکلاب فافهم وتدبر. وهوالموفق

## د مونځ نه کونکی نه د مالی جرمانې اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې مونځ نه کوی او په دې وجه قوم د هغه نه مالی جرمانه اخلی نو دا به جائز وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سعید استاذ هنگو... ۱۹ ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** تعزیر په اخستلو د مال منسوخ دې، خو تعزیر په اهلاك د مال محکم دی لما فی شرح التنویر: لاباخذ مال فی المذهب (بحر) وفیه عن البزازیة:

---

۱) (مشکوة المصابیح ۲۵۵ باب الغصب والعاریة)

۲) (الدرالمختار ۱۹۵:۳ باب التعزیر)

۳) عن عمرو بن العاص رضی الله تعالیٰ عنه عن رسول الله ﷺ انه سئل عن الثمر المعلق فقال من اصاب بفیه من ذی حاجة غیر متخذ خبنة فلا شیئ علیه ومن خرج بشیئ منه فعلیه غرامة مثلیه والعقوبة-
(سنن ابی داؤد ۶۰۳:۲ کتاب الحدود، باب مالاقطع فیه)

۴) قال الامام علاؤ الدین: ومنها تحریق عمر المکان الذی یباع فیه الخمر ومنها تحریق عمر قصر سعد بن ابی وقاص لما احتجب فیه عن الرعیة وصار یحکم فی داره- ومنها مصادرة عمر عماله باخذ شطر اموالهم فقسمها بینهم وبین المسلمین-
(معین الحکام ۱۹۵ فصل فی عقوبة الخائن)

وقیل یجوز الخ (هامش ردالمحتار ۳: ۲۴۶)([1]) وفی الخلاصة ۴: ۴۴۴ ومن جملة ذلك رجل لا یحضر الجماعة یجوز تعزیره باخذ المال([2]) انتهی، قلت لا یریدون منه الاخذ للاكل بل یریدون مافی البزازیة علی هامش الهندیة ۶: ۴۳۶ ان نأخذ ماله ونودعه فاذا تاب نرده علیه كما عرف فی خیول البغاة انتهی([3]) قلت ایضاً وجاز صرفه وأكله عند الایاس عن الاصلاح كما فی ردالمحتار ۳: ۲۴۶ عن المجتبیٰ فان ایس من توبته یصرفها الی مایری([4]).

وهوالموفق

## ګیرې ته د کنځلې کونکی د سزا او تعزیر مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی کوم چې لیونې او پاګل نه دې، هغه قصدا ګیرې ته کنځل کوی، لهذا که هغه په بیابان کې د موقع موندلو نه پس قتل کړې شی نو آیا دا جائز ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: سید محمد ملا ګوری پیښور

**الجواب:** عوامو ته د جرم په وخت تعزیر ورکول جائز دی نه مخکې روستو (هندیة) ([5]) او په عوامو باندې لازمی ده چې د دې سړی سره سوشل بائیکاټ

---

[1] (الدرالمختار ۳: ۱۹۵ باب التعزیر، مطلب فی التعزیر باخذ المال)

[2] (خلاصة الفتاویٰ ۴: ۴۴۴ كتاب الحدود الفصل الاول)

[3] (البزازیة علی هامش الهندیة ۶: ۴۲۷ كتاب الحدود، الاول فی القذف)

[4] (ردالمحتار ۳: ۱۹۶ باب التعزیر مطلب فی التعزیر باخذ المال)

[5] وفی الهندیة: قالوا لكل مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة واما بعد المباشرة فلیس ذلك لغیر الحاكم.
(فتاویٰ هندیة ۲: ۱۶۷ فصل فی التعزیر)

وکړي (۱) او په حکومت باندې لازمي ده چې د دې سړي خلاف تاديبي کارروائي وکړي. وهوالموفق

## د غل ګیره خرول جرم او د تعزیر لائق دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د غل ګیر خرولې شوې ده آيا په شريعت کې د غل دپاره دا سزا جائز ده؟ بينواتوجروا

المستفتي: مولوی سيف الرحمن دره آدم خيل ... ۱۳ اپريل ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت دا غل هم مجرم دي (۲) او ګیره خرونکې هم مجرم او واجب التعزير دي (۳) خو د ګیرې خرونکي ګیره به نه شي

---

۱) وفى المرقاة: قال الخطابى رخص للمسلم ان يغضب على اخيه ثلاث ليال لقلته ولايجوز فوقها الا اذا كان الهجران فى حق من حقوق الله تعالىٰ فيجوز فوق ذلك وفى حاشية السيوطى على الموطا قال ابن عبد البر ... واجمع العلماء على ان من خاف من مكالمة احد وصلته ما يفسد عليه دينه او يدخل مضرة فى دنياه يجوز له مجانبته وبعده ورب صرم جميل خيرمن مخالطة تؤذيه ... فان هجرة اهل الاهواء والبدع واجبة على مر الاوقات مالم يظهر منه التوبة والرجوع الى الحق.

(مرقاة المفاتيح ۹:۲۶۲ كتاب الادب باب ماينهى من التهاجر والتقاطع الخ)

۲) قال الامام الحافظ الذهبى: الكبيرة الثالثة والعشرون السرقة ، قال الله تعالىٰ: والسارق والسارقة فاقطعوا ايديهما جزاء بما كسبا نكالا من الله والله عزيز حكيم (المائدة:۳۸). (الكبائر الامام الذهبى ۱۱۰ الكبيرة الثالثة والعشرون)

۳) وفى الهندية: واذا حلق لحية رجل ولم ينبت مكانها اخرى ففيها كمال الدية كذا فى الذخيرة ... فان نبت حتى استوى كما كان لا يجب فيه شيئ ولكنه يؤدب على ذلك كذا فى المبسوط.

(فتاوىٰ هندية ۶:۲۴ الباب الثامن فى الديات)

خرولې، لکه چې د غل لاس به نه شی پرې کولې خکه چې لاس پرې کول د مسلمان حاکم منصب دې (۱) وهوالموفق

## په سود خور او جواری کونکی باندې د جرماني لګولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په یوه علاقه کې د چا بادشاهی نه وی او په هغې کې یو مقرر کړې شوې قاضی دا فیصله وکړی چې که چا جواری یا سود وکړو نو په هغه باندې به دوه زره روپۍ جرمانه وی د دې جرمانو نه بغیر خلق د بدو نه منع کول مشکل دی، دغه شان تعزیر بالمال جائز دې یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی فضل الرحمن ...۱۱ جون ۷۲ء

**الجواب:** دا تعزیر باخذ المال دې کوم چې منسوخ دې بیشکه تعزیر باهلاك المال منسوخ نه دې. فی الدرالمختار: لا باخذ مال فی المذهب وفی المجتبی انه کان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ. (هامش ردالمحتار ۳: ۲۴۶)(۲) وعن عمر رضی الله تعالیٰ عنه انه احرق بیت الخمار وعن الامام الزاهد الصفار انه امر بتخریب دار الفاسق بسبب الفسق (هندیة ۵: ۳۸۹)(۳) المحتسب اذا نهی قطانا عن وضع القطن علی طریق العامة فلم یمتنع فاوقد المحتسب النار فی قطنه واحرقه یضمن الا اذا علم فسادا فی ذلك ورأی المصلحة فی احراقه فلا یضمن.

---

۱) قال العلامة علی القاری: عن ابن عباس وابن الزبیر موقوفا ومرفوعاً اربع الی الولاة الحدود الخ. (مرقاة المفاتیح ۷: ۱۳۸ کتاب الحدود)

۲) (الدرالمختار ۳: ۱۹۵ باب التعزیر، مطلب فی التعزیر باخذ المال)

۳) (فتاوی هندیة ۵: ۳۵۳ الباب السابع عشر فی الغناء واللهو وسائر المعاصی)

(هندیة ۵: ۳۹۰)([1]) -وهوالموفق

**مړی راویستلو سره په هغې کې د نشې والا څیزونو سمګل کولو د پاره تعذیر**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په بلوچستان کې تقریبا د دوه کالو نه دا کار شروع شو چې بعض خلق تازه مړو لره د قبرونو نه راویستلو سره په دې کې هیروئن، چرس او د نشې والاڅیزونه سمګلنګ کوی او تر اوسه پورې پنځلس شل مړی تقریبا راویستلې شوې دی په دې وجه د مړی وارثان د قبرونو د دوه درې ورځو پورې حفاظت کوی. آیا د داسې غلو قتلول جائز دی یا ناجائز؟ که جائز وی نو صرف د حکومت دپاره که د عوامو دپاره هم؟ او که د هغوی لاس به پرې کولې شی؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی شمس الحق ضلع ژوب بلوچستان ... ۷ محرم الحرام ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** د قواعدو په رڼا کې داسې مفسدینو ته حکومت هر قسم سزا ورکولې شی.([2]) او عوامو ته به د قتل اجازت نه شی ورکولې ځکه چې په مخالفینو باندې به تهمت لګولو سره د قتل په جرم کې اخته وی. **وهوالموفق**

**د مور پلار بې ادبی عقوق او د تعزیر سبب دې**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې همیشه د خپل پلار سره بد اخلاقی کوی، تردې چې بعض وخت ورته کنځلې هم کوی بعض وخت ئې دومره په بې رحمئ سره وهی چې هغه سخت زخمی شی. په شریعت کې د داسې بې ادبه اولاد څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم ..... ۳۰ مارچ ۱۹۸۵ء

---

[1] (فتاوی هندیة ۵: ۳۵۴ الباب السابع عشر فی الغناء واللهو)

[2] قال العلامة الحصکفی: والتعزیر لیس فیه تقدیر بل هو مفوض الی رأی القاضی وعلیه مشائخنا، زیلعی، لان المقصود منه الزجر، واحوال الناس فیه مختلفة، بحر، ویکون التعزیر بالقتل. (الدرالمختار ۳: ۱۹۶ باب التعزیر ، مطلب یکون التعزیر بالقتل)

**الجواب:** دا ځوی د نافرمانۍ په جرم کې اخته دې کوم چې د کبائرو نه دې د هغوی دپاره توبه لازمی کول پکار دی. (۱) او د نه منع کیدو په صورت کې به قاضی او حاکم هغه ته په شرط د صدق او ثبوت سزا او تعزیر تجویز کولې شی، چې دهغې سزا هم ورکولې شی. فی الدر المختار ۳/۱۸۸، ومن یتهم بالقتل والسرقة وضرب الناس احبسه واخلده فی السجن حتی یتوب. (۲) وهوالموفق

## په ظالم او میرنه مور باندې د بد نظر ساتونکی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما یو ځوی دې هغه زما په بل ځوئی باندې ظلم کوی او په میرنۍ مور باندې بد نظر ساتی شرعی حکم ئې څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالله... ۲٦ ذوالحجة ۱۳۹٦هـ

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت مجرم دې، بااثر اهل اسلام دې هغه سره بائیکاټ کوی. (۳) وهوالموفق

---

۱) عن عبد الله ابن عمرو قال قال رسول الله ﷺ الکبائر الاشراک بالله وعقوق الوالدین۔ (مشکوٰة المصابیح ۱۷:۱ باب الکبائر وعلامات النفاق)

۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۲۰٦ بعید مطلب فی تعزیر المتهم)

۳) وفی المرقاة: قال الخطابی رخص للمسلم ان یغضب علی اخیه ثلاث لیال لقلته ولایجوز فوقها الا اذا کان الهجران فی حق من حقوق الله تعالیٰ فیجوز فوق ذلک... واجمع العلماء علی ان من خاف من مکالمة احد وصلته ما یفسد علیه دینه او یدخل مضرة فی دنیاه یجوز له مجانبته وبعده... فان هجرة اهل الاهواء والبدع واجبة علی مر الاوقات مالم یظهر من التوبة والرجوع الی الحق۔
(مرقاة المفاتیح ۹:۲٦۲ کتاب الادب، باب ماینهی من التهاجر والتقاطع الخ)

## د منکوحة الغیر ساتونکی سره د معاملاتو وغیره مسائل

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مسمی زید سره د نوې مسلمانې یو نکاح کړې ښځه اغوا کولو سره په یو نژدې کلی کې د ښځې په طور استعمالوی چې د هغې نه ئې اولاد هم پیدا شوې دې، او اصل خاوند ئې لا تر اوسه پورې ژوندې دې هغه سره څه سلوک وکړې شی. آیا نور مسلمانان هغه سره د شریعت د وجې نه تعلق ساتلې شی؟

۲: آیا زید د جماعت په مانځه کې شریکېدلې شی؟

۳: که زید یا اغوا کړې شوې ښځه مړه شی د هغوی جنازه ادا کول جائز دی یا نه؟

۴: که د هغه اولاد کوم چې د دې اغوا کړې شوې ښځې نه پیدا شوې دې او که نابالغ فوت شی نو د نابالغ جنازه ادا کیدې شی چې نه؟ یعنی د شریعت د وجې نه جائز دی یا نه؟ چونکې دلته د علماء کرامو په دې کې اختلاف دې، د پورته لیکلې شوې سوالاتو جوابات ولیکئ؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی: نامعلوم**

**الجواب:** ۱: د دې سړی سره ترک موالات ضروری دې. (۱) باقی ضروری معاملات بیع او شراء وغیره د هغه سره منع نه ده.

---

(۱) وفی المرقاة: قال الخطابی رخص للمسلم ان یغضب علی اخیه ثلاث لیال لقلته ولا یجوز فوقها الا اذا کان الهجران فی حق من حقوق الله تعالیٰ فیجوز فوق ذلک... واجمع العلماء علی ان من خاف من مکالمة احد وصلته مایفسد علیه دینه او یدخل مضرة فی دنیاه یجوز له مجانبته وبعده... فان هجرة اهل الاهواء والبدع واجبة علی مرالاوقات مالم یظهر منه التوبة والرجوع الی الحق-
(مرقاة المفاتیح ۹:۲۶۲ کتاب الادب، باب ماینهی من التهاجر والتقاطع الخ)

۲: د مانځه نه منع کول منع دی چې مونځ پرې نه ږدی. (۱)

۳: که مستحل نه وی نو عوام دې پرې وکړی او خواص دې نه کوی. (۲)

۴: د ولد الزنا جنازه کول جائز دی. (۳) وهوالموفق

## د جادوګر او ساحر حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې ساحر او جادوګر وی او د هغه دا فعل شرعی د ګواهانو نه ثابت شی چې د جادو په ذریعه په خلقو باندې جنات مسلط کوی او حتی چې د جادو په ذریعه خلقو له بیمارولو سره وژنی، د هغه څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: ناصر محمود... توښهر

---

۱) قال الله تبارک وتعالیٰ: ارأیت الذی ینهی عبدا اذا صلی۔
(سورة العلق آیت: ۱۰،۹ پاره: ۳۰)

۲) قال العلامة خلیل احمد سهارنفوری: قال الخطابی وترک النبی ﷺ الصلوٰة علیه معناه العقوبة له والردع لغیره عن مثل فعله... وقال اکثر الفقهاء یصلی علیه قلت انما ترک الصلوٰة علیه رسول الله ﷺ بنفسه الشریفة ولم ینه الناس عنها فهذا ینبغی ان لایصلی علیه کبائر الائمة والمقتدون من الناس واما غیرهم فیصلون علیه لئلا یضیع الفرض الکفائی ویؤید ذلک ماعند النسائی بلفظ اما انا فلا اصلی علیه وبدل علی الصلوٰة علی الفاسق حدیث صلوا علی من قال لا اله الا الله۔
(بذل المجهود ۴:۲۰۲ کتاب الجنائز، باب الامام یصلی علی من قتل نفسه)

۳) عن عمرو بن یحی رضی الله تعالیٰ عنه: قال صلیٰ رسول الله ﷺ علی ولد الزنا وامه ماتت فی نفاسها۔
(مصنف عبد الرزاق ۳:۵۳۴ کتاب الجنائز، باب الصلاة علی ولد الزنا والمرجوم)

**الجواب:** وبالله التوفيق...جادوګر او ساحر په ځمکه کې فساد کونکې دې، که په دې عمل کې ونیولې شي او اقرار هم وکړي او د ګواهانو په ذریعه دا د جادو عمل ثابت شي و حاکم او قاضي به هغه لره قتل کوي، وفي معين الحكام ۲۲۹ قال في النوازل الخناق والساحر يقتلان اذا اخذا لانهما ساعيان في الارض بالفساد فان تابا ان كان قبل الظفر بهما قبلت توبتهما وبعد ما اخذا لا ويقتلان كما في قطاع الطريق (۱) انتهى. وهو الموفق

## په مسلمانانو باندې د وسلې اوچتولو حکم

**سوال:** ما يقول العلماء الكرام في المسئلة الآتية: من شهر السلاح على واحد في جماعة معه او على عامة الجماعة هل يجوز قتل المشاهر لهذا الواحد او لاعوانه او لهذه الجماعة قد شهر عليهم، افتوني ايها العلماء مع التفصيل والحوالة من الكتب سريعاً توجروا ان شاء الله تعالىٰ لان فيه دفع الفساد العام وان لم يسع على هذه الورقة ضموا الورقة الثانية؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد جلال الدين مدير دار العلوم الاسلاميه زرګری

ضلع هنګو ... ۷ صفر ۱٤۰۵هـ

**الجواب:** الشاهر مباح الدم لا شيئ في قتله كما في الهندية ۶: ۷ ومن شهر على المسلمين سيفاً وجب قتله ولا شيئ بقتله وكذلك اذا شهر على رجل سلاحاً فقتله او قتله غيره دفعاً عنه فلا يجب بقتله شيئ ولا يختلف بين ان يكون بالليل او بالنهار في المصر او خارج المصر كذا في التبيين (۲). والله اعلم

---

۱) (معين الحكام للطرابلسى ۱۹۳ فصل فى عقوبة الساحر والخناق والزنديق)

۲) (فتاوىٰ هندية ۷: ۶ الباب الثانى فى من يقتل قصاصاً ومن لا يقتل)

وقال العلامة الحصكفي: ولا بقتل...[بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

## وادهٔ کړې لره اغوا کولو سره د قتلولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې الف: که یو سړې یوه منکوحه اغوا کړې نو خاوند دپاره د اغوا کونکی قتل هغه وخته پورې جائز دې یا نه ترڅو پورې چې هغه اغوا کړې شوې نه وی پرېښودلې؟

ب: د خاوند په شان د ښځې رشته دارو لره دا قتل جائز دې یا نه؟

ج: چې کله اغوا کونکې اغوا کړې شوې لره پرېږدی د دې نه پس خاوند لره د هغه قتلول تعزیرا جائز دی یا نه؟ د در مختار د دې عبارت ﴿ويقيمه كل مسلم حال مباشرة المعصية واما بعده فليس ذلك لغير الحاكم والزوج والمولى﴾ نه آخری صورت ثابتیږی یا نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولانا محمد سردار خادم دار الافتاء دار العلوم عربیه

تل... یکم اگست ۱۹۸۹ء

**الجواب:** قال في الكاملية ۴۶ يوجع بالضرب الشديد(۱) (خير الدين الرملي) واما عند مباشرة الزنا فجاز قتلهما ان كانا مطاوعين كما في شرح التنوير في باب التعزير(۲) ليس مرادهم اباحة القتل فليراجع الى ردالمحتار ۳: ۲۶۴ باب التعزير وقبيل باب السرقة(۳)۔ والله اعلم بالصواب

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] (معطوف على قوله ولا شيئ بقتله) من شهر سلاحاً على رجل ليلاً او نهاراً في مصر او في غيره۔ (الدرالمختار ۵: ۳۸۷ فصل فيما يوجب القود مالايوجبه)

۱ ﴾ (فتاوی کاملية ۴۶ باب التعزير، مطلب فيمن فر بزوجة الغير الخ)

۲ ﴾ قال العلامة الحصكفي: لوكان مع امرأته وهو يزنى بها او مع محرمه وهما مطاوعان قتلهما جميعا۔ (الدرالمختار ۱۹۷: ۳ باب التعزير مطلب يكون التعزير بالقتل)

۳ ﴾ قال العلامة الحصكفي: من حد او عزر فهلک فدمه هدر الا امرأة عذرها زوجها بمثل ما مر فماتت لان تاديبه مباح فيتقيد بشرط السلامة۔ قال العلامة الشامي: قوله فدمه هدر اى عندنا ومالک لان الامام مأمور بالحد والتعزير وفعل... [بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

## د بد فعلئ د بندولو د پاره حسب استطاعت کوشش کول ضروري دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين ددې مسئلې په باره کې چې زمونږ دکلي اکثرې جينکئ په زناکارئ کې اخته کيدو سره حاملې شوې، چې د هغوی حمل وضع کړې شو او د دې بدئ علم د کلي ټولو خلقو او د کلي امام ته هم دې، خو مصلحتا د بنديز څه کارروائي نه ده کړې شوې، په دې وجه دا ضروري شوې ده چې د قانون محمدي ﷺ فتوی ورکړې چې د کلي په خلقو او امام باندې څه فرائض عائد کيږي او په دې جرمونو باندې څه تعزير راځي. **بينواتوجروا**

المستفتي: خالق داد بمعرفت مولوي عزيز الرحمن ... ۲۴ مئی ۱۹۷۰ء

**الجواب:** ﴿ قال رسول الله ﷺ من رای منکم منکرا فليغيره بيده الحديث﴾ د دې په وجه باندې په ټولو مسلمانانو باندې د استطاعت مطابق د دې بد فعلئ بندول ضروري دي، کنه نو د الله پاک په نزد د سخت عذاب خطره موجود ده. (۱) فقط

---

... بقيه ازحاشيه گذشته ] المامور لا يتقيد بشرط السلامة قلت ومقتضى التعليل بالامر ان ذلک غير خاص بالامام فقد مر ان لکل مسلم اقامة التعزير حال مباشرة المعصية لانه مامور بازالة المنکر الا ان يفرق بانه يمکنه الرفع الى الامام فلم تتعين الاقامة عليه بخلاف الامام فتأمل۔ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۲۰۸ باب التعزير، قبيل باب السرقة)

۱) قال العلامة الملا على القاری: عن ابی سعيد الخدری ان رسول الله ﷺ قال من رأی ای علم منکم منکرا ای فی غيره من المؤمنين والخطاب للصحابة اصالة ولغيرهم من الامة تبعاً... وخلاصة الکلام من ابصر ما انکره الشرع فليغيره بيده ای بان يمنعه بالفعل بان يکسر الا لات... فان لم يستطع ای التغير باليد وازالته بالفعل لکون فاعله اقوی منه فبلسانه ای فليغيره بالقول وتلاوة ما انزل الله من الوعيد عليه... فان لم يستطع ای التغير باللسان ايضا فبقلبه بان لا يرضی به۔

(مرقاة المفاتيح ۹:۳۲۸ باب الامر بالمعروف، الفصل الاول)

## د ځاروی سره په بد فعلی باندې اقرار او د شهادت نه بغیر د تعزیر حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو هلك چې د هغه عمر تقریبا یولس کاله دې هغه د یوې غوا سره بد فعلی وکړه کوم چې یو سړی امین الله لیدلې دې، لیدلې ئې صحیح دې خو ګواه صرف یو دې، په دې وجه د تپوس کولو امر دا دې چې دا هلك د تعزیر قابل دې یا نه؟ او په دې مقام باندې د یو ګواه شهادت منظور دې یا نه، او د دې ځاروی سره به څه معامله کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی فضل ربی سکنه ډاګ ...٤ جمادی الاولی ١٣٩٠ھ

**الجواب:** چونکې دا جرم د حقوق العباد نه نۀ دې، او سره د دې نه اقرار موجود دې او نه مکمل شهادت موجود دې، لهذا په دې صورت کې د رعیت دپاره تعزیری کاروائی کول بې قاعدې امر دې، خصوصا چې د جرم کولو وخت هم تیر شوې دې وفی الهندیة ٢: ١٨٧ وینقسم (التعزیر) الی ماهوحق الله وحق العبد والاول یجب علی الامام ولا یحل له ترکه الا فیما اذا علم انه انزجر الفاعل قبل ذلك ویتفرع علیه انه یجوز اثباته بمدع شهد به فیکون مدعیا شاهدااذاکان معه آخرکذافی النهرالفائق قالوالکل مسلم اقامة التعزیرحال مباشرة المعصیة واما بعد المباشرة فلیس ذلك لغیرالحاکم (١). وهوالموفق

## ځاروی سره بد فعلی کونکی ته به د ثبوت نه پس حکومت سزا ورکوی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو وادۀ کړی سړی ښځه تقریبا د یو کال نه موجود نه دد هغه د خرې سره بد فعلی وکړه نو د دې څۀ حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: حبیب ګل هنګو ...٢٠ رمضان المبارك ١٤٠٨ھ

---

(١) (فتاوی هندیة ١٦٧: ٢ فصل فی التعزیر)

**الجواب:** تاسو په استفتاء کې دا نه دی ذکر کړې چې دا سړې اقرار کونکې دې یا انکاری دې او په دې باندې دوه معتمد ګواهان موجود دی یا نه. بهر حال د باقاعده ثبوت نه پس به حکومت هغه ته مناسب سزا ورکوی او دا خره به وژنی، او سیزی به ئې، په دې کې د عوامو مداخلت د وخت نه پس دې او نامنظور دې. (شامی ۲۶/۴)(۱) وهندیة(۲) وهوالموفق

## د موطوء ځاروی او هغې سره د بدفعلئ کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی د حلال ځاروی سره بدکاری کولو چې د هغې شرعی ثبوت موجود نه دې، د دې ځاروی څه حکم دې؟ آیا هغه حلال دې یا حرام؟ او د هغې د پیو څه حکم دې؟ او د بدفعلئ کولو والا څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا محمد یعقوب بلند کوٹ آزاد کشمیر ... ۱۹ مئی ۱۹۶۹ء

**الجواب:** مستحب دا ده چې دا ځاروې د مالك نه واخستلې شی او د ذبح کولو نه پس وسیزلې شی، خوراك د دې صحیح دې خو غوره نه دې او په دې مجرم باندې حد نشته، خو مسلمان حاکم باندې ضروری ده چې هغه ته تعزیر او سزا ورکړی. (۳) فی الدرالمختار ولا یحد بوطی بهیمة بل یعزر وتذبح ثم تحرق،

---

۱) قال العلامة الحصكفی: ولایحد بوطء بهیمة بل یعزر وتذبح ثم تحرق۔
(الدرالمختار ۳:۱۷۰ كتاب الحدود، مطلب فی وطء الدابة)

۲) وفی الهندیة: قالوا لكل مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة واما بعد المباشرة فلیس ذلك لغیر الحاكم۔ (فتاوی عالمگیریة ۲:۱۶۷ فصل فی التعزیر)

۳) قال العلامة ابن نجیم: لا یحد بوطء بهیمة ... الا انه یعزر لما بینا والذی یروی انها تذبح البهیة وتحرق فذلك لقطع التحدث به ولیس بواجب قالوان كانت الدابة مما لا یؤكل لحمها تذبح وتحرق لما ذكرنا وان كانت مما تؤكل تذبح وتوكل عند ابی حنیفة وقالا تحرق هذه ایضا هذا ان كانت البهیمة للفاعل فان كانت لغیره...

[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

قال العلامة الشامی فی ردالمحتار ٣:٢١٣ وهذا اذاكانت مما لايوكل فان كانت مماتوكل جازاكلها عنده وقالاتحرق ايضاً(١).

اوکه دا څاروې ذبحه کړې شی او ددې پۍ استعمال کړې شی نو حرام نه دی بلکې مکروه دی.فی الدرالمختار: ویکره الانتفاع بها حية وميتة فقط(٢).

وهوالموفق

## بیزې (چیلئ) سره د بد فعلئ کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې کوم سړې د بیزې سره بد فعلی وکړی د داسې سړی دپاره څه حکم دې؟ د بدفعلئ کولو صرف یو گواه دې کوم چې عاقل او بالغ دې، او فاعل د قسم خوړلو نه منحرف دې باقی د کوم څاروی سره چې دا ناجائز معامله کړې شوې ده، د هغې د غوښې او څرمنې نه فائده اخستل د شریعت په نزد جائز دی یا نه؟ په شریعت محمدی کې د فاعل او مفعول دپاره څهٔ حکم دې، هغه چیلئ که خرڅه کړې شی نو د هغې څه حکم دې؟

المستفتی: علی زمان مقام کری کوټ... ١٧ ستمبر ١٩٧٤ء

**الجواب:** په دې سړی باندې چا چې بد کار کړې دې ضروری ده چې د الله پاك نه معافی وغواړی او د حاکم دپاره جائز ده چې هغه ته څه تعزیر ورکړی كما فی الهندية١٨٧/٢ قالوالكل مسلم اقامة التعزيرحال مباشرة المعصية واما بعد المباشرة فليس ذلك لغيرالحاكم.(٣) او چیلئ که د دې واطی خپله

... بقیه ازحاشیه گذشته] ففی الخانية كان لصاحبها ان يدفعها اليه بالقيمة.
(البحر الرائق ٥:١٧ كتاب الحدود، باب الوطء الذی يوجب الحدوالذی لا يوجبه)

١) (الدرالمختار مع ردالمحتار ٣:١٧٠ كتاب الحدود، مطلب فی وطء الدابة)

٢) (الدرالمختار مع ردالمحتار ٣:١٧٠ كتاب الحدود، مطلب فی وطء الدابة)

٣) (فتاویٰ هندية ٢:١٦٧ فصل فی التعزير)

وی نو غوره دا ده چې هغه ذبح کړی او غوښه او څرمن ئې وسیزی، او دا هم جائز ده چې هغه وخوری، او په واطی باندې دا ضروری او واجب نه دی چې هغه ذبح کړی، او که دا چیلئ د دې واطی خپله نه وی نو د هغه مالك دپاره مستحب دی چې په هغه واطی باندې خرڅه کړی او هغه ذبح کړی. **مأخوذازرد المختار ۱۵۵/۳** (۱) **وهوالموفق**

•

...

۱) قال العلامة الحصكفی: ولا يحد بوطء بهيمة بل يعزر وتذبح ثم تحرق ويكره الانتفاع بها حية وميتة مجتبى (الدرالمختار)،

وقال العلامة ابن عابدين: (قوله وتذبح ثم تحرق) ای لقطع امتداد التحدث به كلما رؤيت وليس بواجب كما فی الهداية وغيرها، وهذا اذا كانت مما لا يؤكل فان كانت تؤكل جاز اكلها عنده وقالا تحرق ايضاً، فان كانت الدابة لغير الواطی يطالب صاحبها ان يدفعها اليه بالقيمة ثم تذبح۔

(ردالمحتار مع الدرالمختار ۳:۱۷۰ كتاب الحدود، مطلب فی وطء الدابة)

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاویٰ فریدیه

(شپږم جلد)

# باب حد الزنا

بسم اللہ الرحمن الرحیم

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف به

# فتاوی فریدیه

# باب حد الزنا

قال اللہ تبارک وتعالیٰ:

اَلزَّانِيَةُ وَالزَّانِيْ فَاجْلِدُوْا كُلَّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا مِائَةَ جَلْدَةٍ ۠ .

(سورۃ النور......۲)

.........

# باب حد الزنا

## د قاضی او حاکم نه علاوه بل څوک د زنا حد نه شی جاری کولی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا د زنا د حد جاری کول بغیر د قاضی او حاکم نه صحیح دی یا نه؟ د فقه حنفی په رڼا کې وضاحت وفرمایئ؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد وارث هری پور هزاره... ۲۵ ربیع الاول ۱۳۹۰ھ

**الجواب:** حدود سوا د قاضی او حاکم نه بل څوک نه شی جاری کولی

لما روی ابن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه وابن عباس وابن الزبیر موقوفاً ومرفوعاً اربع الی الولاة، الحدود والصدقات والجمعات والفئ (مرقاة)(۱) وفی الهندیة: ورکنه (الحد) اقامة الامام او نائبه فی الاقامة(۲: ۱۶۰)(۲). فقط وهوالموفق

## د حدود او دیت فیصله محکم نه ده د شرعی قاضی منصب دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دوه کسان د یو دشمن په قتل پسې روان شو، د قتلولو په وخت دواړو بیلې بیلې ټوپکې استعمال کړې یو مخکې او بل وروستو خو په اول ډز کونکی سره ګولۍ باندې یوه جینۍ ولګیده، اوس د اول ډز کونکې منکر دې، ګواه هم څوک نشته،

۱) (مرقاة المفاتیح ۷:۱۳۸ کتاب الحدود)

۲) (فتاویٰ هندیة ۲:۱۴۳ کتاب الحدود، الباب الاول)

وقال العلامة ابن عابدین: بخلاف الحدود فانه لم یثبت تولیتها الا للولاة (ردالمحتار ۳:۱۹۸ کتاب التعزیر، مطلب یکون التعزیر بالقتل)

تاسو څه فیصله وکړئ چې جرګه یوې فیصلې ته ورسیږي او د دیت وغیره حکم بیان کړئ؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: شاد محمد جامعة علوم القرآن والسنة
نمک منډي پېښور...۲۶ مارچ ۱۹۸۹ء

**الجواب**: د حد، قصاص او دیت فیصله محکم منصب نه دې په دې کې حاکم شرعی ته مرافعه ضروري وي، چې هغه باقاعده فیصله کولو سره حکم بیان کړي، کمافی شرح المجلة مادة:۱۸۴۱(۱) وهوالموفق

## د حدود اجراء د شرعی قاضی او حکام حق دې

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې بعض جرمونه داسې دی چې د هغې سزاګانې په شریعت کې کوړې ورکول او قصاص اخستل دی، خو دلته د جرګو په ذریعه هغه خلقو ته نورې سزاګانې ورکولې شی، او شرعی حدود نه شی جاری کولې. بله دا چې دلته قاضی شرعی او باقاعده حکومتی نظام نشته، نو آیا عوامی جرګه حدود نه شی جاری کولې. **بینواتوجروا**

**المستفتی**: رستم حیات...لنډی کوتل بازار

**الجواب**: د حدود جاری کول د حکام او د هغوی د طرف نه د مقرر شوې قاضیانو وغیره حق دې، مشرانو او عوامی جرګو ته د حدود جاری کولو اختیار نشته. وفی الهندیة ۱۴۳/۳ ورکنه (ای الحد) اقامة الامام او نائبه فی الاقامة(۲) وکذافی البدائع(۳). وهوالموفق

---

۱) قال الشیخ محمد خالد الآتاسی: ومن جهة المحکوم به ان لا یکون فی حد ولا قود ولادیة. (شرح المجلة ۱۷۲:۶ مادة: ۱۸۴۱)

۲) (فتاویٰ عالمگیریة ۱۴۳:۳ کتاب الحدود)

۳) قال العلامة الکاسانی: واما شرائط جواز اقامتها فمنها...[بقیه حاشیه برصفحه آئ

## د زنا او لواطت جرم په اعتراف یا شهادت شرعی سره ثابتیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید په بکر باندې د عمل قوم لوط علیه السلام الزام لګوی او وائی چې د نن نه تقریبا څلور کاله مخکې ما بکر د دې جرم په کولو باندې لیدلې دې، د دې خپل الزام په ثبوت کې خالد او بصیر د ګواه په طور پیش کوی. خالد د دې پارټۍ یو ممبر دې چې په هغې کې زید او بکر دواړه شامل دی، چې کله د خالد نه د دې په باره کې معلومات کولې شی نو د ټولو ممبرانو او صدر مخکې خالد مکمل طور د لاعلمۍ اظهار کوی، بصیر کوم چې د زید ګواه دې هغه دوه کاله مخکې د دې جماعت صدر او نور ممبرانو د هغه د بعض خبرو د وجې نه منافق بللې وو، د هغه د منافقت اعلان ئې هم کړې وو، په دې قبیح فعل کې د زید ذات هم ملوث دې د دې څلورو کالو په موده کې نه صرف دا چې زید په بکر پسې مونځونه کول بلکې د دې نظم د لاندې ئې کار هم کولو بلکې زید د بکر نه ډیر ځله د دې اصرار وکړو چې هغه د دې د سکه خور سره واده وکړی، د جماعت امیر ته ئې هم ددې خواهش اظهار وکړو چې بکر دې د زید د خور سره واده وکړی خو د دې نه مخکې هیڅ قسم الزام نه دې لګولې شوې، بکر هم په دې الزام سره د خپل براءت اظهار کوی، د بکر سره د جرم د ارتکاب دپاره چې د کوم نوم اخستلې شی هغه د دې جرم نه د براءت اظهار کوی، د کتاب او سنت په رڼا کې د مسئلې وضاحت وکړئ؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** سائنس ماسټر هائی سکول کراچی ۲ ... ۲۶ فروری ۱۹۷۵ء

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] ما یعم الحدود کلها ومنها ما یخص البعض دون البعض واما الذی یعم الحدود کلها فهو الامامة وهو ان یکون المقیم للحد هو الامام او من ولاه الامام وهذا عندنا۔

(بدائع الصنائع ۷:۵۷ کتاب الحدود)

**الجواب:** د خالق په نزد کوم چې عالم الغیب والشهادة دې هغه سړې مجرم او فاسق دې کوم چې د دې امر قبیح مرتکب شوې وی او توبه ئې نه وی کړې (۱) او د مخلوق په نزد یعنی قانونی مجرم دا دې چې په هغه باندې د اعتراف یاد شهادت د وجې نه ثابت شی. (۲) او په دې صورت مسئوله کې د یوې ډلې سره دوه ګواهان معتمد نه دی، لهٰذا په دې کې به یو هم مجرم نه وی (۳) وهوالموفق

## د کوړې تعریف او ساخت

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په شرعی طریقه باندې د کوړې تشریح څه ده؟ کوړه د کوم څیز جوړه پکار ده؟ او د دې ساخت څنګه کیدل پکار دی؟ او د دې څومره اوږد والې او څومره پلن والې کیدل پکار دی؟

۲. آیا بید، چابك او لخته د کوړې شرعی مفهوم لره پوره کوی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** مبلغ الاسلام بالا ماڼۍ پیښور ... ۱۹ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** کوړه، څرمن، چابك، د کهجورې څانګې او پیزار ته وائی، د دې

---

۱) قال الامام شمس الدین الذهبی: واجمع المسلمون علی ان التلوط من الکبائر التی حرم الله تعالیٰ: اتاتون الذکران من العالمین وتذرون ما خلق لکم ربکم من ازواجکم بل انتم قوم عادون (سورة الشعراء) ای مجاوزون من الحلال الی الحرام ... قال ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنه ان اللوطی اذا مات من غیر توبة فانه یمسخ فی قبره خنزیراً.
(الکبائر للامام الذهبی ۶۷،۶۶ الکبیرة الحاویة عشرة اللواطة)

۲) وفی الاختیار لتعلیل المختار: ویثبت بالبینة والاقرار لانهما حجج الشرع وبهما تثبت الاحکام. (الاختیار لتعلیل المختار ۴:۹۴ کتاب الحدود)

۳) قال العلامة الشامی: یکفی فی الشهادة علیها (اللواطة) عدلان لا اربعة خلافا لها. (ردالمحتار ۳:۱۷۲ کتاب الحدود، مطلب لا تکون اللواط فی الجنة)

دپاره هیڅ خاص ماده نشته او نه د دې دپاره څه خاص اوږدوالې او پلن والې مقرر دي. (۱)

۲: دا څیزونه د کوړې په مفهوم کې داخل دی. (۲) وهوالموفق

## مروجه کوړې ورکول د شریعت خلاف دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې مجرم ته کوړې څوك ورکولې شی؟ هم دغه شان د مروجه کوړو څه حکم دې؟ بینواتوجروا

**المستفتی:** مبلغ الاسلام بالا مانئ پیښور ... ۱۹ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

---

(۱) وعن یحیی بن ابی کثیر ان رجلا اتی النبی ﷺ فقال یا رسول الله ! انی اصبت حداً فاقمه علی، فدعا رسول الله ﷺ بسوط فاتی بسوط شدید له ثمرة،فقال سوط دون هذا، فاتی بسوط مکسور لین، فقال سوط فوق هذا فاتی بسوط بین سوطین، فقال هذا، فامر به فجلد. (اعلاء السنن ١١:٥٦٤ باب صفة السوط فی الجلد)

(۲) په حدود اوتعزیراتو کې استعمالیدونکې کوړه چابك، دُرې ساخت او جوړښت متوسط کیدل ضروری دی که دا د هر یو څیزنه جوړ وی، اوکه د لرګی وی نو بیا نرمه شان لښته (چوکه) پکارده، په همسا باندې کوړه نه صادقیږي.

قال العلامة الزیلعی: بسوط لا ثمرة له متوسطا ان یضرب بسوط لا عقدة له ضربا متوسطاً... وعن علی رضی الله تعالیٰ عنه انه کسر ثمرته ولو لم یکسر الثمرة بعد کل ضربة بضربتین... والضرب المتوسط هو المؤید غیر الجارح لان الجارح یفضی الی التلف او یبقی فی جسده اثر یشینه ولهذا یکسر عقدته وغیر المؤید لا یفید والواجب التادیب دون الهلاک. (تبیین الحقائق شرح الکنز ٣:١٧٠ کتاب الحدود)

وقال العلامة ابن نجیم المصری: (بسوط لاثمرة له متوسطا) ای لا عقدة له لان علیا رضی الله تعالیٰ عنه لما اراد ان یقیم الحد کسر ثمرته والمتوسط بین المبرح وهو الجارح وغیر المولم لا فضاء الاول الی الهلاک وخلو الثانی عن المقصود وهو الانزجار کذا فی الهدایة وحاصله انه المولم غیر الجارح. (البحر الرائق ٥:٩ کتاب الحدود)

**الجواب:** د حکومت د طرف نه به متعین سړي کوړې ورکوی (۱) د کتب فقه نه معلومیږي چې دامروجه کوړې ورکول د شریعت خلاف دي. (۲) وهوالموفق

## د زنا په شک کې چاړه قتلول جائز نه دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په علاقه کې بعض وخت داسې وشي چې خاوند یا ورور وغیره خپله ښځه یا خور صرف په دې وجه باندې قتلوي چې هغه ته د هغې چا سره د بدکارئ کولو شک وی، مسئله حل طلب دا ده چې آیا دا ښځه او سړې کوم چې صرف د شک د وجې نه قتلولې شي، شهید دي یا نه او قاتل به په دې ګناهګار وي یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي:** محمد دراز خان متعلم دار العلوم اسلامیه لکی مروت... ۲۸ جنوری ۱۹۸۶ء

**الجواب:** دا قاتل ظالم او جاهل دې (۳) او مقتول او مقتوله مظلومین دي.

---

۱) قال العلامة الدکتور وهبة الزحيلی: هناک شرائط لاقامة الحد... اما مايعم الحدود کلها فهو الامامة، واما ما يخص حد الرجم فهو شرط البداية من الشهود فی الرجم... فاذا کان الحد جلداً فهو الذی يقيمه او ينيب عنه احداً.
(الفقه الاسلامی وادلته ۷:۵۳۸۳ المبحث الخامس، اقامة الحد علی الزانی)

۲) قال العلامة ابن نجيم: (قوله ويضرب الرجل قائما فی الحدود وغير ممدود)... ثم قيل غير ممدود فقد قيل المدأن يلقی علی الارض ويمد کما يفعل فی زماننا وقيل ان يمد السوط فيرفعه الضارب فوق رأسه وقيل ان يمد بعد الضرب وذلک کله لا يفعل لانه زيادة علی المستحق- (البحر الرائق ۵:۹،۱۰ کتاب الحدود)

۳) قال العلامة الذهبی: الکبيرة الثانية قتل النفس ، قال تعالیٰ: ومن يقتل مؤمنا متعمداً فجزاؤه جهنم خالداً فيهاو غضب الله عليه ولعنه واعد له عذابا عظيماً.
(الکبائر للامام الذهبی ۲۵ الکبيرة الثانية)

بغیر د مشاهدې او شهادت نه قتلول د کفارو په قانون کې هم ناجائز دی (۱)

والله اعلم بالصواب

**بغیر د اقرار او شهادت شرعی نه د زنا په شک کې قتلول ظلم او ناجائز دی**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د وادۀ کړې ښځې سره نکاح وکړه، حمل ئې هم راغلو بیا د هغه سړی شك راغلو چې دا ښځه د فلانی سړی نه حامله شوې ده، دا خاوند زانیه او مزنیه لره په ګولۍ سره اولی. د هغه څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ظفر الحق تیراوی متعلم حقانیه

خادم خاص شیخ الحدیث صاحب ... ۲۷ نومبر ۱۹۸۶ء

**الجواب:** په صورة مسئوله کې نه باقاعده اقرار موجود دې او نه شهادت شرعیه قائم شوې دې (۲) پس دا قاتل ظالم او فاسق دې (۳) والله الموفق

---

(۱) قال العلامة المرغینانی : ومنها الشهادة ببقیة الحدود والقصاص یقبل فیها شهادة رجلین لقوله تعالی: واستشهدوا شهیدین من رجالکم.
(الهدایة ۳:۱۵٤ کتاب الشهادة)

وفی شرح المجلة: کذلک المتیقن عدم ثبوته لا یحکم بثبوته بمجرد الشک لان الشک اضعف من الیقین فلا یعارضه ثبوتا وعدماً... لان ما لیس ثابتا بیقین لا یثبت بالشک.

(شرح المجلة ۱:۱۸ المادة : ٤ الیقین لا یزول بالشک)

(۲) وفی الاختیار لتعلیل المختار : ویثبت بالبینة والاقرار لانهما حجج الشرع وبهما تثبت الاحکام. (الاختیار لتعلیل المختار ٤:٦٤ کتاب الحدود)

(۳) قال العلامة الذهبی : الکبیرة الثانیة قتل النفس قال تعالی: ومن یقتل مؤمنا متعمداً فجزآئه جهنم خالداً فیها وغضب الله علیه ولعنه اعد له عذاباً عظیما.
(الکبائر للامام الذهبی ۲۰ الکبیرة الثانیة)

## د محارم سره په نکاح کې د عقد د شبه د وجې نه حد ساقط دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د علم خاوند یو سړې وائی چې که چا نعوذ بالله د مور سره زنا وکړه نو په هغه باندې د زنا حد ثابت نه دې، چې کله هغه ته اوئیلې شی چې ﴿ الزانیة والزانی فاجلدوا کل واحد منهما ﴾ څه مطلب دې نو هغه د محارم او د نکاح مسائل بیانول شروع کړی د دې مسئلې څه حقیقت دې؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** حاجی گل محمد سکندر آباد کالونی، حیدر آباد... ۸ مئی ۱۹۷۷ء

**الجواب:** چې کله د محارم سره څوك نکاح وکړی نو د عقد د شبهې د وجې نه ترې حد ساقط شی هکذا فی الدر المختار(۱) وغیره(۲) باب الحدود. وهو الموفق

## د زنا د پاره کوشش کونکې فاسق او قابل تعزیر هجران دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې خپلې خورزې لره نیولو سره د زنا بالجبر کوشش کوی خو خلقو ترې خلاص کړو، د دې سړی څه حکم دې؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** محمد سردار ضلع هزاره... ۲ شعبان ۱۹۸۷ء

**الجواب:** دا سړې فاسق دې که توبه ئې نه وی کړې او د اصرار په تقدیر باندې

---

۱) قال العلامة الحصکفی: وفی المجتبیٰ: تزوج بمحرمه او منکوحة الغیر او معتدته ووطئها ظاناً الحل لا یحد ویعزر وان ظانا الحرمة فکذلک عنده خلافا لهما.
(الدر المختار ۳:۱٦۹ کتاب الحدود، مطلب اذا استحل المحرم علی وجه الظن الخ)

۲) قال العلامة ابن نجیم: (قوله بمحرم نکحها) ای لا یجب الحد بوطء امرأة محرم له عقد علیها عند ابی حنیفة وقالا علیه الحد.
(البحر الرائق ۵:۱۵ کتاب الحدود، باب الوطء الذی یوجب الحد الخ)

هغه سره په غم ښادئ کښې باقاعده بائیکاټ ضروری دی. (١) وهوالموفق

## د اغوا په معامله کښې راضی نامه ممنوع شرعی نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې یو سړې د یو معزز خاندان د منکوحه جینئ سره چې د هغې تر اوسه پورې رخصتی نه ده شوې، په زبردستئ سره وتختوی، او هغې سره یوه هفته زنا وکړې شی، که د سترګو لیدلې ګواهان نه وی خو د جینئ د بیان مطابق زنا شوې ده، د جینئ د ترۀ په درخواست باندې د شریعیت د حد نمبر ۱۱ د لاندې د اغوا کونکی ضمانت په حیثیت د زانی مسترد شو، او هغه حوالات ته ولیږلې شو، او اوس د هغه قوم یو خای کیدو سره راضی نامه کوی نو آیا دا راضی نامه کیدې شی یا نه؟ ځکه چې زانی د الله مجرم دې، که راضی نامه جائز وی نو د اغوا کونکی، مغویه او د راضی نامه کونکی افراد کوم چې د خپلې مرضئ مطابق راضی نامه وکړی د هغه څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: خلیل الرحمن... ٢٦ جون ١٤٠١هـ

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې شهادت شرعی او اعتراف د مفقود کیدو د وجې نه حد شرعی نه شی جاری کیدلې. (٢) وهوالموفق

---

(١) قال العلامة علی بن سلطان القاری : قال الخطابی رخص للمسلم ان یغضب علی اخیه ثلاث لیال لقلته ولا یجوز فوقها الا اذا کان الهجران فی حق من حقوق الله تعالیٰ فیجوز فوق ذلک... واجمع العلماء علی ان من خاف من مکالمة احد وصلته ما یفسد علیه دینه او یدخل مضرة فی دنیاه یجوز له مجانبته وبعده... فان هجرة اهل الاهواء والبدع واجبة علی مر الاوقات مالم یظهر منه التوبة والرجوع الی الحق.

(مرقاة المفاتیح ٩:٢٦٢ باب ماینهی عنه من التهاجر والتقاطع الخ)

(٢) قال العلامة المودود الموصلی : ویثبت بالبینة والاقرار [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

البته تعزیرجاری کیدې شی (۱) چې دا دحکومت په اختیارکې دې اوچونکې په دې معامله کې د جینئ او دهغې د خاندان ښه په ښکاره بې عزتی هم شوې ده لهذا په دې کې راضی نامه کول شرعی ممنوع نه دی (۲). وهوالموفق

## په چا باندې د بهتان لګونکی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې چه یو سړې د زنانو بې بنیاد او شری خبرې اوریدلو سره د نیك شریف او بې ګناه سړی خلاف بهتان جوړوی چې هغه سړې بدنام شی نو د دې بهتان لګونکی څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نذیر احمد .....مئی ۲۱... ۱۹۷۳ء

**الجواب:** په شرط د صدق دا سړې د دروغو ویلو او بهتان لګولو د وجې نه فاسق دې او مردود الشهادة دې (۳) لحدیث مسلم: **واذاقلت مالیس فیه فقد بهته** (۴) په دې باندې توبه کول او د هغه شریف انسان نه معافی غوښتل

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] لانهما حجج الشرع وبهما تثبت الاحکام۔
(الاختیار لتعلیل المختار ۴:۹۴ کتاب الحدود)

۱) قال العلامة الحصکفی: وعزر کل مرتکب منکر او مؤذی مسلم بغیر حق بقول او فعل... وکل مرتکب معصیة لاحد فیها، فیها التعزیر۔ (الدرالمختار ۳:۱۹۹ باب التعزیر)

۲) وفی الهندیة: لان الصلح عن حقوق الله تعالیٰ باطل ویجب علیه رد ما اخذ ویجوز الصلح عن التعزیر۔ (فتاویٰ هندیة ۲:۲۳۰ کتاب الصلح الباب الاول)
وفی البدائع: ویجوز الصلح عن التعزیر لانه حق العبد۔ (بدائع الصنائع ۵:۶۰ کتاب الصلح، فصل واما الذی یرجع الی المصالح)

۳) قال العلامة السغدی: واما التی ترد لاجل التهمة فهی علی ستة عشر وجهاً... والثانی معلن الفسق والفجور۔ (النتف فی الفتاویٰ ۴۹۰ کتاب الشهادة: ردالشهادة بالتهمة)

۴) (مشکوٰة المصابیح ۴۱۲ باب حفظ اللسان والغیبة) ...[بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

ضروري دي. (۱)

**نوټ**: چونکې په پاکستان کې شرعي حدود نافذ نه دي په دې وجه حد قذف په هغه باندې نافذ کول ګران کار دې. **وهوالموفق**

## د زنا نه پس د زاني خاندان د وطن نه شړل. په خلاف ورزئ باندې مالي جرمانه او خپل مینځ کې د نکاح شرط لګول

**سوال**: څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه رنډه ښځه په زنا سره حامله شوه هغې یو هلک وزیږولو بیا د هغوی خپل مینځ کې نکاح په دې لاندې شرطونو باندې منعقد کړې شوه،

واضحه دې وي چې د جینئ د خاندان دوه سوه کورونه دي او د جینئ خاندان په درې کورونو باندې مشتمله دې

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] وفی المرقاة : (وفی روایة اذا قلت لاخیک مافیه فقد اغتبته واذا قلت مالیس فیه فقد بهته) المتبادر منه انها روایة لمسلم ولیس کذلک بلک روایة للبغوی فی شرح السنة علی ما بینه السید، قال میر ک هذه الروایة لیست فی واحد من الصحیحن وانما رواه صاحب المصابیح فی شرح السنة باسناده عن ابی هریرة رضی الله تعالیٰ عنه۔

(مرقاة المفاتیح ۹:۱۴۳ باب حفظ اللسان والغیبة والشتم)

(۱) قال العلامة وهبة الزحیلي : اشترط العلماء لصحة التوبة شروط معینة... احدها، الاقلاع عن المعصیة فی الحال ثانیها، الندم علی المعصیة والمخالفة، ثالثها: العزم علی الایعود الی مثل تلک المعصیة ابداً فی المستقبل...وان کانت المعصیة تتعلق بحق شخصی لانسان فشرطها اربعة وهی الثلاثة السابقة... وان کان الفعل قذفا ونحوه مکن المقذوف منه او طلب عفوه۔

(الفقه الاسلامی وادلته ۷:۵۵۴۱ کتاب الحدود، نظام التوبة واثره فی العقوبات)

۱: دا واقعه عدالت ته رسول د کلي په خلقو باندې لازم دي یا نکاح لره منعقد کولو سره د معافئ جواز پیدا کول صحیح دي؟

۲: هلك مجبور کړې شو او په هغه باندې دا جرم ومنل شو او اقرار پرې وکړې شو او اقرار حد ته ورسیدلو.

۳: دیرش زره روپئ مهر کیښودل شو، د دې حیثیت هم بیان کړئ؟

۴: په بل وادهٔ باندې ئې پابندي ولګول شوه چې هلك به دویم وادهٔ نه کوي.

۵: د هلك د وروڼو خویندو او د مور او پلار د ټولو جائیدادي حقوق به د زاني هلك او زانیه په ملکیت کې وي.

۶: د هلك خاندان بې ګناه کسان د دوه کالو دپاره جلا وطن کړې شو، صرف یوه جینئ د جائیداد د حفاظت دپاره پاتې کیدې شي خو هغه هم د مور او پلار کور ته نه شي تلې، که خلاف ورزي ئې وکړه نو د خاندان هر یو کس به پنځه پنځه سوه روپئ جرمانه وي، د دې حل بیان کړئ چې مونږ خپله محاسبه وکړو او معامله صحیح کړو؟ بینواتوجروا

المستفتي: محمد رفیق کوټلي تحصیل مري

**الجواب:** علی ترتیب السوالات: ۱: عدالت ته رسول ئې نه ضروري دي او نه افضل (۱) خو صورت ثانیه لره په عمل کې راوستل ډیر مناسب دي.

۲: د دې اقرار نه رجوع صحیح ده. (۲)

---

۱) قال العلامة المودود الموصلی: ان الشهود اذا عاینوا الفاحشة فهم بالخیار ان شاؤوا شهدوا به حسبة لاقامة الحد وان شاؤوا ستروا علی المسلم حسبة ایضاً. (الاختیار لتعلیل المختار ۴:۹۶ کتاب الحدود)

۲) قال العلامة ابن نجیم: قوله فان رجع عن اقراره قبل الحد اوفی وسطه خلی سبیله لان الرجوع خبر محتمل للصدق کالاقرار ولیس احد یکذبه فیه فتحقق الشبهة بالاقرار... قال فی الخانیة رجل اقر ...[بقیه حاشیه برصفحه آئنده

۳: د طرفین په مرضۍ سره جائز ده. (۱)

۴: د شریعت د آزادۍ ورکولو باوجود پابندی لګول بې فائدې کار دې (۲)

۵: دا تعزیر بالمال دې چې حرام دې او ناقابل تنفیذ دې. (۳)

۶: دا د یهودیت او جاهلیت باطل رسم دې. (۴) مختصره دا چې د دوارو نکاح او نور تعزیرات ختمول پکار دي.

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] عند القاضی بالزنا اربع مرات فامر القاضی برجمة فقال والله ما اقررت بشیئ یدرأ عنه الحد.

(البحر الرائق ۵:۷ کتاب الحدود)

۱) وفی الاختیار لتعلیل المختار: والواجب الاصلی مهر المثل لانه اعدل فیصار الیه عند عدم التسمیة بخلاف حالة التسمیة لانهم رضوا به فان کان اقل من مهر المثل فقد رضیت بالنقصان وان کان اکثر فقد رضی بالزیادة، قال علیه الصلوٰةوالسلام المهر ما تراضی علیه الاهلون.

(الاختیار لتعلیل المختار ۳:۱۲۸ کتاب النکاح، فصل فی احکام المهر)

۲) قال الله تبارک وتعالیٰ: فانکحوا ما طاب لکم من النساء مثنیٰ وثلٰث وربٰع فان خفتم الا تعدلوا فواحدة. (سورة النساء آیت: ۳)

۳) قال العلامة الحصکفی: لاباخذ مال فی المذهب... وفی المجتبیٰ انه کان فی ابتداء الاسلام ثم نسخ.

(الدرالمختار ۳:۱۹۵ کتاب التعزیر، مطلب فی التعزیر باخذ المال)

٤) قال العلامة السهارنفوری: باب لا یؤخذ بجریمة ای بجنایة ابیه واخیه وکان فی الجاهلیة ان الرجل اذا جنیٰ جنایة یأخذون بهما اباه او اخاه او من کان من قبیلته فابطله الشرع... قال رسول الله ﷺ اما ان لا یجنی علیک ولا تجنی علیه ای لا یؤخذ بجنایتک ولا تؤخذ بجنایته وقرأ رسول الله ﷺ ولا تزر وازرة اخریٰ.

(بذل المجهود فی حل ابی داؤد ۵:۱۶۱ کتاب الدیات، باب لایؤخذ الرجل بجریمة ابیه واخیه)

## د مسلمانې ښځې سره د کافر نکاح او د نه جدا کیدو په صورت کې د قتل مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوې مسلمانې زنانه د کافر سره نکاح وکړه، اوس دواړه نه جدا کیږی نو آیا د هغوی قتلول جائز دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم........محرم الحرام ۲۹ ..... ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که دا مسلمه او کافر دواړه مطاوعین وی او هغوی دا اقدام په رضا او رغبت سره کړې وی نو که د هغوی د جدایئ بغیر د قتل نه بل څه ذریعه نه وی نو په هغوی کې د اصرار کونکی قتل جائز دې. (ماخوذازهندیه ۵: ۳۴۷)

وهوالموفق

## د نوی مسلمان شوی سړی د پخوانئ مسلمانې سره د اولیاء د اجازت نه بغیر نکاح او د نه جدا کیدو په صورت کې د تعزیر مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو نوی مسلمان د پخوانئ مسلمانې سره د اولیاء د اجازت نه بغیر نکاح وکړه، اولیاء په دې باندې راضی نه دی، که اولیاء په هغوی کې یو تن لره قتل کړی نو آیا دا به جائز وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم... محرم الحرام ۲۹ .... ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د نوی مسلمان سره د زړې مسلمانې نکاح بغیر د اولیاء د اجازت نه کالعدم وی، پس که د مسلمانې د واپسئ او آزادئ بل څه حل نه وی نو د قتل اقدام جائز دې. (ماخوذازهندیة باب الکفاءت) (۱)

---

۱) وفی الهندیة: وروی الحسن عن ابی حنیفة رحمه الله تعالیٰ ان النکاح لا ینعقد وبه اخذ کثیر من مشایخنا رحمهم الله تعالیٰ کذا فی المحیط والمختار فی زماننا للفتویٰ روایة الحسن۔

(فتاویٰ هندیة ۱: ۲۹۲ کتاب النکاح، الباب الخامس فی الاکفاء)

وباب التعزير (١) وهوالموفق

## په دار الاسلام کې د کافر په شاهدی ثابت شوې لوطی ته به تعزیر ورکولې شی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په عدالت کې د گواهانو سره مدعی په یو سړی دعوه وکړه چې هغه ما سره لواطت کړې دې حال داچې گواهان او مدعی دواړه کرسچن (نصاری) دی، او مدعی علیه منکر دې، او دا واقعه په سعودی عدالت کې وړاندې کړې شوه، نو د احنافو په نزد که مدعی علیه لوطی ثابت شی نودهغه دپاره به حد شرعی څه وی؟بینواتوجروا

المستفتی: حافظ محمد ایوب..... اکتوبر ۲ ..... ۱۹۸۹ء

**الجواب:** په صورة مسئوله کې که دا مدعلی علیه (ملزم) مسلم وی یا غیر مسلم، په هغه باندې به حد شرعی نه شی جاری کولې، بلکه تعزیر به ورکولې شی، ځکه چې اول به دا گورو چې سعودی عرب دار الاسلام دې یا دار المسلمین دې او که دار الامان دې. امام ابوحنیفه او صاحبین ﷫ چې د یو وطن د دار الاسلام یا دار الحرب کیدو دپاره چې کوم شرطونه مقرر کړې دی هغه په دې وطن کې د څه حده پورې موجود دی. (٢) **ورجحوا التسمية بالاول**، او

---

١) وفی الهندية: سئل الهندوانی رحمه الله تعالیٰ عن رجل وجد مع امرأته رجل ایحل له قتله قال ان کان يعلم انه ينزجر عن الزنا بالصياح والضرب بما دون السلاح لا يحل وان علم انه لا ينزجر الا بالقتل حل له القتل وان طاوعته المرأة حل له قتلها ایضا.
(فتاویٰ هندية ١٦٧:٢ فصل فی التعزير)

٢) قال العلامة الحصكفی: لا تصير دارالاسلام دارحرب الا بامور ثلاثة باجراء احكام اهل الشرک وباتصالها بدارالحرب وبان لايبقی فيها مسلم او ذمی آمنا بالامان الاول علی نفسه ودارالحرب تصير دارالاسلام باجراء احكام اهل الاسلام فيها كجمعة وعيد وان بقی فيها كافر اصلی وان لم تتصل بدارالاسلام. (الدرالمختار ٢٧٧:٣ باب المستأمن، مطلب فيما تصير به دارالاسلام دارحرب او بالعكس)

ثانیا که لواطت په زنا کې داخل کړې شي (کما هومذهب ابي يوسف ومحمد) (۱) نو کم از کم د څلورو مسلمانانو ګواهانو ضرورت دې (۲) او هم دغه شان د کافر په مسلمان باندې شهادت هم مردود دې. (۳) پس په صورة مسئوله کې صرف تعزير واجب النفاذ دې. وهوالموفق

## د خپلې ښځې سره يو محرم لره په زنا کولو باندې ليدلو سره قتلول

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړی د خپلې ښځې سره په خپلو محارمو کې يو کس په زنا کولو باندې وليدو نو آيا دا سړې دوی دواړه قتلولې شي؟ بينواتوجروا

المستفتي: حاجي صالح محمد ... رجب ۱۵ ... ۱۳۹۵هـ

**الجواب:** (جازقتلهما ان كانا مطاوعين وهذا في الديانة دون القضاء كما في شرح التنوير) (۴) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الشامي: (قوله او بوطء دبر حد) فهو عندهما كالزنا في الحكم فيجلد جلدا ان لم يكن احصن ورجما ان احصن.
(ردالمحتار ۳:۱۷۰ كتاب الحدود، مطلب في وطء الدبر)

۲) قال العلامة الشامي: يكفي في الشهادة عليها (اى على اللواطة) عدلان لا اربعة خلافا لهما. (ردالمحتار ۳:۱۷۲ كتاب الحدود، مطلب لا تكون اللواطة في الجنة)

۳) وفي الهندية: لا تقبل شهادة الكافر على المسلم كذا في محيط السرخسي.
(فتاوىٰ هندية ۳:۵۱۷ كتاب الشهادة، الباب العاشر في شهادة اهل الكفر)

۴) قال العلامة الحصكفي: لوكان مع امرأته وهو يزني او مع محرمه وهما مطاوعان قتلهما جميعا... وانما يمتنع خوفا من ان لا يصدق انه زني. وقال العلامة ابن عابدين الشامي: وحاصله انه يحل ديانة لاقضاء فلا يصدقه القاضي الا ببينة.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۱۹۷ باب التعزير مطلب يكون التعزير بالقتل)

## ښځې لره د زنا په وخت قتلول شرعاً جرم نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی په خپله ښځه باندې دا یقین وی چې هغه بدکاره ده او هغه خپله ښځه قتل کړه نو آیا هغه به عند الله مجرم وی؟ بینوا توجروا

**الجواب:** که دې سړی خپله ښځه د زنا کولو په وخت قتل کړې وی نو مجرم به نه وی. کنه نو مجرم به وی. یدل علیه مافی الهندیة ۲:۱۸۷ وان طاوعته المرأة حل له قتلهما ایضا وفیها ایضا، قالوا لکل مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة واما بعد المباشرة فلیس ذلک لغیر الحاکم فقط (۱)۔ وهوالموفق

## د زنا په دوران کې او پس د زنا نه د قتلولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په زور او زیاتی سره د ښځې سره بدکاری وکړه د دې قصې خلقو ته معلومات هم وشو خو ښځې خپل خاوند خبر کړو او ویې ویل چې زانی قتل کړه چې زما سترګې په هغه باندې نه لګی او که صرف د هغه قتل درته ګران وی نو ورسره ما هم قتل کړه چې د بې حیا ژوند خاتمه ئې وشی، آیا شرعاً به دا قتل جائز وی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: واج میکر مردان..... محرم ۶ ،، ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** ددې زانی د زنا دوران کې قتلول جائز وو، خو د جرم د پوره کیدو نه پس دهغه دسزا اوعدم سزا تعلق دحکومت سره دې. (هندیة)(۲) وهوالموفق

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۱۶۷:۲ فصل فی التعزیر)

۲) وفی الهندیة: قالوا لکل مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة واما بعد المباشرة فلیس ذلک لغیر الحاکم... سئل الهندوانی رحمه الله تعالیٰ عن رجل وجد مع امرأته رجل ایحل له قتله قال ان کان یعلم انه ینزجر عن الزنا بالصیاح... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

## د پردی د خلوت د وجې نه د قومی غیرت په وجه باندې قتلول

**سوال:** چے میفرماید علماء کرام دریں مسئله که در علاقه وزیرستان دریک مسئله مجادله واقع است که یک مرد ویک زن مشوره کردن بود که هر دو باهم نکاح کنیم ونکاح درعلاقه افغانستان می کنیم بوقت شب روانه شدند در راه ذوی الارحام زن نشست بودند، هر دو راکشته کردند، نکاح راهنوز بسته نه بود، ماالحکم وماالجواب؟

(۲) اگر بطور نکاح کردن روانه باشند ودریں شب دخول ووطی کرده باشند دریں شب کشته کردند ما الحکم فیه؟ بینواتوجروا

المستفتی: کمال رزمک وزیرستان ... ۲۲/شعبان ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** چونکه ایں قتل در وقت جریمه زنا نه شده ست بلکه از وجه غیرت قومی صادر شده است لهٰذا قتل ایشان قتل ناحق است(۱) وموت ایشان مثل موت حامله از زنا از وجه، ؤلادت ست زیرانچه محض خلوت موجب تعزیر قتل نیست(۲). وهوالموفق

... بقیه ازحاشیه گذشته] والضرب بما دون السلاح لا یحل انه ینزجر الا بالقتل حل له القتل وان طاوعته المرأة حل له قتلها ایضا کذا فی النهایة.
(فتاویٰ هندیة ۲:۱۶۷ فصل فی التعزیر)

۱) قال العلامة ابن نجیم: لکل مسلم اقامته حال مباشرة المعصیة واما بعد الفراغ منها فلیس ذلک لغیر الحاکم. (البحر الرائق ۵:۴۲ باب التعزیر)

۲) قال العلامة ابن عابدین: ولو رأی رجلا مع امرأته فی مفازة خالیة او رأه مع محارمه هکذا ولم یر منه الزنا ودواعیه قال بعض المشائخ حل قتلهما وقال بعضهم لا یحل حتی یری منه العمل ای الزنا ودواعیه.
(ردالمحتار ۳:۱۹۷ مطلب یکون التعزیر بالقتل)

## بد کاره زنانه عین د جرم په وخت کې قتلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یوه زنا کاره ښځه په ټوپك وغیره قتل کړې شی نو قاتل به مجرم وی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: گل بادشاه ختك مقام سنجهورو ... اگست ۱۵ ... ۷۲ء**

**الجواب:** عین د جرم په وخت په قتلولو سره د آخرت د مواخذې خطره نشته. خو په دنیا کې د قصاص نه بچ کیدل گران دی. (۱) **وهوالموفق**

## په زانی باندې حد قائمول د حکومت کار دې د علماء یا عوامو نه

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د خپلې خینې سره زنا وکړه، او دهغې نه یو ماشوم پیدا شو. کیس عدالت ته راوړل شو، نو هغه سړی د جرم اعتراف وکړو په دې باندې هغه ته یو کال او د یوه میاشتې دپاره جیل ته ولیږل شو. بیا په ضمانت باندې راخلاص شو چې د هغې خلاف په شریعت کې تر اوسه پورې هیڅ کارروائی نه ده شوې، لهذا د دې سړی خلاف د قرآن او سنت په رڼا کې حکم وکړئ چې شرعا څه حکم لري؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: حبیب الرحمٰن راولپنډی .... فروری ۱۷ .... ۱۹۹۱ء**

---

۱) قال العلامة الحصکفی: وفی المجتبیٰ: الاصل ان کل شخص رأی مسلماً یزنی یحل له ان یقتله (الدرالمختار)۔ وقال العلامة ابن عابدین: وحاصله انه یحل دیانة لا قضاءً فلا یصدقه القاضی الا ببینة۔

(ردالمحتار مع الدرالمختار ۳:۱۹۷ باب التعزیر)

وفی البزازیة: وعلی هذ الورأی مسلما یزنی یحل له قتله ونما یمتنع لانه لا یصدق فی ذلک لانه زنا۔

(فتاویٰ بزازیة علی هامش الهندیة ۶:۴۳۰ قبیل کتاب السرقة)

**الجواب:** هر کله چې په پاکستان کې اسلامی نظام نشته نه د قوم اکثریت دا نظام غواړی او نه د اقتدار خاوندان نو علماء څه کولې شی، د حدود جاری کول د حکامو منصب دې. (۱) وهوالموفق

## خورزې سره په زنا کونکی باندې به حکومت باقاعده حد جاری کوی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو بالغ او هوش والا سړې د خپلې سکه خورزې سره زنا وکړی چې د هغې واضح ګواهان دی او جینئ هم په دې باندې قسم کولو ته تیاره ده د داسې انسان شرعی سزا څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد خالد تحصیل میر پور ضلع ایبټ آباد..... جون ۶..... ۱۹۸۹ء

**الجواب:** ومنه الصدق والصواب: په داسې سړی باندې به حکومت باقاعده حد جاری کوی (۲) حد جاری کول د حکومت فرض منصبی دې نه د علماء کرامو او عوامو. (۳) وهوالموفق

---

(۱) وفی المرقاة: ویدل علیه اتفاق اصحابنا فی کتبهم نقلا عن الصحابة ومرفوعا ان ولایة الحد الی الولاة- (مرقاة المفاتیح ۷:۱۴۵ کتاب الحدود)

وقال العلامة ابن عابدین: بخلاف الحدود فانه لم یثبت تولیتها الا للولاة- (ردالمحتار ۳:۱۹۸ کتاب التعزیر مطلب یکون التعزیر بالقتل)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: والزنا الموجب للحد هو وطء الرجل المرأة فی القبل فی غیر الملک وشبهته-

(ردالمحتار ۳:۱۵۴ کتاب الحدود)

(۳) قال العلامة وهبة الزحیلی: لا یقیم الحدود الا الامام او من فوض الیه الامام باتفاق الفقهاء لانه لم یقم حد علی عهد رسول الله ﷺ بلا اذنه ولا فی ایام الخلفاء الا باذنهم ولان الحد حق الله تعالیٰ یفتقر الی الاجتهاد ولا یؤمن فیه الحیف فلم یجر بغیر اذن الامام- (الفقه الاسلامی وادلته ۷:۵۳۸۵ الفصل الاول حدالزنا، المبحث الخامس اقامة الحد علی الزانی)

## محصن زاني، په خوی باندې حد جاري کول د حاکم منصب دې د پلار نه!

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې زما يو خوی وادهٔ کړې دې، هغه زنا کړې ده په قانونی کارروايئ سره خو هيڅ نه شی کيدې، زه د شريعت په رڼا کې هغه قتلولې شم؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: عارف چنګل ضلع هزاره**

**الجواب:** واضحه دې وی چې په زانی باندې رجم يا دورې (حد) جاری کول د مسلمان حاکم کار او منصب دې. (۱) د پلار وغيره دا منصب نه دې، خو داسې وادهٔ کړې زانی د زنا په حالت کې قتلول قانونی جرم دې، اسلامی جرم نه دې. (۲) دې قاتل ته به قانون د مرګ سزا ورکوی او اسلام به ئې بری کوی **وهوالموفق**

## ښځې لره په لواطت باندې د مجبوره کونکی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د يوې ښځې بيان دې چې زما خاوند ما د وطی فی الدبر دپاره مجبوروی د بار بار منع کولو باوجود هغه نه منع کيږی او هغه د دې لوئې ګناه ارتکاب کوی، شرع د دې سړی څه حکم دې، بله دا چې د دې ښځې مور او پلار هغې لره کور ته بوتلو حقدار دی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی: الف،با،تا....مندری**

---

(۱) قال الملا علی القاری: عن ابن عباس وابن الزبير موقوفاً ومرفوعاً اربع الی الولاة الحدود الخ۔ (مرقاة المفاتيح ۷:۱۳۸ کتاب الحدود)

(۲) قال العلامة الحصکفی: وفی المجتبی ان کل شخص رأی مسلماً يزنی يحل له ان يقتله (الدر المختار)۔ وقال العلامة ابن عابدين: وحاصله انه يحل ديانة لاقضاء۔ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۱۹۷ کتاب التعزير مطلب يکون التعزير بالقتل)

**الجواب:** د دې ښځې او د هغې د اولياء دپاره ضروري ده چې دا خاوند ورله د دې قبيح فعل باندې قدرت ورنکړي او د دې نه ئې منع کړي، د نه منع کېدو او عادي کېدو په صورت کې حاکم هغه لره قتلولې هم شي، عوامو له پکار دي چې دې سړي سره مړې ژوندې پرېږدي. في الدرالمختار: او بوطأ دبر وقالا ان فعل في الاجانب حدوان في عبده اوامته اوزوجته فلاحد اجماعاً بل يعزروقال في الدرربنحوالاحراق بالنار ۳:۱۵۵(۱). وهوالموفق

## په دوام او تسلسل سره د زانی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو سړې او ښځه مسلسل په زنا کې اخته دي او د دې قبيح عمل په باره کې د هغوی په زړه کې پرواه هم نشته، اوس د زانی حکم خو معلوم دې خو چې کله په دوام او تسلسل سره دا کار کوی د هغوی څۀ حکم دې؟ بينواتوجروا

المستفتی: مولانا جلال الدين مجاهد

**الجواب:** دا مسائل د قضاء سره تعلق ساتی (۲) د فتوې سره د دې تعلق نشته، خو د فتوی په رڼا کې ګنجائش شته چې ټولو د فتوې خاوندانو ليکلې دی چې د ګناه دوران کې عوام هم تعزير جاري کولې شي، پس که د زنا دوران هغوی قتل کړې شي نو د شريعت خلاف به نه وی. (۳) وهوالموفق

---

۱) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۱۷۰ مطلب فی وطء الدبر)

۲) قال العلامة الحصكفی: وفی المجتبیٰ: الاصل ان كل شخص رأی مسلما يزنی يحل له ان يقتله (درمختار) وقال ابن عابدين: وحاصله انه يحل ديانة لا قضاءً. (الدرالمختار ۳:۱۹۷ باب التعزير)

۳) وفی الهندية: قالوا لكل مسلم اقامة التعزير حال مباشرة المعصية واما بعد المباشرة فليس ذلک لغير الحاكم. (فتاوی هندية ۲:۱۶۷ فصل فی التعزير)

## بدکار پلار لره د قتلولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د قریشی خاندان یو سړې کوم چې وادۀ کړې دې او د څلور ځامنو او یوې لور پلار دې، او عمر ئې هم د شپیتۀ کالو نه اوښتې دې، د دې باوجود د اتلسو کالو هلك سره زنا کوی د دې واقعې د هغه ښځې او ځامنو ته هم علم دې او د کلی خلقو ته هم، هلکانو پلار پوهه کړو چې د دې نه منع شه خو هغه نه منع کیږی. دا سړې مونځ او قرآن نه لولی د هغه ځامنو د هغه د قتل اراده کړې ده، اوس تپوس دا کول دی چې آیا دا هلکان پلار قتلولې شی یا نه؟ او حال دا چې پولیس والائې بیا پریږدی؟

المستفتی: مولوی دوست محمد مدرسه قاضی حسام الدین کوهاټ ښهرا کتوبر ۱۹۸۳/۱۷ء

**الجواب:** حکومت دوارو ته د مرګ سزا ورکولې شی. (۱) خو نورو خلقو ته به د دنیوی مواخذاتو او تعزیراتو خطرات پیښیږی کوم چې د رخصت سبب دې. (۲) **وهوالموفق**

## بدکاره ښځه د بدکارئ دوران کې قتلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی ښځه بدکاره ده هغه ډیر خله ښځه د دې بدکارئ نه منع کړه خو هغه منع نه شوه، شراب خانو ته تلل او د پردو خلقو سره ګرځیدل او زنا کول وغیره، خاوند په یوه موقع باندې په شراب خانه کې یو ځای ناسته او بوسې اخستلو وغیرا

---

۱) قال العلامة الحصكفى: ولو اعتاد اللواطة قتله الامام سياسة -
(الدرالمختار ۳:۱۷۱ كتاب الحدود مطلب فى وطء الدبر)

۲) قال العلامة الحصكفى: الاصل ان كل شخص رأى مسلما يزنى يحل له ان يقتله وانما يمتنع خوفا من ان لا يصدق انه زنى- قال العلامة الشامى: وحاصله انه يحل ديانة لا قضاء فلا يصدقه القاضى الا ببينة- (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳:۱۹۷ باب التعزير)

باندې ولیده، او په غیرت کې راتلو سره ئې هغه په چاقو باندې وهلو سره قتل کړه، آیا داسې ښځه تعزیری طور قتلول صحیح دی، او حال دا چې هغه د طلاق نه پس هم کور نه پریږدی او خاوند داسې بدحالی کله هم نه شی برداشت کولې، مجبور کیدو سره ئې د ایمانی غیرت د وجې نه هغه قتل کړو، شرعا د دې خاوند څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: نامعلوم**

**الجواب:** د خاوند دپاره د داسې ښځې قتلول جائز دی خو چې په موقع باندې په رضا او شوق سره د بې حیایئ په حالت کې ونیولې شی **کما فی الهندیة فان رآه مع امرأته ومع محرم له وهی تطاوعه علی ذلك قتل الرجل والمرأة جمیعا ۵:۳۴۷ الباب الثانی فی العمل بغالب الرأی**(۱) .**وهوالموفق**

## هغه زنانه چې په زنا مجبوره کړې شی د هغې د حد او د ولد الزنا د قتل د وجې نه د دیت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د زید ښځې دا دعوی کړې ده چې ما سره یو سړی جبرا بدکاری کړې ده چې د هغې د وجې نه یوه ماشومه پیدا شوې ده، او د عیب د پټولو د خاطره د زید ښځې ماشومه تقریبا یو ساعت د ژوندئ ساتلو نه پس د هغې په مرئ زور کړو او قتل ئې کړه، اوس د دې زید په ښځه باندې څه سزا ده ایا د حلالی او حرامی په قتل کې سزا واجب ده او که فرق شته، او د زانی جابر څه سزا ده او د زید په ښځه باندې به حد راځی او که نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: خلیل الرحمن..... جون ۵... ۱۹۷۵ء**

**الجواب:** واضحه دې وی چې په دې مجبوره کړې شوې زانیه باندې به د

۱) (فتاوی عالمگیریة ۵:۳۱۴ کتاب الکراهیة، الباب الثانی فی العمل بغالب الرأی)

عذر د وجې نه هيڅ حد نه وی (ردالمحتار) (۱) او د ماشومې د قتل بالخنق د وجې نه ديت واجب شو. (۲) د دې ماشومې وارثان مختار دی که اخلی او که نه اخلی. (۳) وهوالموفق

## نابالغه سره د زنا بالجبر په صورت کې د حد مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو بالغ عاقل پوخ ځوان د يوې نابالغې جينۍ سره په زبردستۍ زنا وکړه نو چې جرم ثابت شی نو په دواړو باندې به شرعا حد جاری کيږی او که صرف په هلك باندې؟ بينواتوجروا

المستفتی: عمر علی پيښور.... مارچ ۱۷ ... ۱۹۷۹ء

---

۱) قال العلامة الحصكفی: ولو اكره على الزنا لا يرخص له وفی جانب المرأة يرخص لها الزنا بالاكراه الملجئ لا بغيره لكنه يسقط الحد فی زناها لا زناه. (الدرالمختار ۵:۹۴،۹۵ كتاب الاكراه)

۲) قال العلامة ابن عابدين: من تكرر الخنق منه فی المصر قتل به... ثم هذا غير خاص بالخنق لما قدمه فی شبه العمد انه لا قود فيه الا ان يتكرر منه فللامام قتله سياسة. (ردالمحتار ۵:۳۸۶ فصل فيما يوجب القود مالايوجبه)

وقال العلامة الحصكفی: والثانی شبهه وهو ان يقصد ضربه بغير ماذكر ای بما لا يفرق الاجزاء ولو بحجر وخشب كبيرين عنده خلافا لغيره وموجبه الاثم والكفارة ودية مغلظة على العاقلة لا القود الا ان يتكرر منه فللامام قتله سياسة. (الدرالمختار ۵:۳۷۶ كتاب الجنايات)

۳) قال العلامة القرطبی: قوله تعالىٰ (الا ان يصدقوا) يعنی الا ان يبرئ الاولياء ورثة المقتول (القاتلين) مما اوجب الله لهم من الدية عليهم... تسقط الدية التی هی حق لهم. (تفسير القرطبی ۵:۳۰۷ آيت ۹۲ سورة النساء)

**الجواب:** د ثبوت شرعی نه پس به قاضی په دې هلك باندې حد جاری کوی او په جینۍ باندې به د عدم بلوغ د وجې نه حد نه وی. (١) **فی الدر المختار ٣: ١٥٦ اولا حد بزنی غیر مکلف بمکلفة مطلقاً لا علیه ولا علیها وفی عکسه حد.** (٢) **وهوالموفق**

## د حقیقی لور سره د زنا کولو سزا

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو ظالم او بدکار قبیح انسان نه خپله لور حامله شوه، د وضع حمل نه پس بغیر د جبر او اکراه نه هغه جینۍ دا بچې خپل حقیقی او سکه پلار ته منسوب کړو، وروستو پلار هم زنا تسلیم کړه، اوس په شریعت کې د دې ظالم دپاره څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: اکبر اعظم مری.... مارچ ٢٧ ... ١٩٧٦**

**الجواب:** زنا قطعا حرامه ده او د لور او نورو محرماتو سره خو بیا نور هم سخت ظلم دې، عوام او کلیوال خلق دې د دې ظالم سره معاشرتی مقاطعه وکړی اود محرماتو نه دې جدا کړی، اسلامی حکومت دې په هغه باندې حد جاری کړی. **فالی الله المشتکیٰ** (٣) **وهوالموفق**

---

١) قال العلامة الزیلعی: لا یجب الحد اذا زنی الصبی اوالمجنون بامرأة مکلفة وهی البالغة العاقلة بخلاف العکس وهو ما اذا زنی البالغ العاقل بصبیة او مجنونة حیث یجب الحد علی الرجل.
(تبیین الحقائق شرح کنز ٢: ١٨٣ باب الوطء الذی یوجب الحد الخ).

٢) الدر المختار علی هامش ردالمحتار ١٥٧،١٥٦: ٣ الباب الوطء الذی یوجب الحد.

٣) قال العلامة الحصکفی: ویقیمه کل مسلم حال مباشرة المعصیة واما بعده فلیس ذلک لغیر الحاکم.
(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ١٩٨: ٣ بعید مطلب یکون التعزیر بالقتل)

## د مړې ښځې سره زنا کول موجب تعزیر دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړی د مړې ښځې سره زنا وکړي نو په شریعت کې د هغه دپاره څه سزا ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالقدیر باره کهو اسلام آباد

**الجواب:** دې فاسق ته به تعزیر ورکولې شي، او د زنا حد به په هغه باندې نه جاري کیږي، وفي خلاصة الفتاوى ۴:۴۴۵ (فصل في الزنا) وفي الفتاوى رجل زنى بامرأة ميتة لاحد عليه ولكن يعزر(۱) وكذا في الهندية ۲: ۱۵۰ يعزر ولا يحد(۲)۔ وهوالموفق

---

۱) (خلاصة الفتاوى ۴۴۵: ۴ الفصل الثاني في الزنا كتاب الحدود)

۲) وفي الهندية: رجل زنى بامرأة ميتة اختلفوا فيه قال اهل المدينة حد وقال اهل البصرة يعزر ولا يحد وقال ابوالليث وبه نأخذ.

(فتاوى عالمگیرية ۱۵۰: ۲ الباب الرابع في الوطء الذي يوجب الحد)

بسم اللہ الرحمٰن الرّحیم

# فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

(ششم جلد)

# باب السرقة

.........

# باب حد السرقة

## د زکاة او صدقې په صورت کې مسروقه مال مالک ته د واپس کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې چا سره په دکان کې یو مزدور وو، د مزدورۍ وخت کې هغه د دکان نه په پټه څه خوړلې وو، اوس هغه سړی د مالك نه دکان واخستلو، او دې غواړی چې په څه طریقه هغه ته مال ورسوم او هغه ته معلومه هم نه شی که هغه ته د زکاة او صدقې په نوم باندې صدقه ورکړی نو آیا په دې طریقې سره به هغه ته صدقه ورسیږی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودود دار العلوم حقانیه... ذی الحجة ۱۱ ... ۱۳۹۷هـ

**الجواب:** که دا سړې د خیرات وغیره ورکولو په وخت د حق ادا کولو نیت وکړی نو د هغه ذمه به فارغه شی (۱) لان المعتبر فیه نیة الدافع کما صرح به فی التکملة ۱: ۳۵۹ (۲) وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: لو مات الرجل وکسبه من بیع الباذق او الظلم او اخذ الرشوة یتورع الورثة ولا یأخذونه منه شیئاً وهو اولیٰ بهم ویردونها علی اربابها ان عرفوهم والا تصدقوا بها لان سبیل الکسب الخبیث التصدق اذا تعذر الرد علی صاحبه.

(ردالمحتار ۵:۲۷۳ فصل فی البیع، کتاب الحظر والاباحة)

(۲) فی تکملة ردالمحتار القول للدافع لانه اعلم بجهة الدفع.

(تکملة ردالمحتار ۱:۳۹۱ فروع، مطلب واقعة الفتوی)

## په غیر صریحی اجازت سره غلا کړې مال وارثانو ته واپس کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې عمر بې اولاده وو هغه د خپل خورئی پالنه وکړه، تعلیم ئې ورته م ورکړو د تعلیم دوران به دې خورئی د خپل ماما نه روپۍ پټولې. چې د هغې علم به ښه دې عمر ته کیدلو، خو هغه به هیڅ هم نه ویل، عمر وفات شو د وصیت مطابق عمر د هغه وارث جوړ شو، د عمر ښځه هم د هغه د خورئی سره ده، اوس د هغه خورئې غواړی چې غلا کړې پیسې دې کونډې ته واپس ورکړي نو دغه شان به دهغه ذمه فارغه شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: ایم نثار محمد پړانګ چارسده... صفر ۱۷ ... ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** په خورئی باندې ضروری نه دی چې دا مال کونډې ته ورکړی ځکه چې اجازت غیر صریحی موجود وو. (۱) او که احتیاطا ئې ورکول غواړی نو د میراث د حصو مطابق دې ورکړی. (۲) وهوالموفق

## د غرونو نه لرګی غلا کول او د هغې اخستل او خرڅول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې غرونه حکومت په خپله قبضه کې اخستلې دی هغې ته نژدې خلق د حکومت نه په غلا د هغه ځای نه لرګی راوړی او په بازار کې ئې خرڅوی نو د داسې لرګو وهل جائز دی یا نا جائز؟ سره د دې چې د بازار خلك پدې خبر وی چې دا د غلا لرګې دي؟ بینواتوجروا

المستفتی: ضیاء الدین خادم کیملپور... مارچ ۱۲ ... ۱۹۷۴ء

---

۱) قال العلامة المرغینانی: ثم الاذن کما یثبت بالصریح یثبت بالدلالة.
(الهدایة ۳:۳۶۲ کتاب المأذون)

۲) قال العلامة ابن عابدین: (قوله الا اذا علم ربه) ای رب المال فیجب علی الوارث رده علی صاحبه ... فان علموا اربابه ردوه علیهم والا تصدقوا به.
(ردالمحتار ۵:۲۷۳ کتاب الحظر والاباحة، فصل فی البیع)

**الجواب:** تر څو پورې چې اسلامی قانون نافذ نه وی نو د حکمرانانو منل به واجب شرعی نه وی (١) لهذا دا مذکوره غلا به قانونی غلا وی، شرعی غلا به نه وی. **وهوالموفق**

## د قطاع الطریق د قتلولو حکم

**سوال:** ماذا یفتی علماء دین الاسلام فی قتل قطاع الطریق هل هذا حق الامام او یجوز قتله لعامة المسلمین لدفع الفساد ولبناء الامن العام لعامة المسلمین وخاصتهم وکذلك قتل کل مفسد یکون فساده ظاهراً عاماً، شرعاً او تعزیراً اوسیاسة؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید جلال الدین مدیر دار العلوم الاسلامیة

زرگری ضلع هنگو ... صفر ٨ ... ١٤٠٥هـ

**الجواب:** قتل قطاع الطریق واجب علی الامام وجائز للعامة، کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ٣: ٢٤٩ باب التعزیر، وعلی هذا لقیاس المکابر بالظلم وقطاع الطریق ...وافتی الناصحی بوجوب قتل کل موذ، وفی ردالمحتار، لعل الوجوب بالنظر للامام ونوابه والاباحة بالنظر لغیرهم، طحطاوی (٢). وهوالموفق

---

١) قال الدکتور وهبة الزحیلی: وبذل الطاعة مشروط بقیام الحاکم بواجباته التی ذکرت سابقاً مضمونها التزام او امر الشریعة.

(الفقه الاسلامی وادلته ٨: ٦١٩٠ حقوق الامام الحاکم)

٢) (الدر المختار مع ردالمحتار ١٩٨، ١٩٧: ٣ باب التعزیر)

وفی الهندیة: المکابر بالظلم وقطاع الطریق وصاحب المکس وجمیع الظلمة والاعوان والسعاة یباح قتل الکل ویثاب قاتلهم کذا فی النهر الفائق.

(فتاوی هندیة ١٦٧: ٢ فصل فی التعزیر)

## د اولیاء کرامو د مزاراتو نه د قیمتی څیزونو پټولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د ځینو اولیاء کرامو په مزاراتو باندې قیمتی غلاف نه علاوه نور هم ډیر قیمتی څیزونه او خصوصا د شکرانې بکس کې پیسې پرتې وی که یو غل دا څیزونه غلا کړی او ونیول شی نو د ثبوت نه پس به په هغه باندې حد سرقه جاری کولې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبد الهادی اکبر پوره نوشهره

**الجواب:** دې غل ته د ثبوت نه پس تعزیر ورکول جائز دی، د مصلحت مطابق، په هغه باندې به د غلا حد نه شی جاری کولې وفی الهندية ۲:۱۸۸ ولو سرق من القبر دراهم او دنانير او شيئاً غير الكفن لم يقطع بالاجماع اختلف مشائخنا فيما اذا كان القبر في بيت مقفل الاصح انه لا يقطع سواء نبش الكفن او سرق مالا آخر من ذلك البيت وكذا اذا سرق الكفن من تابوت في القافلة لا يقطع في الاصح كذا في الكافي انتهى(۱). وهوالموفق

## د ځنګل نه په غلا شوی څاروی کې د لاس د پرې کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ کلی ته نژدې د بیلې په نوم یو ځنګل دې، خلق خپل څاروی په هغې کې د څرولو دپاره د کال دوه کالو دپاره پریږدی او حال دا چې هغه ځای غیر محفوظ دې، اوس که یو غل د دې بیلې نه یو څاروې بوځی نو آیا د هغه لاس به پرې کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: سید عمر مرغز

**الجواب:** په قطع د ید کې دا ضروری ده چې غلا د داسې ځای نه شوې وی

(۱) (فتاوی عالمگیرية ۲:۱۷۸ الباب الثانی فیما یقطع فیه ومالا یقطع فیه)

چې هغه محفوظ وی. د غیر محفوظ ځای نه د غلا کولو په صورت کې د دې غل نه حد ساقط دې خو د تعزیر نه نه شي بچ کیدلې وفی الهندیة ۲: ۱۸۰، وهی فی الشرع اخذ العاقل البالغ نصاباً محرزا (الی ان قال) علی وجه الخفیة(۱) وهوالموفق

## د حفاظت په نیت سره یو ځیز اوچتول غلا نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی په بل سړی باندې د غلا دعوی وکړه، خو مدعی علیه د غلا نه انکار کولو سره په جوابی بیان کې ووېل چې ما مال د غلا په نیت سره نه بلکه د حفاظت په نیت سره اوچت کړې دې او ما دا سړې خبر کړې هم وو آیا په دې صورت کې په دې سړی باندې حد سرقه جاری کیدلې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: بصیر خان ایډوکیټ ... پیښور

**الجواب:** په ظاهره کې داسې معلومیږی چې مدعی علیه دا مال د یو غیر محفوظ مقام (لارې وغیره) نه اوچت کړې دې، او بله دا چې دا سړې دا مال د امانت په طور هم د سنبالولو مدعی دې پس په دې سړی باندې به حد سرقه نه شی جاری کولې، او که مدعی په شهادت شرعیه سره ثابته کړی چې دا مال په محفوظ مقام کې وو او قرائن هم د غلا مؤید وی نو بیا د ثبوت نه پس د حد جاری کول د حاکم منصب دې فافهم، وفی الدرالمختار: ویقطع لو سرق من السطح نصاباً لانه حرز شرح وهبانیة اومن المسجد اراد به کل مکان لیس بحرز فعمم الطریق والصحراء ورب المتاع عنده ای بحیث یراه ولو الحافظ نائماً فی الاصح)(۲)۔ وهوالموفق

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۲: ۱۷ کتاب السرقة)

۲) (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳: ۲۲۲ کتاب السرقة)

# كتاب القصاص

## بې ګناه قتلولو سره قاتل نه کافر کیږی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د بې ګناه قتل کونکی سړی څه حکم دی، په دې سره هغه کافر کیږی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: پیر عبدالقدوس راولپنډی... جون ۲۶ ... ۷۶ء

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت دا سړې لوی مجرم دې، خو کافر نه دې.

(۱) وهوالموفق

## د دعوې او شهادت نه بغیر د مشتبه انسان قتلول حرام دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې قتل شوې دې، د مقتول اولیاء د قاتل په خاندان کې اووۀ کسان د شبه په طریقې سره متعین کړې دی او په هغوی کې ئې یو په خپل ګمان باندې متعین کړې دې،

---

۱) قال الله تعالیٰ: وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللَّهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا۔ (سورة النساء:۹۳)

و قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: لزوال الدنيا أهون على الله من قتل رجل مسلم ...وعن ابى الدرداء رضى الله عنه عن رسول الله ﷺ: كل ذنب عسى الله ان يغفره الا من مات مشركا أو من يقتل مؤمنا متعمدا۔

و فى حاشية المشكوٰة :قوله من يقتل مؤمنا متعمدا تشديد و تغليظ، وله تاويل مشهور و قد ذهب بعض المحدثين الى أن جزاء قاتل المؤمن متعمدا الخلود فى النار و إن لم يصر كافرا نظرا الى ظاهر الآية۔

(مشكوٰة المصابيح ص ۳۰۱ كتاب القصاص)

نو آيا دا متعين سړي د مقتول په بدله کې شرعی لحاظ سره قتل کيدې شی؟

دويم دا چې د مقتول يو عاقل بالغ ځوی دې، هغه بې زړه دې، خپله بدله نه شی اخستلې نو آيا ترونه هغه سره په قتل کې معاون کيدې شی يا نه؟ او آيا صرف ترونه دا بدله اخستلې شی؟ **بينوا توجروا**

**المستفتی:** تامعلوم متعلم بلوچستانی .... جمادی اولالی ۲۷ ... ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې چونکې نه دعوی د قاضی په نزد موجوده ده نه اقرار يا شهادت شرعيه موجود دې، لهذا دې مشتبه سړی له قتلول يا د هغه په قتل کې تعاون کول تول په تهوله حرام دی. **كما فی شرح التنوير علی هامش الشامية ۴۸۴/۵: والسابع لا بد فی القصاص من الدعوی بخلاف الحد سوی حد القذف.**(۱) **وهو الموفق**

## قاتل له کافر ګڼل عقيده د اهل سنة والجماعة نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د مسلمان په قتل سره قاتل د اسلام نه خارج کيږی يا نه؟ او کوم سړې چې د مسلمان قاتل له د اسلام نه بهر ګڼی د هغه متعلق شرعا څه حکم دې؟ **بينوا توجروا**

**المستفتی:** نعمان شاه...... پيښور... جمادی الاولی ۲۲ ... ۹۶ھ

**الجواب:** چې کله ناحقه قتل ګناه ګڼی نو دا قاتل کافر نه دې ،...

---

(۱) (الدر المختار ۵/۳۹۰ کتاب الجنايات ،فصل فيما يوجب القود وما لا يوجبه)

وقال الدكتور وهبة الزحيلی :يجب علی القاضی أن يقضی بما ثبت عنده بطرق الإثبات الشرعية وهی البينة والإقرا ر واليمين والنكول ...اشير هنا الی أن البينة تظهر الحق بالاتفاق ...والاقرار حجة مطلقة لأن الإنسان غير متهم بالإقرار علی نفسه كاذبا.

(الفقه الإسلامی وأدلته ۸/۵۹۴۶ الباب الخامس القضاء وطرق إثبات الحق)

ګنهګار دي (١) هغه لره کافر ګڼل د اهل سنت والجماعت د عقیدې خلاف دی (٢) وهوالموفق

## د مهاجر تنظیمونو د قاضیانو په پاکستان کې د حدودو او قصاص جاري کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې افغان مهاجرینو دلته په پاکستان کې مختلف احزاب (ډلې) جوړ کړې دی او د هر حزب مستقل تنظیم وی چې په هغې کې د قاضی او مفتی پورې خلق وی نو آیا د دې قاضیانو او مفتیانو فتوی دلته په پاکستان کې د هجرت په حالت کې نافذ کیدې شی یا نه؟ یعنی هغوی حدود او قصاص نافذ کولې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: محمد ملا جان مهاجر افغان کالونی پیښور جمادی الاولی ۲۶ ... ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا خلق یعنی د احزاب امراء صرف نمائندګان دی خیرات او اعانت د ملکونو د تقسیم امراء دی هغوی ته د حدودو او قصاص د اجراء حق حاصل

---

١) وعن عبدالله بن عمرو رضی الله تعالی عنه قال قال رسول الله ﷺ :الکبائر الاشراک بالله وعقوق الوالدین وقتل النفس والیمین الغموس.
(مشکوة المصابیح ١٧باب الکبائر وعلامات النفاق)

٢) وفی شرح العقائد :(والکبیرة)وقد اختلفت الروایات فیها، فروی ابن عمر رضی الله تعالی عنهما انها تسعة: الشرک بالله وقتل النفس بغیر حق (لاتخرج العبد المومن من الایمان)...وهو مذهب أهل السنة والجماعة.(شرح العقائد ٨٢)

عن أبی الزبیر قال قلت لجابر بن عبدالله رضی الله تعالی عنه:ماکنتم تعدون الذنوب شرکا ؟قال لا ،قال أبو سعید قلت یا رسول الله ﷺ: هل فی هذه الأمة ذنب یبلغ الکفر ؟قال لا إلا الشرک بالله تعالی.
(مسند الإمام الأعظم ١٠)

نه دي لحديث اربع الى الوفاة الخ(ابن ماجة) (۱) وهوالموفق

## د قاتل نه د ولي پخپله قصاص اخستل د قاعدې خلاف دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د زيد ورور عمرو قتل کړو، دوه شاهدان په دې وخت باندې موجود وو، عمرو پنځه لاکه روپۍ رشوت ورکولو سره خپل ځان راخلاص کړو خالد پلار هم دې عمرو قتل کړو، بيا رشوت ورکولو سره راخلاص شو. اوس زيد او خالد يو ځای کيدو سره عمرو قتل کړو نو آيا دوی به د الله پاک په نزد مجرمان وی يا نه؟ **بينوا توجروا**

المستفتي: جاويد اقبال جامعة العلوم الاسلامية

نيو ټاؤن کراچي ... رمضان المبارك ۲۹ ... ۱۴۱۰ھ

**الجواب:** دا قصاص د قاعدې خلاف دې، **لعدم وجود الدعوى** او په دې کې د فائدې په ځای سراسر نقصان دې. **فليراجع الى رد المحتار ۶: ۶۶۰ (۲) مطبع حلبي. وهوالموفق.**

---

(۱) وفي الدراية :حديث أربعة إلى الولاة وذكر منها الحدود، لم أجده وذكره ابن أبي شيبة عن الحسن أربعة إلى السلطان الصلوٰة والزكوٰة والحدود والقضاء - (الدراية في تخريج أحاديث الهداية ۲/۵۱۱ كتاب الحدود، فصل في كيفية الحد وإقامته)

وقال العلامة ابن عابدين رحمه اللّٰه تعالىٰ: بخلاف الحدود فإنه لم يثبت توليتها إلا للولاة.

(ردالمحتار ۳/۱۹۸ كتاب التعزير ،مطلب بكون التعزير بالقتل)

(۲) وقال العلامة الحصكفي رحمه اللّٰه تعالىٰ :لابد في القصاص من الدعوى بخلاف الحد.

(الدر المختار ۶/۳۹۰ كتاب الجنايات،قبيل باب القود فيما دون النفس)

وقال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه اللّٰه تعالىٰ : لابد في القصاص من رفع الدعوى الى القضاء من ولي الدم ...استيفاء الحدود يكون بواسطة الإمام الحاكم وأما القصاص فيجوز لولي الدم استيفاؤه بشرط وجود الحاكم .

(الفقه الاسلامي وأدلته ۷/۵۶۶۴،الفرق بين القصاص والحدود الأخرى )

## د مقتول د ولی په معاف کولو باندې د حکومت قاتل لره قتلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی چې کله نوشاد خان قتل کړو، دارالقضاء هغه ته د پهانسئ سزا واوروله، د سپریم کورټ د تائید یا تردید نه مخکښ د مقتول وارثانو د جرګې په سفارش باندې د الله پاك د رضا دپاره قاتل لره معاف کولو سره صلح وکړه، اوس د پاکستان صدر د ملزم درخواست رد کړې دې آیا د فریقینو د صلح په صورت کې قاتل لره په قصاص کې قتلول جائز دی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالوارث مقام شاه منصور ضلع مردان\ رجب المرجب ۱۵ ... ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** تعزیر د حکومت حق شرعی دې (۱) او قصاص د مقتول د وارثانو حق شرعی دې، پس د ټولو یا بعض وارثانو په معافی کولو باندې حکومت د قصاص اخستلو مجاز شرعی نه دې.

قال الله تعالیٰ: فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَاءٌ اِلَيْهِ بِاِحْسَانٍ،(۲) وقال النبی ﷺ: من قتل له قتیل فهو بخیر النظرین، إما أن یعفو وإما أن یقتل (رواه الترمذی).(۳) وهوالموفق

---

۱) وقال الدکتور وهبة الزحیلی رحمه الله تعالی: إذا عفا ولی القتیل مطلقاً عن القاتل عمدا صح العفو، وبقی عند الحنفیة والمالکیة حق السلطان فی عقوبته تعزیراً لأن القصاص فیه حقان حق الله (أو حق المجتمع أو حق العام) وحق المجنی علیه.
(الفقه الإسلامی وأدلته ۷/۵۶۹۴ هل یبقی حق للسلطان بعد عفو ولی الدم)

۲) (سورة البقرة ۱۷۸)

۳) (سنن ترمذی ۱/۳۹۲ باب ماجاء فی حکم ولی القتیل فی القصاص والعفو)

## په قصاص او دیت اخستلو سره د شهید په ثواب کې کمې نه راځی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که د مقتول وارثان په صلح کې څه زیاتې روپۍ وغیره واخلی نو آیا د مقتول په شهادت کې کمې راځی یا نه؟ او که قصاص واخلی نو بیا کمې راځې یا نه؟

المستفتی: عبدالهادی ټانک ضلع ډیره اسماعیل خان... ۱۸ صفر المظفر ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د شهادت د اخروی احکاماتو دپاره قصاص یا دیت ضرری نه دي (۱) وهوالموفق

## په حدودو او قصاص سره د ټولو ګناهونو د معاف کولو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی بل سړې قتل کړو او بیا هغه قصاصا قتل کړې شو، نو زید وائی چې هغه د قصاص نه بالکل پاك شو، په آخرت کې د هغه هیڅ سزا نشته، نو آیا د دې قاتل دپاره اخروی سزا شته یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: حبیب انور... ۳۰ مارچ ۱۹۷۴ء

**الجواب:** د احنافو په نزد په حدودو او قصاص سره ټول ګناهونه نه معاف کیږی، په توبې سره ګناهونه معاف کیږی. کماصرح به فی البحر(۱: ۳۱۲) (۲) وللتفصیل مقام اخر. وهوالموفق

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى :وقال في مختار الفتاوى :القصاص مخلص من حق الأولياء وأما المقتول فيخاصمه يوم القيامة فان بالقصاص ما حصل فائدة للمقتول وحقه باق عليه.(رد المحتار ۵ /۳۸۹ قبيل باب القود فيما دون النفس)

(۲) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى :واختلف العلماء رحمهم الله تعالى فى أن الطهرة من الذنب من أحكامه من غير توبة فذهب كثير من العلماء إلى ذلك وذهب أصحابنا إلى أنها ليست من أحكامه فإذا أقيم عليه الحد ولم يتب لم يسقط عنه إثم تلك المعصية عندنا عملاً بآية قطاع الطريق فانه قال تعالى : ذٰلِكَ لَهُم خِزيٌ فِي الدُّنيَا وَلَهُم فِي الاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ اِلَّا الَّذِينَ تَابُوا.

(البحر الرائق ۵/۲،۳ کتاب الحدود) ...(بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

**قاتل ته په دنيا کښ ورکړې شوې سزا د اخروی عذاب د پاره حاجب نه ده**

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کښې چې قاتل ته چې کله په دنيا کښې سزا ورکړې شي نو آيا هغه به په آخرت کښې جواب ورکوی يا نه؟ بينواتوجروا

المستفتی: محمد هارون، فقير محمد... ۲۹ ستمبر ۱۹۷۵ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې د مسلمان قتلول، چې کله قصدا عمدا وی، کبيره گناه ده. (۱) کفر نه دې، (۲) او اصل په کبائرو کښې توبه ده، پس که دې قاتل د قتل نه پس (د قصاص نه مخکښ) توبه کړې وی نو د آخرت د عذاب نه به بچ وی او که توبه ئې نه وی کړې او پښيمانه شوې نه وی نو په آخرت کښې به هم سزا خوری. (۳) وهوالموفق

---

... بقيه ازحاشيه گذشته] وقال العلامة بن عابدين رحمه الله تعالى :إن الحدودلا يكون طهرة من الذنب ولا يعمل فى سقوط الإثم بل لابد من التوبة ، فإن تاب كان الحد طهرة له وسقطت عنه العقوبة الأخروية بالإجماع وإلا فلا۔
(ردالمحتار ۲/۲۱۷ كتاب الحج ،باب الجنايات)

۱) قال الله تعالى :وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللهُ عَلَيهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّلَهُ عَذَابًا عَظِيمًا۔(سورة النساء :۹۳)
وقال رسول الله ﷺ : اكبر الكبائر الاشراک بالله وقتل النفس وعقوق الوالدين الخ۔
(الكبائر للامام الحافظ شمس الدين الذهبى ص ۲۱،الكبيرة الثانية قتل النفس )

۲) وفى التفسير المظهرى : قال الله تعالى :فمن عفى له من اخيه شيئ ...فيه دليل على أن القاتل لا يصير كافرابالقتل حيث ذكر الإخوة الإسلامية بين القاتل والمقتول وأيضاً خاطب بقوله يايها الذين آمنوا۔(التفسير المظهرى ۱ /۱۸۴آيت نمبر ۱۷۰)

۳) وقال العلامة الشامى رحمه الله تعالى :واعلم ان قتل النفس من أكبر الكبائر بعد الكفر بالله تعالى وتقبل التوبة منه فان قتل مسلماً ثم مات قبل التوبة منه لايتحتم دخوله النار بل هو فى مشيئة الله تعالى كسائر أصحاب الكبائر فإن دخلها لم يخلد فيها۔
(ردالمحتار ۶/۳۷۶كتاب الجنايات)

## په نابالغ باندې د قصاص حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو نابالغ هلك یو سړې قتل کړی نو په هغه باندې قصاص شته یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: چیف جسٹس عبدالحکیم خان صوبه سرحد پیښور ... ۱۷ ستمبر ۱۹۶۶

**الجواب:** د نابالغ قاتل نه به قصاص نه شي اخستلې اګر که هغه نابالغ قتل کړې وی یا بالغ لحدیث رفع القلم عن ثلثة عن الصبی حتی یحتلم الحدیث، (رواه النسائی (۱) وأبوداؤد (۲) وابن ماجه (۳) وصححه الحاکم، ولعموم ما رواه عبدالرزاق فی المصنف: عن علی بن أبی طالب عمد الصبی والمجنون خطاء (۴) ورواه عن الزهری وقتادة أیضاً کما فی ص ۷۰/۱۰ ولما فی البدائع ۲۳۴/۷ (۵) أما الذی یرجع إلی القاتل فخمسة أحدها أن یکون عاقلاً، والثانی أن یکون بالغاً فان کان مجنوناً أوصبیاً لایجب لأن القصاص عقوبة وهما لیسا من أهل العقوبة لأنها لاتجب إلا بالجنایة وفعلهما لا یوصف بالجنایة .وفی العالمکیریة ۴/۶ (۶) وعمد الصبی وخطؤه سواء عندنا حتی تجب الدیة فی الحالین، وفی الکاملیة ۲۵۳ (۷) سئلت عن الصغیر إذا قتل نفساً معصومة عمداً ما ذا یلزمه؟ الجواب أنه یلزم بقتله الدیة علی عاقلته قال فی النتف: واذا قتل

---

۱) (سنن النسائی ۲/۱۰۳ باب من لایقع طلاقه من الأزواج)

۲) (سنن ابی داوٗد ۲/۶۰۲ باب فی المجنون یسرق أو یصیب حدا)

۳) (سنن ابن ماجه ۱۴۸ باب طلاق المعتوه والصغیر والنائم)

۴) (سنن الکبری للبیهقی ۸/۶۱ باب ما روی فی عمد الصبی)

۵) (بدائع الصنائع ۶/۲۷۳ کتاب الجنایات)

۶) (فتاوی هندیة ۶/۴۶ کتاب الجنایات، الباب الثانی)

۷) (فتاوی کاملیة ۲۵۳ کتاب الجنایات)

الصبی أحدا فلا قصاص،وفی الهندیة ۴/۶ (۱)ولا قصاص فیما بین الصبیان (عالمکیری أُردو ۲۹۶ )وهوالموفق

## د دنیوي دشمنۍ په وجه باندې شهادت او په چپه تبرونو باندې د قتل د قصاص حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د قوم دته خیل څه کسانو د ملی خیل قوم په پټو کې ګډې بیزې اوځرولې، د ملی خیل والو دا کسان ووهل او بیزې ئې ترې بندې کړې، دته خیل والو وروستو سرکاری ناغه ادا کولو سره بیزې آزادې کړې او ځان سره ئې بوتلې

د مجسټریټ صاحب د تفتیش دوران کې د ملی خیل څه کسان هم راغلل، د حالات معلومولو په وخت د دوارو قومونو ترمینځه یو بل ته بدې ردې ویل شروع شو، کنځلې، جنګ جګړې او فساد ته پکښ خبره ورسیدله د جانبین نه کانې، ډانګونه، تبرونه تردې چې د تمانچو او ټوپکو ډزې هم شروع شوې، فریقین زخمی شو خو د ملی خیل یو کس وفات شو، د ملی خیل والو څلور کسان په موقع حاضر ګواهان ګواهی ورکوی چې د دته خیل فلانی سړی مقتول په تبر باندې نیغ ووهلو چې په هغې سره هغه پریوتلو او فلان فلان درې کسانو هغه له پرلپسې په چپه تبر باندې وهل شروع کړل، بیا قاتلان وتښتیدل. قاتلانو د دې خبرې نه انکار وکړو او وېې ویل چې مونږ نه مقتول وهلې دې او نه مو پیژندلې دې، په صورت مذکوره کې د قصاص یا دیت په باره کې د شریعت مطهره څه حکم دې؟ **بینوا توجروا**

**المستفتي: نامعلوم**

**الجواب:** په صورت مسئوله کې د قصاص حکم غیر صحیح دې څکه چې قاتلین (مدعٰی علیهم) انکاری دی او په شهادت شرعیه سره دعوی نه شی ښکاره کیدې (۲) او د فریقینو په یو بل باندې شهادت د دنیوی دشمنۍ د

---

۱) (فتاوی هندیة ۶/۳ کتاب الجنایات،الباب الثانی)

۲) وقال العلامة ابن عابدین: وإنما کان القتل بعد تحققه ربما یجحد فیحتاج من له القصاص إلی إثباته بالبینة.(ردالمحتار ۵/۴۰۲ کتاب الجنایات،باب الشهادة فی القتل)

وجې نه مردود دې صرح به في جميع معتبرات المذاهب،قال في الدر المختار: وتقبل من عدو بسبب الدين لأنها من التدين بخلاف الدنيوية فإنها لا يأمن من التقوّل عليه،(۵۸/۳)(۱)

او که بالفرض شهادت یا اقرار په دې صورت کې متحقق هم شي نو بیا هم د قصاص حکم غیر صحیح دې ځکه چې ځینو په نیغ تبر باندې حمله کړې ده او ځینو په چپه، لهذا د دې شبهې د وجې نه به قصاص ساقط وی في ردالمحتار ۴۷۲/۵: قال في الجوهرة ولو اشترك رجلان في قتل انسان،أحدهما يجب عليه القصاص لو انفرد والآخر لا يجب عليه القصاص كالأجنبي والأب والخاطئ والعامد او احدهما بالسيف والآخر بالعصا فأنه لايجب عليهما القصاص وتجب الدية، والذى لايجب عليه القصاص لو انفرد تجب الدية على عاقلته كالخاطى والذى يجب عليه القصاص لو انفرد تجب الدية في ماله(۲) انتهى وقال العلامة الشامي رحمه الله تعالى ۴۶۸/۵: والحاصل ان شبه العمد كالخطأ الا في حق الاثم وصفة التغليظ في الدية ، زيلعي(۳) وفي الهندية ۴/۶: ولا يقتل شريك من لا قصاص عليه كالاب والاجنبي والعامد والخاطئ والصغير والكبير،وفيها ايضاً: اذا اشترك الرجلان في قتل رجل،أحدهما بعصا والآخر بحديدة فلا قصاص على واحد منهما ويجب المال عليهما نصفان،ثم كل واحد منهما فيما لزمه من نصف الدية يجعل كالمنفرد به فنصف الدية على صاحب الحديدة في ماله ونصفها على صاحب العصا على عاقلته،كذا في شرح المبسوط(۴) انتهى۔

پس د دې عبارتونو په وجه قصاص په یو کس باندې نه دې بلکه د شهادت یا د اقرار نه پس به ۴/۱ دیت د هغه سړي په مال کې واجب وی چا چې په نیغ تبر

---

۱) (الدر المختار ۴/۴۱۹ كتاب الشهادات ،باب القبول وعدمه)

۲) (ردالمحتار ۵/۳۸۰ فصل فيما يوجب القود وما لايوجبه)

۳) (ردالمحتار ۵/۳۷۷ كتاب الجنايات)

۴) (فتاوى هندية ۶/۴ كتاب الجنايات ،الباب الأول)

سره وار کړي دي او بعض د دیت ۴/۳ دیت به د هغه سړي په عاقله باندې واجب وي کوم چې په چپه تیرونو حمله کړې ده. وهوالموفق

## په قتل باندې د ګواه نه کېدو په صورت کې قاتل ته قسم ورکول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې د شپې قتل شو. د مقتول وارثانو په یو معین سړي باندې دعوی وکړه، دې باره کې د شریعت حکم بیان کړئ. بینواتوجروا

المستفتي: نامعلوم

**الجواب:** په صورت مسئوله کې چونکې ګواهان موجود نه دي لهذا مدعی علیه ته به قسم ورکولې شي که قسم ئې وکړو نو صحیح ده کنه نو هغه به قید کولې شي تردې چې قسم وکړي یا اقرار وکړي فی الهندیة ۷/۴: ومن ادعی قصاصا علی غیره فجحد استحلف بالاجماع کذا فی الهدایة فان حلف فانه یبرأ کذا فی السراج الوهاج، ثمّ ان نکل عن الیمین فیمادون النفس یلزمه القصاص وان نکل فی النفس حبس حتی یقرأو یحلف وهذا عند ابی حنیفة رحمه الله تعالی وقال ابویوسف رحمه الله تعالی یلزم الارش فیهما، کذا فی الهدایة(۱) انتهی. وهوالموفق

## قصاص سره د عفو نه پس دوباره مطالبه کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو مقتول وارث وویل چې زما د مورث مقتول په شهادت کې نقصان راځی نو زه به ئې معاف کړم او دا ئې هم وویل چې که زما د مقتول کور او باغ مونږ ته راکړې شي نو زه

---

۱) (فتاوی هندیة ۴/۱۶ الباب الثالث فی الیمین)
وفی شرح الوقایه :وکذا منکر القود ای یحلف اجماعا لانه حق العباد فان نکل فی النفس حبس حتی یقرأو یحلف ... وهذا عندا بی حنیفة رحمه الله تعالی وعندهما یلزم الارش فی النفس وما دونها.(شرح الوقایه ۳/۲۰۷ کتاب الدعوی)

به نې معاف کړم، وروستو د دې اقوالو نه انکاري شي او وائي چې زه قصاص غواړم اوس دا دواړه قولونه د عفو قابل دي یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي**: مولوي ګل ولي خان ... ۲۶ شوال ۱۳۸۸ھ

**الجواب**: چونکې د قصاص نه عفو یو ځل شوې ده لهذا د دې حق دوباره مطالبه کول بې ځایه دي (لانه اسقاط محض) (۱) **وهوالموفق**

## په غابښ ماتولو باندې د دیت او قصاص حکم

**سوال**: څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې که یو سړې بل ووهی او د هغه غابښونه مات کړي نو په دې ضارب باندې د قصاص او دیت څه حکم دې؟ **بینواتوجروا**

**المستفتي**: محبت خان ایبټ اباد ... ۲۲ جمادی الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب**: په صورت مسئوله کې په دې ضارب باندې قصاص واجب نه دې (۲) خو د مصالحت په طور د رقم لین دین هم جائز دې که د هر غابښ په مقابله

---

(۱) وفي الهندية :ومن عفا من ورثة المقتول عن القصاص فلا سبيل الى القصاص. (فتاوى هندية ۶/۲۰ كتاب الجنايات ،الباب السادس فى الصلح والعفو الخ)

وفي الدر المنتقى :وموجبه الاثم والقصاص عينا الا ان يعفى عن القاتل ولو احدهم فيسقط مجانا ولا يصير مالا الا بالتراضي .(الدر المنتقى على هامش مجمع الانهر ۴/۳۱۰ كتاب الجنايات)

(۲) قال الله تبارک وتعالى :وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيهَا أَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْأَنْفَ بِالْأَنْفِ وَالْأُذُنَ بِالْأُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ.

وقال العلامة القرطبي رحمه الله تعالى :قوله تعالى وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ قال ابن المنذر وثبت عن رسول الله ﷺ انه أقاد من سنّ وقال كتاب الله القصاص.

(تفسير القرطبي ۶/۱۸۶ سورة المائدة ايت ۴۵)

کې ۵۰۰ روپۍ شرعی (تقریبا ۹۰۰۰ پاکستانۍ) وی یا کمې زیاتی وی. (هندیه)(۱) وهوالموفق

## د قاتل په معاف کولو سره قصاص ساقط کیدو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې سعید ولی د خپل خوی خوشدل د قتل دعوی په شیر الله باندې وکړه، د ګواهانو د شهادت نه مخکښې مدعی علیه شیر الله په دې الفاظو باندې ورکړه چې د خوشدل (مقتول) د مرګ نه پس د پلار نه (سعید ولی خان) نه د قاتل ورور حسین الله تپوس وکړو چې زما د ورور شیر الله متعلق ستا څه خیال دې سعید ولی وویل چې شیر الله زما خوی نه دې قتل کړې او که قتل کړې ئې هم وی نو ما معاف کړو، آیا دا معافی شرعی نقطه نظر سره قابل قبول ده یا نه؟ او حال دا چې تر اوسه پورې دا نه ده معلومه صرف په شیر الله باندې دعوی شوې ده، او هغه انکار کړې دې اقرارئې نه دې کړې. **بینواتوجروا**

المستفتی: ماسټر غلام مصطفی چترال... یکم محرم ۱۳۸۹هـ

**الجواب:** په شرط د ثبوت دا معافی په شرعی نقطه نظر سره منظوره ده او د دې نه رجوع او واپسی کول نامنظور ده. فی الهندیة ۲۲/۶: ومن عفا عن ورثة المقتول فلا سبیل الی القصاص،(۲) که چېرته په قاتل باندې ثبوت نه وی شوې نو دا الفاظ د دعوی دفع کولو دپاره کافی دی. **فقط وهوالموفق**

---

(۱) وفی الهندیة: واذا اصطلح القاتل واولیاء القتیل علی مال سقط القصاص ووجب المال قلیلا کان او کثیرا وان لم یذکروا حالا ولا موجلا فهو حال.
(فتاوی هندیة ۶/۲۰ کتاب الجنایات، الباب السادس فی الصلح والعفو والشهادة)

(۲) (فتاوی هندیة ۶/۲۰ الباب السادس فی الصلح والعفو والشهادة فیه)
وفی در المنتقی: وموجبه الاثم والقصاص عینا الا ان یعفی عن القاتل ولو احدهم فیسقط مجانا ولا یصیر مالا الا بالتراضی.
(الدر المنتقی علی هامش مجمع الانهر ۴/۳۱۰ کتاب الجنایات)

## د حکومت نابالغ لره تعزیرا قتلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې آیا حکومت نابالغ قاتل لره تعزیرا قتلولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: چیف جسٹس عبدالحکیم خان پیښور... ۱۷ ستبر ۱۳۶۶ھ

**الجواب:** په کومو لوئې جرمونو کې چې حد او قصاص د عوارض خارجیه د وجې نه ساقط شی نو په هغې کې تعزیر ورکول د مصلحت مطابق جائز دی اګر چې دا تعزیر د مرګ سزا وی او اګر چې دا مرتکب نابالغ وی کما روی ابوداؤد ۶۲۲: وغیره عن انس رضی الله تعالیٰ عنه ان جاریة وجدت قدرض رأسها بین حجرین فقیل لها من فعل بك هٰذا أفلان، أفلان حتی سمّی الیهود فأومت برأسها فأخذ الیهودی فاعترف فامر النبی ﷺ ان یرض رأسه بالحجارة (۱) وروی ابو داؤد ۶۰۴: عن جابر بن عبدالله رضی الله تعالیٰ عنه اتی به (بالسارق) الخامسة فقال اقتلوه قال جابر فانطلقنا به فقتلناه، (۲)، وفی ردالمحتار ۲۴۷/۳: رأیت فی الصارم المسلول للحافظ ابن تیمیه ان من اصول الحنفیة ان لا قتل فیه عندهم مثل القتل بالمثقل والجماع فی غیر القبل اذا تکرر فللامام ان یقتل فاعله... ویسمونه القتل سیاسة وذکر فیه فی ۲۴۷/۳: قتل السارق والخانق اذا تکرر منهما السرقة والخنق فلیراجع، (۳)

---

۱) (سنن ابی داود ۲/۶۲۲ باب ایقاد من القاتل بحجر او بمثل ما قتل)

۲) (سنن ابی داود ۲/۶۰۵ باب السارق یسرق مرارا)

۳) قال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: ان للامام قتل السارق سیاسة ای ان تکرر منه ...أن من تکرر الخنق منه فی المصر قتل به سیاسة لسعیه بالفساد. (رد المحتار ۳/۱۹۶ باب التعزیر)

وفیه ایضاً ۲۴۷/۳: ان الحد لایجب علی الصبي والتعزیر شرع علیه(۱).

**نوټ:** د شرعي فیصلې مطابق شرعي عدالت ته اپیل کول مثلاً نابالغ قاتل باندې تعزیر جاري کول جائز دي خو د شرعي فیصلې مطابق غیر شرعي عدالت ته درخواست کول او د دې اجازت ورکول د شریعت سپکاوې او زندیق توب (بې دیني) ده.

## قاتل معاف کول د وارثانو حق دې نه د حکومت

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې حکومت قاتل معاف کولې شي یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: چیف جسټس عبدالحکیم خان پیښور... ۱۷ سمتبر ۱۳۶۶ هـ

**الجواب:** قاتل معاف کول د وارثانو حق دې نه د حکومت. قال رسول الله ﷺ: من أصیب بدم أو خبل فهو بالخیار بین إحدی ثلاث فإن أراد الرابعة فخذوا علی یدیه بین ان یقتص أو یعفو أو یأخذ العقل (رواه الدارمي بحواله مشکوة ۳۰۲/۲)(۲) وفي مصنف عبدالرزاق ۱۴/۱۰: عن عمر بن عبدالعزیز عن عمر بن الخطاب قال: ولا یمنع سلطان ولي الدم ان یعفو ان شاء او یأخذ العقل اذا اصطلحوا(۳) وفي الهدایة ۵۰۰/۲ کل شيء صنعه الامام الذي لیس فوقه امام فلا حد علیه الا القصاص فانه یؤخذ به وبالاموال لان الحدود حق الله تعالی واقامتها الیه بخلاف حقوق العباد لانه یستوفیه ولي الحق الخ(۴). وهو الموفق

---

۱) (رد المحتار ۱۹۴/۳ باب التعزیر ،مطلب یکون التعزیر بالقتل)

۲) (مشکوة المصابیح ۳۰۲ کتاب القصاص)

۳) (تهذیب الاثار للطبری ۵/۵۵ رقم حدیث ۱۷۶ لایمنع سلطان ولي الدم)

۴) (الهدایة ۵۲۰/۲ قبیل باب الشهادة علی الزناء)

وقال العلامة وهبة الزحیلي: یشترط شرطان في العفو... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده]

## په ټوپک باندې قتلول د قصاص واجبونکې دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې په تیرهٔ ټوپك سره قتل کړې شو، مقتول بې ګناه وو، دا شهید دې یا نه؟ او آیا دا آله جارحه ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: حافظ سید احمد شاه تحت بهائی مردان**

**الجواب:** واضحه دې وی چې اوسپنه اګر چې تیرهٔ نه وی مثلا وسله وی، د اله جارحه په حکم کې ده لهذا په دې سره قتل قصاص واجبونکې او د شهادت سبب دې او ښکاره شوې څاروې به حلال نه وی **لعدم التحدید فافهم... مأخوذ ازجنایات هدایة[1] ورد المحتار[2] وشهادة رد المحتار[3] وهو الموفق**

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] ان یصدر العفو من صاحب الحق فیه و صاحب الحق هو الورثة رجالاً ونساءً ... عند الجمهور ومن لا حق له فی العفو هو الاجنبی غیر الوارث ...وكذا الاب والجد فی قصاص وجب للصغیر ...فلا یملکه احد سوی الصغیر بعد البلوغ حتی الحاکم لایملکه .(الفقه الاسلامی وادلته ۷/۵۶۹۱ شروط العفو،الباب الثالث،الجنایات)

[1] قال العلامة المرغینانی :فالعمدما تعمد ضربه بسلاح أو ما أجری مجری السلاح کالمحدد من الخشب ولیطة القصب والمروة المحددة والنار لأن العمد هو القصد ولایوقف علیه الا بدلیله وهو استعمال الآلة القاتلة.(الهدایة ۴/۵۵۹ کتاب الجنایات)

[2] وقال العلامة ابن عابدین : العمد ما تعمد قتله بالحدید کالسیف والسکین والرمح والخنجر والنشابة والإبرة والإشفی وجمیع ماکان من الحدید ...قلت وعلی کل فالقتل بالبندقة الرصاص عمد لانها من جنس الحدید وتجرح فیقتص.(ردالمحتار ۵/۳۷۵ کتاب الجنایات)

[3] وقال العلامة الحصکفی :وان شهد انه ضربه بشیئ جارح فلم یزل صاحب فراش حتی مات یقتص.

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی :(قوله یقتص)...لما شهدوا بالضرب بالسلاح ثبت العمد...لأن العمد هو القصد بالقلب وهو أمر باطن لایوقف علیه ،ولکن یعرف بدلیله وهو الضرب بآلة قاتلة.(ردالمحتار ۵/۴۰۴ باب الشهادة فی القتل)

## د ځوی د قتل د ویرې نه د پلار هغه لره قتلول

**سوال:** مایقول العلماء الکرام فی المسئلة الآتیة: رجل قصد قتل أبیه وقد أخذ بعض ماله إکراها والأب یقول إن ابنی أخذ مالی قهرًا والآن قصد قتلی لأجل خوف منی لأن الظالم إذا أخذ مال المظلوم یخاف منه بعد فالآن یقول الأب أءقتل ابنی أو أترکه لیقتلنی أو یفعل بی مایشاء؟ بینوا توجروا

المستفتی: صفت الله کاریگر دره بازار کوهاټ ۲۸ شعبان ۱۳۹۸ھ

**الجواب:** الرجل إذا قتل الظالم (مدافعة عن نفسه أو ماله) یکون جائزًا و مشروعًا کما فی الهندیة ۱۸۷/۲: المکابر بالظلم وقطاع الطریق وصاحب المکس وجمیع الظلمة والأعوان والسعاة یباح قتل الکل ویثاب قاتلهم، کذا فی النهر الفائق (۱) لکن لاندری الظالم من المظلوم بمجرد الخط فکیف یفتی بجواز قتل الأب ابنه۔ وهو الموفق

## قصدا د بل ګاډی سره جنګونکی مقتول وینه ضائع ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی قصدا خپل ګاډې د بل سړی ګاډی سره ووهلو چې په هغې سره دا سړې هلاک شو،

---

۱) (فتاوی هندیة ۲/۱۶۷ فصل فی التعزیر)

وقال العلامة الحصکفی رحمه الله تعالی: المکابر بالظلم وقطاع الطریق وصاحب المکس وجمیع الظلمة بأدنی شیئ له قیمة وجمیع الکبائر والأعونة والسعاة یباح قتل الکل ویثاب قاتلهم وأفتی الناصحی بوجوب قتل کل موذ۔

وقال العلامة ابن عابدین رحمه الله تعالی: لعل الوجوب بالنظر للإمام ونوابه والإباحة بالنظر لغیرهم۔

(ردالمحتار ۳/۱۹۷ باب التعزیر، مطلب یکون التعزیر بالقتل)

اوس عرض دا دې چې د دې بل ګاډي په ډرائیور باندې شرعاً څه څیز واجب دې مهرباني وکړئ جواب تفصیلي راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: قریش احمد شاه لکي مروت ضلع بنون ۲ جولائی ۱۹۸۶ء

**الجواب:** که دا قصد منلي شوې یا په شهادت شرعیه سره ثابت وی نو د مقتول وینه ضائع ده، دا د هغه خپل فعل دې کوم چې د هلاکت سبب جوړ شوې دې.

كما في الهندية ۹۶/۶: ولو اصطدمت السفينتان إن كان بفعل الراكب والملاح ضمن ولا ضمان في الأنفس (۱) انتهى فافهم. والله أعلم بالصواب.

## د کافر شوروي، مرتد خلقي پرچمي او د هغوی د عسکر د قتل او اموال غنیمت جوړولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې جهاد افغانستان کې د مجاهدینو خلاف دریم قسم خلق جنګ کوی. ۱: کافر شوروي، ۲: مرتد خلقي او پرچمیان دی. ۳: عسکر یا ملیشه کوم چې کمیونستي حکومت په فوج کې په زوره داخلوی او د هغوی په ذهنونو کې ئې دا خبره کینولې ده چې دا مجاهدین انګریزان دی کوم چې زمونږ د ملک دشمنان دی

اوس د جنګ په دوران دا درې واړه قسم خلق د مجاهدینو په لاس راشي سره د وسلې، دا مسئله خو ښکاره ده چې کافر خو غلام جوړ شي او وسله مال غنیمت، خو دا مرتد او عسکر زمونږ دپاره څه جوړیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: فتح محمد مهاجر چمن بلوچستان...... ۶ جولائی ۱۹۸۵ء

**الجواب:** د دې درې واړه قسم خلقو قتل جائز دې. أما الأولان فظاهران،

(۱) (فتاوی هندیة ۶/۸۸ کتاب الجنایات، باب المتفرقات)

وأما الثالث فلكونهم معاونين لأهل الزندقة والإلحاد كما في الكاملية،(۱) او د دې درې واړه قسمه خلقو وسله وغيره مال غنيمت دې۔ اما الأول والثاني فلا خفاء فيهما(۲) وأما الثالث فلكونها وديعة عنده من الزنادقة والدهريين (۳) فافهم۔ وهو الموفق

## د بې ځایه حمله کونکی قتل د قصاص او دیت سبب نه دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې دوه ځايونو کې مشترکه ځمکه ده او د ځمکې د هرې ټکړې اوبه خور په بيله بيله چينه سره کولې شی، يوه ټکړه خرابه ده او د هغې اوبه مشترکه طور د آبادې ځمکې د استعمال دپاره وی وروستو خرابه حصه آباده کړې شوه د باقی شريکانو نه اوبه بندې کړې شوې، نورو شريکانو جواب ورکړو چې د اوبو حصه متيقن ده، د استعمالولو زمونږ حق دې. دوه کسانو په دې خرابه ځمکه د اوبو د

---

۱) وفى الكاملية: سئلت عن بلدة استولى عليها الكفار وتمكنوا منها وفانضم اليهم بعض القبائل والعشائر وصاروا يقاتلون معهم المسلمين وينهبون مالهم وينصحون الكفار ويعينونهم على أذى المسلمين فما الحكم فيهم وهذا حالهم؟

فالجواب ...والظاهر أن حكم هؤلاء حكم دار الحرب فى قتلهم وأخذ مالهم وإنما أبيح قتل البالغين منهم لكونهم رداً لعدوالحرب ومعينون له بأنفسهم وحكم الرداً إذا لم يقاتل مع العدو حكم المقاتل فأحرىٰ إذا قاتل۔

(فتاوىٰ كاملية ۲۵۰ كتاب الجنايات)

۲) قال العلامة ابن عابدين: قال فى الهندية: الغنيمة إسم لمايؤخذ من أموال الكفرة بقوة الغزاة وقهر الكفرة۔ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳/۲۵۰ باب المغنم)

۳) قال ابن الهمام: وما أودع حربياً ففى ظاهر الرواية فيئ وجه الظاهر أنها ليست يداً صحيحة حتى لا تدفع اغتنام المسلمين عن أمواله۔

(فتح القدير ۵/۲۳۰ باب الغنائم وقسمتها)

راوستلو دپاره نالۍ جوړول شروع کړل کوم سړی چې اوبه منع کړې وې د هغه خامنو او د هغه خامنو سره د مخالفې ډلې په یو بل باندې ډزې وکړې، د یو خورئي زخمي شو اود یوډلې نه یوسړې قتل شو آیا د هغوی دپاره دا قتل مباح وو؟ که د مقتول دیت وی نو دا قتل عمد دې، آیا د دې دیت به په عاقله باندې وی؟ په نالۍ او اوبو کې اګر چې ټول شریك وو خو آیا په دې صورت کې به د اوبو شریکان په تاوان کې مشترك وی؟ کومې ډلې چې قتل کړې دې که هغه سره په تاوان کې شریکیږی نو آیا صرف په تاوان کې به شریکیږی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولوی محمد خان ژوب ښهر صوبه بلوچستان... ۹ ربیع الثانی ۱۴۰۱ھ**

**الجواب:** الف: د یوې خمکې اوبه بلې له ورکول جائز دی. **کمافی شرح التنویر: اویسوق نصیبه الی ارض له اخری لیس له منه ای من النهر شرب** (رد **المحتار ۶:۴۴٤**) (۱)

ب: د بې خایه حمله کونکی قتل هدر دې. **لکونه باغیا وشاهرا** (۲)

ج: قتل عمد مذکوره نه د قصاص سبب دې او نه د دیت سبب، نو په دې کې په چا باندې د تاوان فیصله رواجی ده اسلامی فیصله نه ده، په دې شرط چې نوعیت هم دا مذکوره شرط وی. (۳)

د: دا ډله په اوبو راوړلو کې په حقه نه ده. (۴) **هوالموفق**

---

۱) (الدر المختار ۵/۳۱۵ فصل فی الشرب)

۲) قال العلامة الزیلعی: من شهر علی المسلمین سیفا فقد أبطل دمه لأن دفع الضرر واجب فوجب علیهم قتله إذا لم یکن دفعه إلّا به ولا یجب علی القاتل شیئی لأنه صار باغیاً بذلک. (تبیین الحقائق ۶/۱۱۰ کتاب الجنایات، باب ما یوجب القود ومالا یوجبه)

۳) وفی الهندیة: ومن شهر علی المسلمین سیفا وجب قتله ولا شیئ بقتله.
(فتاوی هندیة ۶/۷ کتاب الجنایات، الباب الثانی فیمن یقتل قصاصا ومن لا یقتل)

۴) وفی الهندیة: ولیس له أن یسقی أرضه ونخله وشجره من نهر هذا الرجل وبیره وقناته إلّا بإذنه نصاً وله أن یمنع من ذلک. (هندیة ۴/۴۸۷ فصول فی مسائل الشرب)

## د مریض په دوایئ باندې فوت کیدو سره په ډاکټر باندې د تاوان حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د ډاکټرۍ کورس نه دې کړې او نه ورسره سند شته او وړوکې کمپوډر دې نو که د هغه په انجکشن یا دوایئ سره مریض مړ شو یا ئې مرض سخت شو نو آیا دا ډاکټر به شرعا مجرم وی؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** صالح شاه سکنه مرتضیٰ تحصیل ټانک ډیره وزیرستان .... ۵ رجب ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که دا علاج د مریض په اجازت سره شوې وی او دا دوائی هم د هغه مرض وی او باقاعده په استعمال کې راوستلې شوې وی نو په دې معالج باندې به ضمان نه لازمیږی. (جامع الفصولین ۲: ۸۶)(۱) **وهوالموفق**

## د قتل شهادت پټونکی امام حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په کلی کې د شپې په تیارهٔ کې د قتل واردات وشو، د مسجد امام د واردات ځای ته د ټولو نه اول راورسیدلو او د مقتول روح د هغه په غیږ کې اووتلو چې د هغې ګواهی د مسجد امام د D.S.P مخکښ په انکوائرئ کې هم ورکړو او دا ئې هم ورته وویل چې مقتول ماته ویلې وو چې زه فلانی سړی وژلې یم په دې الزام کې دوه کسان ګرفتار شو یو هم هغه او بل یو سړې، چې کله کیس د سیشن جج عدالت ته لاړو نو هلته د مسجد امام داسې ګواهی ورکړه چې زه کله د واردات ځای ته لاړم نو ډیر خلق جمع وو او مقتول مړ شوې وو ماته هغه هیڅ نه دی ویلی او نه ما سره د هغه څه خبرې شوې دی او حال دا چې امام

---

(۱) وفی جامع الفصولین :لیس علی فصّاد وبزّاغ وحجّام ضمان السرایة لولمّ یقطعوا زیادة علیٰ قدر معهود ماذون فیه، فلو شرط علیهم العمل السلیم عن السرایة بطل الشرط إذ لیس فی وسعهم ذلک۔ (جامع الفصولین ۲/۱۳۳ الفصل الثالث والثلاثون فی أنواع الضمانات الواجبة، ضمان الفصّاد)

صاحب په ډیرو ځایونو کې د اولې خبرې اقرار کړې وو اوس د دې امام څه حکم دې؟ د هغه په اقتدا کې به مونځ جائز وی یا نه؟ د مسجد امام وائی چې که ما د هغه سړی نوم واخستلو کوم چې ماته مقتول اخستلې دې نو سړې به پانسی شوې وی په دې وجه ما شاهدی ورنکړه لهذا تاسو صاحبان مونږ ته فتوی راکړئ؛

**المستفتی: نامعلوم**

**الجواب:** موجوده حکومت د نظام شرعی نه محروم دې د دې حکومت په قانون کې قصاص نشته د قاتل مقتول وارثان نه شی حواله کولې چې هغوی په خپلې مرضئ سره قاتل قتل کړی یا هغه معاف کړی (۱) د دې حکومت په قانون کې قاتل ته د مرګ سزا د تعزیر په طور ورکولې شی کوم چې د حکومت حق دې نو بهر حال دا امام د شهادت د پټولو په وجه ګنهګار دې. (۲) خو هغه د حکومت حق وهلې دې، د اولیاء مقتول حق حکومت وهی. حکومت د دې امام نه زیات ګنهګار دې او بهر حال په داسې امام پسې د دینداره خلقو اقتداء مکروه تحریمی ده او د نورو دپاره د هغوی اقتداء جائز ده سره د کراهت نه. کمافی امامة البحر (۳) وهوالموفق

## په قیامت کې د مقتول دپاره د حق تشفی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې وسیم لره اکرم

---

۱) عن أبی هريرة رضی الله تعالى عنه عن النبی ﷺ قال: من قتل له قتيل فهو بخير النظرين إما أن يعفو وإما أن يقتل. (جامع الترمذی ۱/۳۹۲،أبواب الديات،باب ما جاء فی حكم ولی القتيل فی القصاص والعفو)

۲) قال الله تبارك وتعالى :وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ وَمَن يَكْتُمْهَا فَإِنَّهُ آثِمٌ قَلْبُهُ. (سورة البقرة ۲۸۳)

۳) قال العلامة ابن نجيم رحمه الله تعالى :وينبغی أن يكون محل كراهة الاقتداء بهم عند وجود غيرهم وإلا فلا كراهة كما لا يخفى .(البحر الرائق ۱/۳۴۹ باب الإمامة)

قتل کړو، د وسیم وارثانو اکرم معاف کړو چې د هغې د وجې نه هغه د دنیوی معاملاتو نه آزاد شو خو په قیامت کې به د هغه معامله الله پاک ته پیش کیږی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مدرس خان کمر کله بنون.... ۲۵ رمضان ۱۳۹۸ھ

**الجواب:** د قواعدو په رڼا کې قاتل بری شو(۱) اوځینو علماء کرامو لیکلي دی چې دقیامت په ورځ باندې به مقتول ته حق تشفی حاصل وی(۲) وهوالموفق

## په جنګ کې د دشمن د ګاډی د سیزلو او د ډرائیور په قتل باندې د ضمان او قصاص مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دوه ډلو ترمینځه شخړه شوې وه، په هغې کې د یوې ډلې ګاډې بلې ډلې اوسیزلو او ډرائیور ئې قتل کړو، اولې ډلې په بلې ډلې باندې د ګاډی د سیزلو او د ډرائیور د قتلولو دعوی وکړه، اوس په پورته صورت کې د قصاص یا دیت د شرعی فیصلې نه مونږ خبر کړئ؟ بینواتوجروا

المستفتی: اهلیان سری کوټ...... ۸ شعبان ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که دا قتل او ټریکټر، ویګن وغیره سیزل د طرفین نه علاوه د ثالث اشخاصو په شهادت سره ثابت شو نو د دې سوزونکو نه به ضمان او تاوان اخستل کیږی. (۳) او د قتل کونکی سړی نه به قصاص اخستل کیږی.

---

۱) وفی الهندیة :ومن عفا من ورثة المقتول عن القصاص فلا سبیل إلی القصاص -
(فتاوی هندیة ۶/۲۱کتاب الجنایات ، الباب السادس فی الصلح والعفو )

۲) قال العلامة العینی :وحکی عن القاضی إسماعیل وغیره أن قتل القاتل حد واردع لغیره وأما فی الاخرة فالطلب للمقتول قائم لأنه لم یصل إلیه حق وقیل یبقی له حق التشفی.
(عمدة القاری ۱/۱۵۷ کتاب الأیمان،باب علامة الإیمان حب الانصار)

۳) وفی شرح المجلة :إذا اتلف واحد مال غیره الذی فی یده أوفی ید أمینه قصداً أو من غیر قصد یضمن-(شرح المجلة لسلیم رستم باز رحمه الله تعالی ۵۰۸،المادة نمبر ۹۱۲)

(۱) او د قتل عمد په تقدیر باندې په مال باندې مصالحت هم صحیح دې که هغه مقدر دیت وی یا د هغې نه کم او زیات وی. (۲) د مقدار تعیین د طرفین په رضامندئ باندې موقوف دې او د باقاعده شهادت نه کیدو په تقدیر باندې به منکر ته د قسم ورکولو فیصله ورکولې شی یعنی د وژلو او سیزلو نه منکر ته به قسم ورکولې شی. (۳) (ماخوذ از شرح المجلة وهنیة)

**نوټ**: د مجرمانو نه علاوه د نورو کسانو نه تاوان اخستل د دې آیت ﴿وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ﴾ مخالف دی.

## د دوه ډلو ترمینځه په شخړه کې د صلح نه پس د جوړ مړی د قصاص او دیت مسئله

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په دوه ډلو ترمینځ جنګ وشو او وروستو پکښې صلح هم وشوه خو یو سړی په مرض الموت کې دا وویل چې زه په دې جنګ کې زخمی شوې او که زه مړ شوم نو زما وفات به هم د دې د وجې نه واقع کیږی اګر چې په هغه باندې د زخم وغیره نخښه نشته نه چا زخمی لیدلې دې اوس هغه مړ شوې دې نو شرعی حکم څه دې؟

**المستفتی**: شیر غنی مدرسه دار الارشاد چمن کوئټه .... ۱۴ ربیع الاول ... ۱۹۷۴ء

**الجواب**: په صورت مسئوله کې نه د قصاص جواز شته او نه ده دیت وغیره،

---

۱) وفی الهندیة :أما العمد فما تعمد ضربه بسلاح أو مایجری مجری السلاح فی تفریق الأجزاء ...وموجب ذلک المأثم والقود.
(فتاوی عالمگیریة ۶/۲ کتاب الجنایات ،الباب الأول )

۲) وفی الهندیة :واذا اصطلح القاتل وأولیاء القتیل علی مال سقط القصاص ووجب المال قلیلاً کان أو کثیراً.(فتاوی عالمگیریة ۶/۲۰ الباب السادس فی الصلح والعفو)

۳) وفی شرح المجلة :فإذا أظهر المدعی العجز عن إثبات دعواه حلف المدعی علیه بطلبه.(شرح المجلة ۱۰۹۳: المادة نمبر ۱۷۴۲)

لعدم الجرح ولوجود الصلح كما فى الدرالمختار: ومن جرح رجلا عمدًا فصار ذات فراش ومات يقتص ...وقدمنا أنه لو عفا المجروح أو الأولياء قبل موته صح(۱) فافهم.-وهوالموفق

## تادیبا او د مور د لاندې د مړ کیدونکی د قتل ترمینځه فرق

**سوال:** څه فرمائی علماء دین ددې مسئلې په باره کې چې زینب دخپل وړوکی خوی سره په بستره باندې ناسته وه، سحر څه ګوری چې خوی ئې مړ شوې وو نو آیا په زینب باندې به د شریعت له مخې دیت یا کفاره لازمیږی یا نه؟

**الجواب:** په صورت مذکوره کې شرعا په زینب باندې کفاره واجب نه ده، كما فى فتاوى أنقروية ص ۱۸۰: رجل ضرب ولده الصغير فى أدب فمات، قال أبوحنيفة رحمه الله تعالى يضمن الدية وعليه الكفارة وقال أبويوسف رحمه الله تعالى لاكفارة عليه ولو ضربه المؤدب بإذن والده لاضمان على المؤدب وعليه الكفارة وقال محمد رحمه الله تعالى لاكفارة عليه وكذلك قال أبويوسف رحمه الله تعالى فى القتل الذى يوجب الدية من جنايات الخانية،(۲) وذكر فى أواخر فصل فى البقار والراعى من إجارة الخانية مفصلًا: والمعلم إذا ضرب صبيًا أو الأستاد المحترف إذا ضرب التلميذ فمات من ضربه ذلك قال الإمام الفضلى إن ضربه بأمر أبيه أو وصيه ضربًا معتادًا فى الموضع المعتاد لايضمن وإن ضربه ضربا غير معتاد ضمن.-الخ(۳)

**مجیب:** مولوی فضل ودود دواړی جندول ... یکم شعبان ۱۴۰۳ھ

د پورته مسائلو په اړه کې ستاسو څه رایه ده؟ **بینوا توجرو**

**المستفتی:** نامعلوم

---

۱) (الدرالمختار ۵/۳۸۶ فصل فيما يوجب القود وما لايوجبه)
۲) (فتاوى خانية على هامش الهندية ۳/۴۴۴ فصل فى القتل الذى يوجب الدية)
۳) (فتاوى خانية على هامش هندية ۲/۳۳۷ فصل فى البقار والراعى)

**الجواب**: دا مسائل پخپله صحیح دی خو د دې نه دا نه لازمیږی چې د اودهٔ مور په ډډه اوښتلو سره دې په هغې باندې کفاره نه وی لکونه قتلاً غیرحق (۱) وعلی وجه المباشرة، بخلاف القتل بالتأدیب فإنه قتل بحق، وبخلاف سقوط الصبی من البیت ونحوه لکونه قتلاً لاعلی وجه المباشرة. ولو سلم کونه قتلاً بسبب فموجبه وجوب الدیة دون الکفارة (۲) فافهم. وهوالموفق

**د کمیونسټو د کېښودل شوې بم د وجې نه د مقتول د شهادت حکم**

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د روسیانو جوړ کړې کمیونسټ افغان حکومت په ځمکه کې بم ږدی څوك چې په هغې باندې راشی او د خپو لاندې ئې شی نو انسان هلاکوی او اکثر سر یا لاس الوځوی داسې انسان ته به غسل ورکولې شی او که بغیر د غسل نه به ښخولې شی؟ دلته په محاذونو باندې د مجاهدینو سره داسې پیښې کیږی؟ بینواتوجروا

المستفتی: حاجی محمد دار العلوم نظامیه شمالی وزیرستان ... ۶ صفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب**: چونکې دا قتل، قتل سببی دې په دې وجه به مقتول ته غسل نه شی ورکولې کما فی الهندیة ۱۷۹/۱ قبیل باب السجدات: والأصل أن کل من صار مقتولاً فی قتال ثلاث، أهل الحرب أو البغاة أو قطاع الطریق بمعنی مضاف إلی العدو سواء کان بالمباشرة أو التسبیب کان شهیداً وکل من صار مقتولاً بمعنی غیرمضاف إلی العدو لایکون شهیداً کذافی المحیط (۳)

**نوټ**: که مجاهدین هم پټ بمونه ږدی نو د اشتباه د وجې نه به دا حکم نه جاری کیږی. واللهاعلم

---

۱) قال العلامة ابن نجیم رحمه الله تعالی: والخطاء ...وما جری بمجراه والنائم إذا انقلب علی رجل فقتله، الکفارة والدیة علی العاقلة.(البحر الرائق ۸/۲۹۲ کتاب الجنایات)

۲) قال الحصکفی رحمه الله تعالی: والخامس قتل بسبب ...وموجبة الدیة علی العاقلة لا الکفارة.(الدرالمختار ۵/۳۷۷ کتاب الجنایات)

۳) (فتاوی هندیة ۱/۱۷۹ قبیل باب السجدات)

## په معافئ سره د قصاص د ساقط کیدو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې بو قیدی کوم ته چې د مرګ سزا اوررولې شوې وی. او وروستو معلومه شی چې هغه د دې سزا یعنی قصاص قابل نه دې په داسې طریقه چې د مقتول د پلار میر اکبر بیان دې چې زما د خوی قتل سحر وختی شوې دې. د تفتیش دوران کې زما نه تپوس نه دې کړې شوې بهر حال که زما د خوی محمد اقبال قاتل زما وررور شاه ولی الله وی نو بیا هم ما هغه ته دا قتل وبخښلو. د مقتول د مور بیان دې چې زه مسماة شیربانو د خپل خوی محمد اقبال قتل د الله پاک دپاره شاه ولی الله ته بخښم لهذا ملزم دې آزاد کړې شی. د دې نه علاوه د مقتول وررور شیر نواز د خپلې مور په بیان باندې دستخط کړې دې. لهذا اوس زه غواړم چې په قانون شرعی سره متعلقه حکام خبر کړم چې اوس زما د مجرم کیدلو یا بې ګناه کیدلو مسئله باقی پاتې نه شوه، تاسو په خپل لاس مبارک باندې دستخط کولو سره مهر ولګوئ چې د دې مصیبت نه راته خلاصې ملاؤ شی.

المستفتی: شاه ولی الله ضلع کیملپور... ۱۳ جنوری ۱۹۷۵ء

**الجواب:** واضحه دې وی چې قصاص د اولیاء مقتول حق دې، هغوی د قصاص اخستلو او معاف کولو مجاز دی، د هغوی په معاف کولو او معافی ورکولو سره مجرم خلاصیږی. دا حکم الله پاک په قرآن کریم کې ذکر کړې.

{يَآيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى فَمَنْ عُفِيَ لَهٗ مِنْ اَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ} (سورة البقرة ۲۲) (۱) وکذا صرح به فی الحدیث، رواه الدارمی کما فی المشکوة ۲/۳۰۲ (۲). وهو الموفق

(۱) (سورة البقرة ۱۷۸)

(۲) وفی المشکوة: عن أبی شریح الخزاعی قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: من أصيب بدم أو خبل فهو بالخيار بين إحدى ثلث بين أن يقتص أو يعفو أو يأخذ العقل.
(مشكوة المصابيح ۲/۳۰۱ كتاب القصاص، الفصل الثانی)

## د دوایئ په طور ماشوم ته افیون ورکولو سره

## د هغه په مړ کیدو باندې د ضمان حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې افیون د دوایئ په طور ورکړې شی او هغه مریض مړشی نو آیا د هغه په ورکونکی باندې به دیت یا ضمان واجب وي یا نه؟ جواب راکړئ. **بینواتوجروا**

المستفتی: مولانا حبیب الله قندهاری حالا ساکن کوئټه .....۱۸ ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که دا افیون ورکول د ماهرینو د خبرو یا تجربې نه ثابت وي چې په دې سره ماشوم ته صحت ملاویږي نو په داسې حادثه کې ضمان نه واجبیږي خو په دې شرط چې د خوراك په مقدار کې د حد نه تجاوز نه وی کړې شوې، کنه نو دیت او کفاره به واجب وی یدل علیه مافی الهندیة ۶: ۳۷ (۱) وابی داؤد ۲: ۶۳ (۲) والله اعلم

## د اعتراف او شهادت نه بغیر قاتل قتلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دوه ورونه دی. د هغوی د ماشوم والی نه خپل مینځ کې تکرار او شخړې راځی، چې کله ځوانان

---

(۱) وفی الهندیة :البزّاع أو الفصّاد أوالحجّام إذا بزغ أو فصد أو حجم وکان بإذن المولی فی العبد أو بإذن الولی فی الصبی وسری إلی النفس فمات فلا ضمان علیهم، وکذلک الختان فی هذا، فهولاء لایضمنون السرایة بلا خلاف.
(فتاوی هندیة ۶/۳۴، الباب التاسع فی الأمر بالجنایة ومسائل الصبیان)

(۲) وقال الإمام أبوداود رحمه الله تعالی :عن عمرو بن شعیب عن أبیه عن جده أن رسول الله ﷺ قال :من تطبب ولا یعلم منه طب فهو ضامن...قال رسول الله ﷺ أیما طبیب تطبب علی قوم لایعرف له تطبب قبل ذلک فأعنت فهو ضامن.
(سنن أبی داود ۲/۶۳ باب فیمن تطبب ولا یعلم منه طب فأعنت)

شو او د هغوی بچې پیدا شو نو یو د خپل ځوی دپاره کور جوړول غواړی او بل هم د خپل ځوی دپاره. لهذا په دې باندې د دواړو وروڼو ترمینځه شخړه وشوه او په دې سره یو ورور زخمی هم شو ددې نه پس جرګې کیدلې، څو ځله فیصله وکړې شوه خو شخړه کیدله، آخر د شپې یو ورور ووژل شو، وارثانو په هغه باندې دعوی وکړه یعنی د مقتول ورور ځامنو په خپل تره باندې دعوی وکړه خو تره ئې صفا انکار وکړو او د قسم دپاره هم تیار دې اوس مونږ پریشانه یو چې څه وکړو، اوس زمونږ دپاره خپل تره وژل څنګه دی؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی: عزیز الرحمان پېښور**

**الجواب:** چونکې دا ملوث سړې نه اعتراف کوی او نه په دې باندې شاهدان شته لهذا دهغه وژل ناجائز او بې قاعدې کار دې (۱) ممکنه ده چې چا د دواړو خاندانونو ترمینځه د دشمنئ د تیزولو دپاره دا اقدام کړې وی. بهر حال په قسم باندې انکار کول اصولی رد دې. **وهوالموفق**

## د قتل د اقرار نه په انکار باندې په دروغه قسم کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو هلك د شپې ووژل شو. چې د هغه بدن سحر ملاؤ شو، قاتل مالدار او بااثر وو. چې د هغې د وجې نه پولیسو صحیح تفتیش اونکړې شو. دقاتل ډله د مقتول ورور او پلار له لاړل او ویې منله چې مونږ قتل کړې دې لهذا مونږ دې معاف کړې شو خو مسئله حل نه شوه، او تفتیش کرائمز برانچ ته اوسپارل شو، د مقتول پارټئ د قاتل د قوم نه دوه سپین ږیري منتخب کړل چې که دوی په قرآن کریم

---

۱) وفی الهدایة: وإذا صحت الدعوی سأل القاضی المدعی علیه عنها فإن اعترف قضی علیه بها لان الإقرار موجب بنفسه فیأمره بالخروج عنه وإن انکر سأل المدعی البینة لقوله علیه السلام: ألک بینة؟ فقال لا، فقال... و إن أحضرها قضی بها لانتفاء التهمة عنها.

(هدایة ۳/۲۰۲ کتاب الدعوی)

باندې قسم خوړلو سره ووائي چې ملزم بې قصور دې نو مونږ به مقدمه واپس واخلو. لهذا دوه کسانو په قرآن کريم باندې لاس کېښودلو سره قسم وکړو چې قاتل بې قصور دې حال دا چې قاتل مخکښې منلې وه، د دې نه وروستو ئې هم د ډېرو خلقو مخکښې ويلې دي چې مونږ خپل حج او ايمان ضائع کړو، آيا په دې خلقو باندې جنازه جائز ده، په جماعت کې د دوی پرېښودل او هغوی سره تعلق ساتل څنګه دی؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: احمد حسين واپډاکالونی اسلام آباد... ۱۷ اکتوبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** که واقعی دې کسانو په دروغه باندې قسم کړې وی نو دوی د فساق او فجّارو په ډله کې راغلل. توبه کول په هغوی باندې لازم او ضروری دی (۱) او چونکې په دې دور کې صالحين ډېر کم دی، په زرو کې يو سړې هم صالح نه ملاوېږی، لهذا د دې تعزيری احکاماتو جاری کول نه شی کاميابيدې **وهوالموفق**

## د بل قوم مال، بچی او څاروی په انتقام کې هلاکول

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ د کلی خلقو د بل کلی په خلقو باندې حمله وکړه او زنانه، ماشومان او څاروو پورې ئې هرڅه هلاک کړل. نو اوس که دا د بل کلی خلق په دې لومړي کلی باندې د بدلې اخستلو دپاره حمله وکړی او د هغوی زنانه او ماشومان قتل کړی نو د دې به څه حکم وی؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: مولاناګلاب خان وزيرستانی... ۱۷ اکتوبر ۱۹۸۷ء

**الجواب:** بدله به باقاعده په قصاص او خون بها سره اخستلې شی نه په ظلم

---

(۱) قال العلامة الحصكفی رحمه الله: وهی غموس تغمسه فی الإثم ثمّ النار وهی كبيره مطلقا لكن إثم الكبائر متفاوت إن حلف علی كاذب عمداً ولوغير فعل --ويأثم بها فتلزمه التوبة (الدرالمختار ۳/۵۱ كتاب الأيمان، مطلب فی حكم الحلف بغيره تعالی)

او بغاوت سره. (۱) وهوالموفق

## ذېل مېنځ کې د قتل کېدونکي د قصاص او دیت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دوه کسانو د اوبو په نمبر باندې شخړه وه، دواړو یو بل په چاړه باندې وهل شروع کړل خو د یو د لاس نه بیلچه او چاړه و نه چلیدل او د بل د لاس نه چاړه وچلیده او هغه ئې قتل کړو، نو دا قتل عمد دې که خطاء؟ او د دې جرم سزا څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: فضل احد سکنه سید آباد مردان .... ۱۷ جولائی ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** که دا قاتل مدافعت کونکې وو نو د هغه مقتول وینه ضائع ده، نه په دې کې دیت واجب دې او نه قصاص (هندیة: ۶: ۷) (۲) او که د دې مقتول د دوباره وار کولو اراده نه وه نو د هغه په قاتل باندې قصاص واجب دې او په هر حال کې دا قتل قتل عمد دې (هندیة: ۶: ۷)(۳) فلیراجع. وهوالموفق

---

۱) قال العلامةالقرطبی رحمه الله :وإن الولیّ فرض علیه الوقوف عند قاتل ولیّه وترک التعدّی علی غیره کما کانت العرب تتعدی فتقتل غیرالقاتل وهو معنی قوله علیه السلام إن من أعتی الناس علی الله یوم القیامة ثلاثة رجل قتل غیر قاتله الخ۔
(الجامع لأحکام القرآن ۲/۲۴۰)

۲) وفی الهندیة :ومن شهر علی المسلمین سیفًا وجب قتله ولاشیئَ بقتله وکذلک إذا شهر علی رجل سلاحًا فقتله أوقتله غیره دفعًا عنه فلا یجب بقتله شیئ۔
(فتاوی هندیة ۶/ ۷،الباب الثانی فیمن یقتل قصاصًا)

۳) وفی الهندیة :ومن شهر علی رجل سلاحا فضربه وانصرف ثم إن المضروب ضرب الضارب ضربة وقتله فعلی القاتل القصاص وهذ! إذا ضربه الأوّل وکف عن الضرب علی وجه لایرید ضربه ثانیا کذا فی الکافی۔
(فتاوی هندیة ۶/۷،الباب الثانی فیمن یقتل قصاصا)

## د زنا په حالت کې مور او خور قتلول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې کور ته داخل شو او هغه د مور یا خور سره پردې سړې په غیر حالت کې ولیدو نو که هغه دا سړې یا خور، مور هم دې وخت کې قتل کړل نو آیا په آخرت کې به پرې مواخذه وی یا نه؟ **بینواتوجروا**

**الجواب:** دا قتل غیر شرعی قتل دې، په دې به مواخذه وی (۱) **وهوالموفق**

۱: **زه قصاص نه اخلم او معافی هم نه ئم کولې په شان الفاظو کې د قصاص ساقط کیدل**

۲: **د یو سړی په بدل کې د ډیرو کسانو نه او غیر شرعی طریقې سره قصاص اخستل**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د مقتول وارثین وائی مونږ قصاص هم نه اخلو او معافی هم نه کوو. او وائی چې د قرآن او سنت په رڼا کې فیصله کوو خو د شرعی فیصلې حکم په فدیه کې څه دې؟

د قاتل دپاره په ډز کولو سره د قتلولو فیصله، په اوبو کې د ډوبولو فیصله، په لرګی باندې د وهلو فیصله او په مرئ کې د رسئ اچولو سره قتلولو فیصله څنګه ده؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: دهکو باباتحت بهائی...... ۱۰ محرم الحرام ۱۴۰۶ھ

**الجواب:** د قاتل په قتل عمد سره سزا قصاص دې که دا قتل یو سړې وی یا

---

۱) قال العلامة الحصكفى رحمه الله: وفى المجتبى الأصل أن كل شخص رأى مسلما يزنى يحل له أن يقتله وإنما يمتنع خوفا من أن لا يصدق أنه زنى۔

وقال العلامة الشامى رحمه الله: وحاصله أنه يحل ديانة لاقضاء فلا يصدقه القاضى إلا ببينة۔

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳/۱۹۷باب التعزير، مطلب يكون التعزير بالقتل)

ډیر کسان وی (شامی)(۱) وغیره(۲) چې کله ولی دا ووائی چې زه قصاص نه اخلم نو قصاص ساقط شو. (۳) او خون بها د طرفین په مرضئ سره ثابتیږی او د دې مصالحت په صورت کې د هغه دپاره خاص مقدار نشته (۴) ۴: بهر حال د قاتل متعلق قصاص او خون بهـ نه علاوه دا نورې فیصلې غیر اسلامی فیصلې دی. (۵) لحدیث لاقود الا بالسیف (ابن ماجة)(۶) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الحصكفى رحمه الله :ويقتل جمع بمفرد إن جرح كل واحد جرحًا مهلكًا...ويقتل فرد بجمع اكتفاء به للباقين.
(الدرالمختار ۳۹۵،۵/۳۹۴ باب القود فی ما دون النفس)

۲) فى الهندية :القصاص واجب بقتل كل محقون الدم على التابيد إذا قتل عمداً ...ولو قتل واحد جماعة محضر أولياء المقتولين قتل بجماعتهم ولا شيئى لهم غير ذلک وإذا قتل جماعة واحداً عمدا تقتل الجماعة بالواحد-(فتاوى هندية ۶/۴،۵،الباب الثانى فيمن يقتل قصاصًا)

۳) فى الولوالجية :عفا أحدا لورثة تحوّل نصيب البقية مالاً،لأن الواجب قصاص واحد فإذاعفا أحدا لورثة تعذر على الباقى استيفاء البعض.
(فتاوى الولوالجية ۵/۲۹۴ كتاب الديات)

۴) وقال العلامة ابن عابدين :وإذا وجب لرجل على رجل قصاص فى نفس أوفيما دونه فصالحه على مال جازقليلا كان أو كثيراً.
(ردالمحتار ۵/۳۸۲ فصل فيما يوجب القود وما لا يوجبه)

۵) وقال العلامة ابن نجيم :وإنما يقتص بالسيف----لنا ما رواه سفيان من قوله عليه الصلاة والسلام :لا قود إلّا بالسيف وهو نص على نفى استيفاء القود بغيرالسيف...و المراد بالسيف السلاح هكذا فهمت الصحابة رضى الله عنهم-
(البحر الرائق ۸/۲۹۷ باب ما يوجب القصاص وما لايوجبه)

۶) (سنن ابن ماجه ۱۹۶ باب لا قود إلّا بالسيف)

## د قتل عمد په صورت کې بدل صلح په قاتل باندې واجب دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړی پلار چا مړ کړو، اوس هغه صلح کول غواړی نو آیا وارثان ئې دیت ادا کولې شی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد شاه بنوی متعلم حقانیه اکوړه خټک... ۱۱ اکتوبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** د مصالحت په صورت کې بدل صلح صرف په قاتل باندې واجب ده او نور رشته دار ورسره کومك کولې شی. هندیة (۶: ۲۵) (۱) وهوالموفق

## قاتلینو له خپله د قتلولو او هغوی ته د روپو ورکولو والا حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو خای کې نامعلوم قتل وشو. په څلورمه ورځ باندې د قاتلانو تره راغلو او وې ویل چې دا قتل مونږ کړې دې بیا مونږ جرګه یعنی دوه زره قبائل راجمع کړل درې واړو قاتلانو د هغوی مخکښ د جرم اقرار وکړو او ویې ویل چې فلانی سړی مونږ ته د دې قتل په بدل کې یو لاکهه روپئ راکړې وې. د بیان په وخت هم هغه سړې او د هغه ورور موجود وو. مونږ د خلقو مخکښ درې واړه په ډزو باندې قتل کړل. مهربانی وکړئ د اسلامی قانون موافق د هغه دوه کسانو سزا څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: عبدالقادر دا کخانه بل ټنګ ضلع کوهاټ... ۱۵ جولائی ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** دا فیصله په قومی رواج باندې شوې ده، په اسلامی اصولو باندې

---

(۱) وفی الهندیة :وکل عمد سقط القصاص فیه بشبهة فالدیة فی مال القاتل وکل إرش وجب بالصلح فهو فی مال القاتل (فتاوی هندیة ۶/۲۴،الباب الثامن فی الدیات)

وقال العلامه الحصکفی :واعلم أنه لاتعقل عاقلة جنایة عبد ولاعمد ولامالزم بصلح أی عن دم عمداً أوخطأ اه،فإنه علی القاتل حالا إلّا إذا اجل.
(الدرالمختار ۵/۴۵۵ کتاب المعاقل)

بناء نه ده. لعدم تحقق الدعوی عند الحاكم وهو الشرط كما فی رد المحتار والهندية. هم دغه شان په شرط د صدق دا قاتلين د رقم ورکونکو قاتلينو د طرف نه مکرهين نه وو.

**باقي جواب د ما قبل** : واضحه دې وی چې فقهاء کرامو، متکلمينو او د حديث مبارك د تصريح مطابق ﴿من مات ولم يعرف امام زمانه فقد مات ميتة الجاهلية﴾(١) په اهل اسلام باندې امام او بادشاه مقرر کول واجب دی. (٢) په کوم وطن کې چې مسلمان بادشاه نه وی هلته ډير مشکلات راځی مثلاً د قتل عمد په صورت کې قصاص اخستل حکم شرعی دې خو د قصاص اخستلو دپاره دعوی شرط ده. كما فی ردالمحتار ٥٥٠/٦ قبيل باب القود فيما دون النفس: السابعة لابد فی القصاص من الدعوی بخلاف الحد سوی حد القذف(٣) پس بهر حال دا فيصله مسطوره يوه قومی فيصله ده شرعی فيصله نه ده. هم دغه شان د دې قاتلانو په څه روپو باندې د قسم خوړلو الزام ناقابل سماعت دې لفسقهم او نه د قتل يا تعزير سبب دې لعدم ثبوت هذا

---

١) قال العلامة علی بن سلطان رحمه الله: (عن عبدالله بن عمر رضی الله عنه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول: من مات وليس فی عنقه بيعة مات ميتة جاهلية (رواه مسلم) وهو معنی ما اشتهر علی الألسنة وذكره السعد فی شرح العقائد من حديث من مات ولم يعرف إمام زمانه مات ميتة جاهلية.

(مرقاة المفاتيح ٧/٢٠٦ كتاب الإمارة والقضاء)

٢) وفی شرح العقائد: ثم الإجماع علی أن نصب الإمام واجب.....والمذهب أنه يجب علی الخلق سمعاً لقوله عليه الصلاة والسلام: من مات ولم يعرف إمام زمانه فقد مات ميتة الجاهليه ...والمسلمون لابدّلهم من يقوم بتنفيذ احكامهم وإقامة حدودهم.

(شرح العقائد ١١٠،١٠٩)

٣) (الدر المختار علی هامش ردّ المحتار ٥/٣٩٠ قبيل باب القود فيما دون النفس)

الالزام بالثبوت الشرعي (١) وبالجملة القتل صدر من القاتلين طوعا لا كرها (فافهم) وهوالموفق.

**د شهید حکمی د قاتلانو معلومیدل او د فقهاء کرامو د عباراتو مطلب**

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې څو معلوم کسانو مثلاً زید، عمر، بکر او خالد څلورو وارو ولید قتل کړو، په دې څلورو وارو سرو کې دا معلومه نه ده چې هغه د چا په ټوپك يا چاړۀ سره قتل شوې دې يا که صرف يو دز ولګيدو او مړ شو. تعين د قاتل کوم چې فقهاء ليکي، اوس په دې صورت خاصه کې تعين موجود دې يا نه او وليد شهيد شوې دې يا نه؟ دويم صورت دا دې چې يو غير معلوم التعداد او غير معلوم الاسامى كسانو وليد قتل کړو نو مقتول وليد شهيد شوې دې يا نه؟ د لاندې عبارتونو څۀ مطلب دې: إلا أن يعلم أنه قتل بحديدة ظلما أى ويعلم قاتله عينا فتح القدير قيل هذا إذا علم قاتله عينا، عناية، أقول كذا فى النهاية وفى شرح الكافى وتاج شريعة والإتقانى، فتح القدير ٤٧٨ مطبع مصر، او صاحب بنايه د دې عبارت مذكوره شرح فرمائيلو سره داسې ليکي: (وهذا فيما اذا علم قاتله الخ بتغير) بناية جزثانى من الجلد الاول ١٤٢.

المستفتى: مولوى محمد يوسف وانده لكى مروت ضلع بنون

**الجواب:** په دې دواړو صورتونو کې مقتول شهيد حکمی دې ځکه چې دومره مقدار متعين دې چې دا سړې ظلما قتل شوې دې او د هغه په قاتلينو باندې قصاص واجب دې. (٢) اګر چې په هغوى باندې اثبات نه دې شوې. يدل عليه ما فى البحر وبهذا يعلم أن من قتله اللصوص فى بيته ولم يعلم له

---

١) وقال المرغيناني: ومنها الشهادة ببقية الحدود والقصاص تقبل فيها شهادة رجلين...وما سوى ذلك من الحقوق تقبل فيها شهادة رجلين أورجل وامراتين سواء كان الحق مالا أوغير مال.(الهداية ٣/١٥٤ كتاب الشهادة)

٢) قال العلامة المرغيناني: فالعمد ما تعمد ضربه بسلاح أوما أجرى مجرى السلاح..... وموجب ذلك المائم والقود.(الهداية ٤/٥٥٩ كتاب الجنايات)

قاتل معين لعدم وجودهم فإنه لا قسامة ولا دية على أحد لانهما لا يجبان إلا إذا لم يعلم القاتل وهنا قد علم أن قاتله اللصوص وان لم يثبت عليهم لفرارهم فليحفظ هذا فإن الناس عنه غافلون ٢/٢٠٠ـ(١) وهوالموفق

## په حدودو او قصاص کې د فاحشې زنانه په ګواهۍ باندې فیصله کول د قواعد اسلامیه نه خلاف دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د قتل په یو کیس کې عینی شاهد صرف یوه فاحشه زنانه ده. د قاضی د دې فاحشې زنانه په شاهدئ باندې ملزم ته دمرګ سزا اوروِل څه حکم لري، او آیا دا سزا ورکونکی د الله پاک په نزد په دنیا او آخرت کې بری الذمة کیدې شی؟ **بینوا توجروا**

المستفتی: اسماعیل شجاع آبادی، عزیز الرحمن جالندهری
مجلس تحفظ ختم نبوت ملتان... ١٥ شعبان ١٤٠٢هـ

**الجواب:** په حدود او قصاص کې چې هرکله د عادلو ښځو شهادت نامنظور او کالعدم دې نو د یوې فاحشې زنانه شهادت به څنګه منظور او مؤثر وی. قال صاحب الهداية ٣: ١٥٣ ولا يقبل فيها شهادة النساء لما ذكرنا(٢) وبمعناه في جميع كتب الفقه(٣) بهر حال د داسې مشتبه شهادت د وجې نه د مرګ سزا ورکونکې حاکم (یعنی د قصاص حکم ورکونکې) د قواعد اسلامیه نه منحرف دې. وهوالموفق

## د اُجرتی قاتل د وارثانو د اُجرت په بدله کې په خمکه باندې دعوی وغیره صحیح نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې بل سړی

---

١) (البحر الرائق ٢/٢٠٠ كتاب الجنائز، باب الصلاة فى الكعبة)
٢) (هداية ٣/١٥٤ كتاب الشهادة)
٣) وفى الهندية: ومنها الشهادة ببقية الحدود والقصاص تقبل فيها شهادة رجلين ولا تقبل فى هذين القسمين شهادة النساء.
(فتاوى عالمگيرية ٣/٤٥١ كتاب الشهادات)

په دې وينا قتل کړی چې زما دشمن قتل کړه نو دا سړې هغه دشمن قتل کړی دې نه پس دا مقتول له والا قاتل ته لاړ شی او د هغه په طرفداریٔ کې هر وخت پیش کیږی خو د څه اختلاف د وجې نه مقتول له والا قاتل قتل کړی په دې صورت کې د مقتول ثانی وارثان په یوه خاص څمکه باندې دا دعوی وکړی چې دا هغه مقتول له قاتل (مقتول ثانی) ته د قتل په أجرت (مزدوری) کې ورکړې وه آیا د هغوی دا دعوی صحیح ده یا نه، که صحیح وی نو د دې د ثبوت او اثبات دپاره د کومو څیزونو او دلائلو ضرورت دې **بینواتوجروا**

**المستفتی: مولانا مغفور الله مدرس دار العلوم حقانیه ... ۳۰ جولائی ۱۹۹۰ء**

**الجواب:** چونکې دا قتل په أجرت (مزدوری) باندې دې او أجرت (مزدوری) علی القتل ناجائز دې، لهذا نه دعوی صحیح ده او ثبوت او اثبات محتاج دې **کما فی شرح التنویر: ولا لاجل المعاصی (هامش ردالمحتار)** (١)

او دا استیجار د قصاص د وجې نه وی نو بیا هم دا حکم دې.

**لان القصاص لابد له من الدعوی کما فی شرح التنویر علی هامش رد المحتار.** (٢) **وهوالموفق**

...

---

١) (الدر المختار ٥/٣٨ کتاب الإجارة، باب الإجارة الفاسدة)

٢) وفی الدر المختار: السابعة لا بد فی القصاص من الدعوی بخلاف الحد.
(الدر المختار ٥/٣٩٠ کتاب الجنایات، قبیل باب القود فیما دون النفس)

# كتاب الدية والكفارة

## د پاکستانۍ روپۍ په حساب سره د دیت مقدار

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په قتل خطاء کې د دیت مقدار، د موجوده روپیو په حساب سره څومره جوړیږي؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: محمد شاه بنوی، متعلم حقانیه اکوړه خټك... ۱۷ اکتوبر ۱۹۸۴ء

**الجواب:** په قتل خطاء کې دیت څلویښت روپۍ فی توله په حساب سره یو لاکھ پنځه زره شل روپۍ جوړیږي. (۱) **والله اعلم بالصواب**

## د زنانه دیت، د سړي په مقابله کې د نیم کیدو نه د منکر حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې دلته زید د ښځې د دیت د سړي په مقابله کې د نصف کیدو د اجماعی مسئلې انکار کولو سره د مساوات دعوی کوی او په خپل موقف باندې دلائل پیش کوی، صحیح احادیث ته ضعیف وائی، د اجماع صحابه او اجماع امت منکر دې، د ائمه اسلام موقف ته غلط وائی، او هغوی ته زندیق وائی. د هغه په باره کې شرعی حکم څه دې؟ **بینوا توجروا**

المستفتي: غلام رسول، نئی انارکلی، لاهور ۷ نومبر ۱۹۸۶ء

**الجواب:** د تفصیل نه همت لرم او نه فرصت، اجمالاً عرض دا دې چې یو شاذ موقف خپلولو سره د مومنانو لار پریښودل مردودیت او الحاد دې. د ائمه اربعه د طرف نه متعین شوې معنی پریښودلو سره د بلې معنی اختیارولو

---

(۱) د دیت مقدار د چاندۍ (سپینو زرو) په حساب سره لس زره درهم دی او ددې نه ۲۶۲۵ تولې جوړیږي، نن سبا ۱۲۰۰ روپۍ د یوې تولې په حساب سره (۲۶۲۵×۱۲۰۰=۳۱۵۰۰۰۰) یو دیرش لاکه او پنځوس زره روپۍ جوړیږي.

حق چاته هم نه دي حاصل (١) بله دا چې په مردم شمارۍ کې مذکر کم، مؤنث زیات دی نو په بازاری اصول سره به د ښځو قیمت کم وی. بهرحال دا خلق ښځې محبوبات جوړولو سره قیمت لګوی که دې خلقو د ښځو حیثیت ته نظر کولې او یا ئې د هغوی د ذمه داریانو د مذکر د ذمه دارۍ سره موازنه کولې نو په دې تجدد کې به نه پریوتلې. وهوالموفق

## قاتله مور د خوی په قتل کې د دیت نه مستثنی نه ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د څلویښتو ورځو ماشوم د خپلې مور نه لاندې کیدو سره د خوب په حالت کې مړ شو آیا په دې صورت کې دا مور د قصاص، دیت وغیره نه مستثنی ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی:** سیدولی شاه، متعلم جامعه فاروقیه کراچی... ٢٩ ذی الحجة ١٤٠٤ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې د مور په عاقله باندې دیت واجب دې، مور د دې حکم نه مستثنی نه ده. که مور مستثنی وې نو فقهاء کرامو به ضرور د دې صراحت کړې وې (٢) لکه چې د قصاص استثناء ئې کړې ده. (٣) خو دیت

---

(١) قال العلامة ظفر أحمد عثمانی: وحاصل ما استفاد من حکم الإلحاد والتأویل الباطل ماذکره ختام المحدثین شیخ مشائخنا الشاه عبدالعزیز بن الشاه ولی الله الدهلوی قدّس سرّہ من ان التاویل الباطل المعبر عنه فی القرآن بالإلحاد هو ماخالف النصوص وما علیه الامة وهو قسمان الأول: ماخالف النصوص القطعیة المتواترة أو الإجماع القطعی فهو کفر بلاریب والثانی: ماخالف النصوص الظنیة القریبة بالیقین أو الإجماع العرفی فهو ضلال وفسق دون الکفر.

(أحکام القرآن ٤/١٤٤، بحث حکم الإلحاد والتأویل الباطل)

(٢) وفی مجمع الانهر: وأما ما أجری مجری الخطاء کنائم انقلب علی آخر فقتله وموجبها الکفارة والدیة علی العاقلة. (مجمع الانهر فی شرح ملتقی الأبحر ٤/٣١٢، کتاب الجنایات)

(٣) وفی الهندیة: ولا یقتل الرجل بابنه.

(فتاوی عالمگیریة ٦/٤، کتاب الجنایات، الباب الثانی)

يو وارث هم نه اخلي، او كفاره يعنى دوه مياشتې پرلپسې روژې نيولو كې مخلص نه دي وما في موانع الدر المختار من سقوط الكفارة فغلط من النساخ(۱) وهوواضح وهوالموفق

## په عمداً قتل كونكى باندې د كفارې حكم

**سوال:** څه فرمائى علماء دين د دې مسئلې په باره كې چې د زيد او بكر ترمينځ شخړه پيښه شوه او زيد مجرم دې، بكر چې هغه ووهلو نو د زيد د بدلې اخستلو دپاره د هغه په عدم موجودګئ كې په قوميت باندې څو كسانو رچه په هغوى كې د زيد وارثان نه وو، په بكر حمله وكړه او بكر لره د زخمى كولو نه پس بكر حمله كونكى هم زخمى كړل چې په هغوى كې يو وفات هم شو. بكر حمله د قتل په اراده نه وه كړې بلكه د ځان د بچ كولو دپاره ئې كړې وه. نو قاتل (بكر) د علاقې د رواج مطابق ديت ادا كړو. او زيد (د مقتول) وارثانو د قاتل (بكر) نه راضى كيدو سره هغه معاف كړو. نو اوس په دې قاتل باندې متواتر دوه مياشتې روژې شته يا نه او قاتل ته به په آخرت كې عذاب وى يا نه او د قاتل څه حكم دې؟ **بينواتوجروا**

**المستفتى: حافظ عبدالرحمٰن، لكى مروت ... ۵ جون ۱۹۷۱ء**

**الجواب:** دا قتل عمد دې په دې كې كفاره واجب نه ده (۲) او كه زيد د شريعت په نزد مجرم او مباح الدم وى نو د هغه قتل او د هغه د مدافعينو قتل موجب قصاص وديت نه دي (۳) بهر حال د جرم د نوعيت او كيفيت باندې د

---

۱) قال العلامة الحصكفى :والقتل اللموجب للقود أوالكفارة وان سقطا بحرمة الأبوةعلى مامر. (الدرالمختار ۵ /۵۴۱ كتاب الفرائض، موانع الارث)

۲) وفى الهندية : اما العمد فما تعمد ضربه بالسلاح ...وموجب ذلك المائم والقود الا ان يعفو الأولياء اويصالحوا ولا كفارة فيه عندنا كذا فى الهداية.

(فتاوى هندية ۲/۶ كتاب الجنايات ،الباب الأول فى تعريف الجناية)

۳) قال العلامةالزيلعى رحمه الله :ومن شهر ...[بقيه حاشيه برصفحه آئنده

خبریدلو نه مخکښ جزوي حکم خلاف قاعده امر دې والله اعلم بالصواب

## په ډرائیور باندې د دیت د معافۍ نه پس کفاره ورکول ضروري دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی ګاډی چلولو. د سړک ترمینځه ناڅاپه یو ماشوم راښکاره شو او ګاډی سره په جنګیدلو باندې زخمي کیدو سره مړ شو، د ماشوم مور او پلار ډرائیور معاف کړو او د دیت اخستلو نه ئې انکار وکړو. نو ایا اوس په ډرائیور باندې بل څه لازم دی یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: حافظ احتشام الحق، مدرس جامعه اشرفیه پیښور ۲۷ جمادی الاول ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** په دې ډرائیور باندې کفاره ورکول مثلاً دوه میاشتې متواتر روژې نیول ضروري دي (۱) والله اعلم

## د هوائي فائرنګ په وجه په قاتل باندې کفاره او دیت لازم دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو سړي نه د

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] على المسلمين سيفا... وجب قتله ولا شيء بقتله لقوله عليه الصلوة و السلام ومن شهر على المسلمين سيفا فقد أبطل دمه ولان دفع الضرر واجب فوجب عليهم قتله إذا لم يمكن دفعه إلابه ولا يجب على القاتل شيء لأنه صار باغيا بذلك.

(تبيين الحقائق ۶/۱۰ كتاب الجنايات، باب مايوجب القود ومالا يوجبه)

(۱) قال الله تبارك وتعالى: وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ إِلَّا أَن يَصَّدَّقُوا فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ اللَّهِ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا.
(سورة النساء آیت ۹۲)

وقال العلامة الحصكفي رحمه الله: وموجبه أي موجب هذا النوع من الفعل وهو الخطأ وما جرى مجراه الكفارة والدية على العاقلة.

(الدر المختار ۵/۳۷۷ كتاب الجنايات)

واده دوران کې د کلاشن کوپ په هوائی فائرنګ سره دوه نابالغ ماشومان هلاك شو. په دې کې د دیت او کفارې څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا فتح الرحمان فوجی شوګر ملز.... کهوسکی.... ۱ مئی ۱۹۸۸ء

**الجواب:** په ظاهره کې دا قتل خطاء دې په دې کې کفاره یعنی دوه میاشتې روژې نیول فرض دی او که د مقتول وارثان د دیت مطالبه وکړی نو باقاعده د هر مقتول دیت، کوم چې د شپیتهٔ روپۍ فی توله حساب سره (۱۵۷۵۰۰) روپۍ دې، ادا کولې شی. (۱) وهوالموفق

## په واده کې د دواړو طرفونو نه ډزو سره د نامعلوم قاتل نه د مقتول د دیت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې په مهاجر کیمپ کې یو قوم د بل قوم دپاره د ناوې راوړلو په موقع باندې حاضره شوه. د عرف او عادت مطابق دواړو طرفونو ته ډزې وشوې، هغه وخت څلور سړی په غلطۍ سره زخمی شو، په هغې کې یو وفات شو. په دې کې د قوم اختلاف شو هر یو په بل باندې دعوی کول شروع کړل چې قتل ستا د طرف نه شوې دې او بل قوم د دوی برعکس خبره کوی. اولیاء مقتول او زخمی حضرات وائی چې قاتل مونږ ته معلوم نه شو خو دومره راته معلومه ده چې تکلیف ستاسو د طرف نه رارسیدلې دې. په دې صورت کې قصاص یا دیت د چا په ذمه دې؟ بینوا توجروا(جواب په عربۍ یا فارسۍ کې راکړی)

المستفتی: سحر ګل مهاجر... ۵ جولائی ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** درصورت مسئوله بر هیچ کس قصاص یا دیت واجب نیست البته مصالحت بر مال که به ذمه مدعی علیهم عائد شود ممنوع نیست،ونظیره مافی الهندیة ۸۵/۶: وإذا التقى قوم بالسيوف فاجلوا عن قتيل فهو على أهل

---

(۱) قال العلامة شيخي زاده: وأما خطأ وهوفى القصد...أو فى الفعل بأن يرمى غرضًا آدميًا ... وموجبهما الكفارة والدية على العاقلة.(مجمع الانهر ۴/۳۱۲، كتاب الجنايات)

المحلة إلا أن يدعي أولياءه على أولئك أو على رجل منهم بعينه فلم يكن على أهل المحلة ولا على أولئك شيئ حتى يقيموا البينة كذا في الكافي. (١) وقال الله تبارك وتعالى: وَالصُّلۡحُ خَيۡرٌ. (٢) والله أعلم بالصواب

## په کاڼي باندې ډز کیدو او د هغې په صورت کې د راغورځیدونکي کاڼي په وجه باندې د زخمي کیدونکو کسانو د ضمان مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د دوه کسانو د وادهٔ په موقع باندې د ډزو دوران کې یو نامعلوم سړي ګولۍ په کمر باندې ولګیده، د کاڼي نه یوه ټکړه جدا شوه او ګاډي کې ناستې زنانه پرې په سرونو باندې ولګیدې چې د هغې د وجې نه ئې په سرونو باندې سخت زخم راغلو او په هسپتال کې د علاج نه پس صحت مندې شوې اوس سوال دا دې چې د دې زنانو په زخمي کیدو او د علاج وغیره د اخراجاتو ذمه داری د شریعت په رڼا کې په چا باندې ده؟ بینواتوجروا

المستفتي: بهادر خان، صده کرم ایجنسی... ٢ ستمبر ١٩٨٥ء

**الجواب:** چونکې ډز کول بذات خود مباح دې خو د ناقابل احتراز فساد په وخت، نه د قابل احتراز فساد په وخت، پس په دې ډزو کونکو باندې باقاعده ضمان واجب دې (٣) وهوالموفق

---

١) (فتاوی هندیة ٦/٧٨، الباب الخامس عشر في القسامة)

٢) (سورة النساء آیت ١٢٨)

٣) و في شرح المجلة: المتسبب ماكان فعله مفضياً الى الحكم كالتلف مثلاً من غير تأثير وانما المؤثر هو العلة المتوسطة لكن تلك العلة قد لا يصح إضافة الحكم إليها فيضاف إلى السبب فعند ذلك ينظر: ان كان نحوالتلف حاصلاً عن فعل المتسبب بغير حق... يضمن ما تلف فيه وإن لم يتعمد، لأنه متعمد بنفس الفعل وان حاصلاً عن فعل مباح له في ذاته إلّا أنه تعمد بقصد إيجاد العلة الموثرة التي حصل منه التلف ولا تصلح لاضافة الحكم إليهافيضمن.

(شرح المجلة ١/٢٥٦ المادة ٩٣، المتسبب لايضمن إلّابالتعمد)

## د مور په بچو باندې د سپږو دوائی اچولو سره د هغوی په مرګ باندې د دیت حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د سپږو دوائی کور ته راوړه، ښځې د ماشومانو په سرونو باندې د سپږو وژلو په غرض سره استعمال کړې چې په هغې سره هغه ماشومان مړهٔ شو درې بچې ئې خپل وو او دوه ئې وریرونه وو، د ډاکټر صاحب د قول مطابق به هغوی په سرونو باندې لاس رابښکلې وی او بیا به ئې هغه په خوله کې وهلې وی چې په هغې سره د هغوی مړهٔ کیدل لازمی وو اوس آیا په دې ښځه باندې دیت شرعی یا کفاره وغیره واجب ده یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: عبدالحی حقانی، بام خیل صوابۍ.... ۱۳ ربیع الاول ۱۳۹۶هـ

**الجواب:** د هغوی د قتل متعلق به دا وویل شی چې دې ماشومانو د ناپوهۍ د وجې نه خپل ځان وژلې دې لهذا په دې مخصوصې زنانه باندې به دیت یا کفاره واجب نه وی کما فی رد المحتار ۵/ ۴۸۷ سقاه سماً حتی مات إن دفعه إلیه حتی أکله ولم یعلم به فمات لاقصاص ولادیة لکنه یحبس ویعزر، قلت التعزیر إنما یکون عند القصد ولا قصد ههنا، وقلت أیضا لایکون هذا القتل سببا وإلا لوجب فیه الدیة فافهم فلاوجه لإیجاب الکفارة أیضا.(۱) وهوالموفق

## د درمختار عبارت کې د والدین نه سقوط کفاره د کاتب غلطی ده

**سوال:** مایقول العلماء فی هذه المسئلة انه اذا مات الولد تحت امه فی النوم هل تجب الکفارة علی الام املا؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی نور دت، معلم دینیات بحرین (سوات)

**الجواب:** سره د تتبع دا جزئیه ملاؤ نه شوه لهذا د قواعدو په بنیاد جواب

---

۱) (الدر المختار ۵/ ۳۸۵ کتاب الجنایات، فصل فیما یوجب القود ومالا یوجبه)

ورکولې شي. د قواعدو تقاضه دا ده چې د مور حکم هم د نورو کسانو په شان دې يعنى په هغې باندې ديت واجب دې ځکه چې فقهاء کرامو د شبيه بالخطاء مثال ليکلې دې: کنائم انقلب على رجل فقتله او د دې نه ئې د مور یا پلار استثناء نه ده کړې (١) قلت: وما في الدرالمختار في كتاب الفرائض: والقتل الموجب للقود أو الكفارة وإن سقطا بحرمة الأبوة على ما مر أي في كتاب الجنايات،(ردالمحتار)(٢) فغلط من الكاتب لأن ما مرهوسقوط القتل دون الكفارة فلا يدل على سقوط الدية فافهم .ويويده ما في ردالمحتار ٣٧٩/٥: وإن سقطت ميتا بعلاج أوشرب دواء تتعمد به الاسقاط أما إذا ألقته ميتا ثم مات فعلى عاقلتها الدية في ثلث سنين إن كانت لها عاقلة وإلافقي مالها وعليها الكفارة ولا ترث عنه شيئا (٣) انتهى، وجه التائيد ان هذا القتل ليس بعمده ولاشبهه ولافرق بين الخطأوشبهه في الواجب .(٤) فقط

## په اولياء مقتول کې د يو په معافئ سره ساقط کيدو سره ديت واجبيږي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې مسمی کرم خېل اوښې شير قتل کړو، ملزم کرم ته د مرګ سزا واورولې شوه د دې نه پس په سپريم کورټ کې د نظر ثاني په وخت د مقتول مشر خوی او ښځې قاتل معاف کړو خو د مقتول مور قاتل نه معاف کوي لهذا تاسو ته درخواست دې چې د

---

١) وفي مجمع الأنهر: وأما ما أجرى مجرى الخطاء كنائم انقلب على آخر فقتله وموجبهما الكفارة والدية على العاقلة.(مجمع الانهر في شرح ملتقى الابحر ٣١٢/٤، كتاب الجنايات)

٢) (الدرالمختار ٥٤١/٥، كتاب الفرائض، موانع الإرث)

٣) (ردالمحتار ٣٠٥/٥، كتاب الحظر والإباحة، قبيل كتاب إحياء الموات)

٤) قال الدكتور وهبة الزحيلي رحمه الله: وكذلک عقوبات القتل شبه الخطاء عند الحنفية هي مثل عقوبات الخطاء(الكفارة والدية على العاقلة وحرمان القتل من الميراث والوصية. (الفقه الإسلامي وأدلته ٥٧٣٤/٧، المبحث الرابع: القتل الخطاء وعقوبته)

تولو نه افضل حق د کوم وارث وی؟ د مور، ښځې، لور یا خوی؟ یعنی په دوی کې څوك زیات حق لری؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم....... ۲ ربیع الثانی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د دې مقتول په دې څلورو واړو وارثانو کې که یو هم معافی وکړی نو د نورو وارثانو د قصاص حق ساقطیږی او د خون بها (دیت) حقدار به شی

لما فی الهندیة ۲۲/۶: إن صالح أحد الشركاء من نصيبه على عوض أو عفا سقط حق الباقين عن القصاص وكان لهم نصيبهم من الدية ولا يجب للعافى شيئ من المال (۱). وهوالموفق

## د ماشوم د مور نه لاندې کیدو سره دیت او کفاره لازم ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یوه ښځې سره وړه ماشومه اودۀ وه، د خوب نه په بیداریدلو باندې هغه ماشومه مړه بیا موندلې شوه. دا احتمال دې چې مور پرې وركول او دې دوران کې اودۀ شوې ده او د مور د سینې زورولو د وجې نه مړه شوې ده. په دې صورت کې کفاره د قتل خطاء شته یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولانا محمد سردار، مدرس مدرسه تل... ۶ مارچ ۱۹۸۴ء

**الجواب:** تولو فقهاء کرامو د قتل خطاء قائم مقام قتل ته د کفارې سبب

---

۱) (فتاوی عالمگیریة ۱۲/۶، الباب السادس فی الصلح والعفو)
وقال العلامة محمد كامل: سئلت عمن عفا من الشركاء عن القصاص هل يسقط بعفوه المذكور حق الباقين فى القصاص؟ فالجواب نعم، قال الكفوى نقلاً عن البداية ما نصه: وإذا عفا أحد الشركاء عن الدم...سقط حق الباقين من القصاص وكان لهم نصيبهم من الدية.
(فتاوی كاملية ۲۴۹، كتاب الجنايات)

ویلې دي او چا هم مور او پلار د دې نه نه دی مستثنی کړې (١) بخلاف القصاص (٢) بله دا چې فقهاء کرامو په مور باندې د اسقاط حمل د وجې نه کفاره لازمه کړې ده چې کله ماشوم ژوندې پيدا کيدلو سره مړ شی كما فی ردالمحتار ۵: ٣٧٩ (٣) قبيل احياء الموات، او په شرح التنوير کې په موانع ارث کې دا عبارت ( وان سقط بحرمة الابوة ) د کاتب غلطی ده بدليل قوله على ما مر فليراجع الى ردالمحتار ۵: ٦٧١ (٤) وهوالموفق

**د مور نه د ماشوم د لاندې کيدو شک او احتمال سره د ديت او کفارې مسئله**

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د يوې زنانه سره بوه واقعه پيښه شوې ده. هغه داسې چې د شپې د اودهٔ کيدو په وخت د هغې د څلور کالو ماشوم چې ژوندې او صحت مند وو خو چې سحر هغه راپاڅيده نو هغه ماشوم مړ شوې وو چې د هغه د پوزې نه وينه بهيدلې وه. لهذا داسې معلوميږی چې د مور د لاندې کولو د وجې نه دا ماشوم مړ شوې دې تاسو مونږ ته بيان کړئ چې په هغې باندې کفاره شته يا نه؟ او که وی نو څومره؟ بينواتوجروا

المستفتی : سيف الرحمٰن. لوئر ماډل سکول باټيړئ ... ١٦ دسمبر ١٩٧٢ء

---

١ ) وفی مجمع الأنهر :وأماما أجرى مجرى الخطاء كنائم انقلب على آخر فقتله وموجبهما الكفارة والدية على العاقلة-(مجمع الأنهر فی شرح ملتقى الأبحر ۴/٣١٢، كتاب الجنايات)

٢ ) وفی الهندية ولا يقتل الرجل بابنه-

(فتاوی هندية ٦/۴ كتاب الجنايات ،الباب الثانی)

٣ ) قال العلامة ابن عابدين :وأما إذا ألقته حيا ثم مات فعلى عاقلتها الدية فی ثلث سنين إن كانت لها عاقلة وإلا ففی مالها وعليها الكفارة-

(رد المحتار ۵/٣٠۵ كتاب الحظر والإباحة ،قبيل كتاب إحياء الموات)

۴ ) قال العلامة الحصكفی رحمه الله :والقتل الموجب للقود أو الكفارة وإن سقطا بحرمة الأبوة على ما مر-

(الدر المختار ۵/۵۴١ كتاب الفرائض ،موانع ارث)

**الجواب:** واضحه دې وی چې په صورت مسئوله کې یقینی طور معلومه نه ده چې دا ماشوم د مور نه لاندې کیدو د وجې نه قتل شوې دې لهذا په دې کې د کفارې یا دیت حکم ورکول مناسب نه دی لان الحکم لا یثبت بالشک والاحتمال(١) او که بالفرض ومنلې شی چې دا ماشوم د خپلې مور نه لاندې کیدو سره قتل شوې دې نو په دې کې به دیت او کفاره ورکول وی وفی الدر المختار: والرابع ماجری مجراه(مجری الخطاء)کنائم انقلب علی رجل فقتله وموجبه الکفارة والدیة علی العاقلة۔انتهی(٢) بحذف یسیر،قلت ولم یستثنوا عنه الوالدة فدل علی أنه لا یختلف الحکم فی الوالدة،نعم! استثنوا فی العمد(٣) لأن حکم الولاد کان مغائرا عن غیره، وقلت أیضا أن ماروی مافی بعض نسخ الدرالمختار فی الموانع :والقتل الموجب للقود أو الکفارة وان سقطا بحرمة الأبوة علی مامر(٤) فهوسبق قلم لأن المار هوسقوط القودفقط۔وهوالموفق

## په ټکر کې د مړ کیدونکی موټر سائیکل باندې سور د دیت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یو موټر سائیکل او ټرک ترمینځه ټکر وشی او قصور هم د موټر سائیکل والاد طرف نه وی، موټر سائیکل والامړ شو اوس به تاوان خالص په ډرائیور باندې وی یا که سورلئ به هم په دې تاوان کې شریکولې شی، ورسره دا چې که ټرک ډک وی

---

١) وفی شرح المجلة :المشروط بشرط إذا وقع الشک فی وجود شرطه لایثبت لأن ما لیس ثابتا بیقین لا یثبت بالشک کما أن الثابت بیقین لا یزول بالشک۔
(شرح المجلة١/١٨، المادة ٤،الیقین لایزول بالشک)
٢) (الدرالمختار ٥/٣٧٧ کتاب الجنایات)
٣) وفی الهندیة : ولایقتل الرجل بابنه...و کذا الوالدة والجدة۔
(فتاوی هندیة ٦/٤ کتاب الجنایات،الباب الثانی فیمن یقتل قصاصا ومن لا یقتل)
٤) (الدرالمختار ٥/٥٤١ کتاب الفرائض ،موانع الإرث)

نو څه مسئله ده او که خالي وي نو څه مسئله ده؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي: وزير محمد صاحب.... ١ فروری ١٩٨٧ء**

**الجواب:** دا تړک صرف د ډرائيور دپاره د قتل آله ده، د سامان او سورلو په دې کې څه خاص مداخلت نشته، پس ديت او کفاره به صرف د ډرائيور د طرف نه ادا کولې شي (١) **والله اعلم بالصواب**

## د مور او پلار ترمينځه د اوده شوي ماشوم په مرګ باندې د کفارې او ديت حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ښځه او خاوند دواړه په يو کټ کې اوده وي او ورسره ماشوم بچې هم وي چې کله هغه بيدار شي نو هغه مړ شوې وي او د لاندې ګيرېدلو د وجې نه مړ شوې وي نو په دې صورت کې به د کفارې او ديت څه حکم وي؟ او که غالب ګمان په يو وي نو بيا به څۀ حکم وي؟ **بينواتوجروا**

**المستفتي: نامعلوم متعلم ۴ محرم الحرام ١۴٠١ھ**

**الجواب:** داقتل چې د کوم کس يا ډلې نه شوې دې نو په هغوی باندې ديت او کفاره لازمه ده(٢) **بدليل عدم استثناء الوالدين من هذا الموجب بخلاف القصاص (٣) وأما في شرح التنوير في مبحث موانع الإرث من سقوط القصاص والكفارة عنهما(۴)**

---

١) في الهندية :ولو اصطدمت السفينتان إن كان بفعل الراكب والملاح ضمن ولا ضمان في الأنفس-(فتاوى هندية ٦/٨٨، كتاب الجنايات،الباب السابع عشر في المتفرقات)

٢) في الهندية :وأما ماجرى مجرى الخطاء فهو مثل النائم ينقلب على رجل فيقتله... وحكمه حكم الخطاء من سقوط القصاص ووجوب الدية والكفارة-
(فتاوى عالمگيرية ٦/٣كتاب الجنايات، الباب الأول)

٣) قال العلامة الحصكفي :ويقتل الفرع بأصله وإن علا، لا بعكسه لقوله ﷺ لا يقاد الوالد بولده-(رد المحتار ٥/٣٨٠ كتاب الجنايات)

٤) قال العلامة الحصكفي :والقتل الموجب للقود أوالكفارة وإن سقطا بحرمة الأبوة على مامر- (الدرالمختار ٥/٥٤١ كتاب الفرائض ،موانع الإرث)

فزلة من قلم الكاتب بدليل العبارة الآتية بعدها۔ وهو الموفق

## د اولیاؤ په دیت نه اخستلو سره کفاره نه ساقطیږي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه زنانه په خوب کې خپل بچې د خپلې ډډې د لاندې راوستلو سره مړ کړی نو هغه به ګنهګاره وی یا نه؟ که ګنهګاره وی نو د دې څه کفاره ده او آیا د دیت په نه اخستلو سره کفاره ساقطیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا رشید احمد، وړوکې لاهور ... ۱۰ جنوری ۱۹۸۹ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې دیت او کفاره واجب ده (۱) خو چې اولیاء دیت نه اخلی نو هغوی د دې مجاز دی او کفاره د الله پاك حق دې کومه چې ناقابل عفو ده (۲) أما وجوب الدية فلعدم استثناء الفقهاء إياها بخلاف القصاص (۳) وأما الكفارة فواضحة وأما ما فى شرح التنوير: والقتل الموجب للقود أو الكفارة وإن سقطا بحرمة الأبوة على ما مر ٦٧١/٥ (۴) فزلة قلم لأن المارّ هو سقوط الدية۔ وهو الموفق

---

۱) وفى مجمع الأنهر: وأما ما أجرى مجرى الخطاء كنائم انقلب على آخر فقتله و موجبهما الكفارة والدية على العاقلة۔
(مجمع الأنهر فى شرح ملتقى الأبحر ۴/۳۱۲ كتاب الجنايات)

۲) وقال العلامة القرطبى: قوله تعالى (إِلَّا أَن يَصَّدَّقُوا) يعنى إلّا أن يبرى الأولياء ورثة المقتول (القاتلين) مما أوجب الله لهم من الدية عليهم... وأما الكفارة التى هى لله تعالى فلا تسقط بإبرائهم... وإنما تسقط الدية التى هى حق لهم۔
(تفسير القرطبى ۵/۳۰۷ سورة النساء آيت ۹۲)

۳) وفى الهندية: ولا يقتل الرجل بابنه۔
(فتاوى هندية ۶/۴ كتاب الجنايات، الباب الثانى)

۴) (الدر المختار ۵/۵۴۱، كتاب الفرائض، موانع الإرث)

## په کوتکونو (لښتو) سره د وهلی شوی مقتول د دیت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کښې چې یو سړې نورو سړو په کوتکو سره وهلو باندې سخت زخمی کړې او په ګردو باندې ئې په کانړو وهلې وو چې د هغې د وجې نه ئې متیازې هم بندې شوې او په دې باندې څوك مضبوط ګواه نه وو د هغه خپل وصیت دا دې چې دا واردات په دغه څیزونو سره شوې دې، دا سړې د وهلو خوړلو نه پس دوه میاشتې ژوندې وو. دا دوه میاشتې ئې په دې بیمارئ کښې تیرې کړې، هیڅ کاروبار ئې اونکړو د هغه سر زخمی شو د کوم طرف نه چې په سر لګیدلې وو هغه طرف نه ئې وینه جاری وه. د مرګه پورې د هغه سر یو لویشت زخمی وو، په دې خبره باندې دهغه د کور نه علاوه نور څوك هم ګواه نشته. لهذا د مسئلې جواب راکولو سره د شکریه موقع راکړئ. بینواتوجروا

المستفتی: ناظم شیر علی، چمن کوئټه .... ۲۶ مئ ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکې په زخمونو کښې نتیجې ته کتلې شی نه حال ته. کما فی الهدایة ۵۹۷/۴: **الجراحات یعتبر فیها مآلها لا حالها لأن حکمها فی الحال غیر معلوم فلعلها تسری إلی النفس فیظهر أنه قتل وإنما یستقر الأمر بالبرء**(۱) **فافهم**. پس د دې اصل په بنیاد باندې به دا قتل، قتل شبه عمد وی په دې کښې به دیت واجب وی (۲) خو د شهادت د عدم اقامت د وجې نه مدعی علیه دپاره باقاعده قسم خوړل ضروری دی کنه نو د دیت ورکولو نه به ئې خلاصې نه وی. **لحدیث البینة علی المدعی والیمین علی من أنکر**.(۳) **وهوالموفق**

---

۱) (الهدایة ۴/۵۹۷، کتاب الجنایات، فصل الشجاج)

۲) وفی مجمع الأنهر: وأما شبه عمد وهو ضربه أی القتل قصدا بغیر ما ذکر فی العمد مما لا یفرق عند الإمام خلافاً لغیره لأن شبه العمد عند الغیر ضرب القاتل بآلة لا یقتل مثلها غالباً کالعصا والحجر الصغیر والسوط والید وموجبه الإثم والکفارة والدیة.

(مجمع الأنهر ۴/۳۱۰ کتاب الجنایات)

۳) (جامع الترمذی ۱/۳۸۱، أبواب الأحکام، باب ماجاء فی ان البینة علی المدعی الخ)

## په ګاډي باندې د هلك په وهلو سره د ديت او كفارې حكم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې يو هلك د موټر مخې لره راغلو، ډرائيور ئې د بچ کولو کوشش ډير وکړو خو هغه پرې ولګيدو او مړ شو اوس په ډرائيور باندې کفاره شته يا نه؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: مولوی محمد شريف، ټل، کوهاټ ... ۱۲ جولائی ۱۹۷۹ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې ديت او کفاره واجب ده (شامی) (۱) وهوالموفق

## قاتلين لره قتلولو کې د غير قاتل په قتلولو باندې د قصاص او ديت مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې علی خان، شمل خان او حيا خان درې واړه ورونه وو؟ بيا په هغوی کې شمل خان په نهر کې مړ بيا موندلې شو او په هغه باندې د زخم هيڅ اثر هم نه وو نو د هغه وارثانو په چا باندې هم دعوی ونکړه. بيا د خلقو په شيطانی باندې د هغه ورونو ميراجان او انور حبيب قتل کړو او هغوی سره ئې يو غير سړې هم قتل کړو. په دې ګمان چې دا د ميرا جان ورور دې خو د قتلولو نه پس معلومه شوه چې دا د هغوی ورور نه وو او دا درې واړه ئې په دې ګمان باندې قتل کړل چې هغوی زمونږ ورور قتل کړې حال دا چې نه په دې باندې ګواهان موجود دی او نه هغوی خپله اقرار کړې دې. اوس د دې مقتولينو وارثان تپوس کوی چې مونږ د قصاص حق لرو يا نه؟ او علی خان او حياء خان وائی چې دا هلك زمونږ خطا کې قتل شوې دې او هغه دغه وخت د ميراجان سره په کټ کې ناست وو او په دې ميراجان باندې د قاتل کيدو الزام وو.

المستفتی: شيراجان ... پيښور ... ۲۷ نومبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** اگر دريں صورت ايں قاتلان ارادۀ قتل دشمنان کرده بودندليکن

---

(۱) قال العلامة الحصكفي رحمه الله: وموجبه أى موجب هذا النوع من الفعل وهو الخطاء ماجرى مجراه الكفارة والدية على العاقلة. (الدر المختار ۵/۳۷۷ كتاب الجنايات)

این کودک خطاء کشته شد -پس درین صورت دیت وخون بها لازم است (۱) واگر اراده قتل این کودک بودند باین خیال که این کودک برادر این دشمنان است پس بر قاتلش قصاص واجب است۔(۲) وهوالموفق

## د ولادت تعلق مسقط قصاص دي مسقط دیت او کفاره نه دي

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د شپې د اودهٔ کیدو په وخت ښځې او خاوند وړوکې ماشوم خپل مینځ کې څملولو، د خوب په حالت کې د یو د لاندې راتلو سره وفات شو، د شریعت په رڼا کې د کفارې څه حکم دي؟ بینواتوجروا

المستفتی: میان محمد رحمان ... خطیب جامع مسجد پاره چنار ۵ جون ۱۹۶۹ء

**الجواب:** د ولادت تعلق مسقط قصاص دي مسقط دیت او کفاره نه دي، لهذا په دواړو باندې به کفاره او دیت لازم وی. فی الدرالمختار: یجب القود بقتل کل محقون الدم علی التأبید عمدًا بشرط کون القاتل مکلفا و بشرط انتفاء الشبهة کولاد،(۳) وفیه أیضًا: وفی الواقعات شربت دواء لتسقطه عمدًا فإن ألقته حیاً فمات فعلیها الدیة والکفارة(۴) انتهی، وما فی الدر المختار فی باب موانع المیراث: والقتل الموجب للقود أو الکفارة وإن سقطا بحرمة الأبوة علی ما مر(۵) فهذا غلط من الکاتب لأن المار سقوط القود فقط۔ فافهم

---

۱) وفی الهدایة: وموجب ذلک الکفارة والدیة علی العاقلة لقوله تعالی ''فَتَحرِیرُ رَقَبَةٍ مُومِنَةٍ وَدِیَةٌ مُسَلَّمَةٌ الی أَهله۔(الهدایة ۴/۵۶۱ کتاب الجنایات)

۲) وفی الهندیة :وموجب ذلک المأثم والقود إلا أن یعفوا الأولیاء أویصالحوا ولا کفارة فیه عندنا۔ (فتاوی عالمگیریة ۶/۲ کتاب الجنایات ،الباب الأول فی تعریف الجنایة الخ)

۳) (الدر المختار ۵/۳۷۸ کتاب الجنایات ،فصل فیما یوجب القود و ما لا یوجبه )

۴) (الدر المختار ۵/۴۱۹ کتاب الجنایات ،فصل فی الجنین)

۵) (الدرالمختار ۵/۵۴۱ کتاب الفرائض ،موانع الإرث)

## د سرکاري ډيوټئ د وجې نه په عقل خرابيدلو سره د حکومت نه د ديت اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې د يو سرکاری کاريګر په صحت باندې، د سرکاری کار د زياتوالی له امله، مضر اثرات پريوتلې دی او دماغی بيماری هم ورته پيښه شوې ده کوم چې ميډيکل بورډ او د سرکاری محکمو ډاکټرانو هم منلې دې، او د وخت نه مخکښ د شپږ ديرشو کالو په عمر کې د ملازمت (مزدوری) نه راويستلې شوې دې، دماغی تکليف ورته د سرکاری ډيوټۍ د وجې نه راغلې دې، په شريعت مطهره کې د دې څه حکم دې، آيا په حکومت باندې به ديت وی يا نه؟ **بينواتوجروا**

**المستفتی:** حافظ انور خان...... ۲۲ رمضان المبارک ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کې په حکومت باندې نه قصاص واجب دې او نه ديت، **لعدم کونه قاتلا ولا قاطعا ولا سببا**. خو د حکومت دپاره ضروری ده چې د داسې معذورينو دپاره چې کله غريبانان وی د بيت المال نه نفقه مقرر کړی. (۱) **وهوالموفق**

## د اوده شوی ماشوم قتل په مور باندې نه ثابتيدلو کې احتياطا کفاره ادا کول غوره دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې که يوې زنانه د شپې د خوب د غلبې د وجې نه خپل بچې د خپل بدن د لاندې کړو او هغه ماشوم د دې نه مړ بيا موندل شو. آيا په هغې باندې کفاره لازم ده. دويمه خبره دا ده په بستره باندې سحر مور ماشوم مړ بيا موندلو، دا ماشوم لږ شان بيمار وو او هغه جامه چې په هغې باندې د ماشوم مخ پټ کړې شوې وو داسې

---

(۱) قال العلامة الحصكفي :و بقي رابع و هو لقطة و تركة بلا وارث ودية مقتول بلا ولى ومصرفها لقيط فقير وفقير بلاولى أى ليس له من تجب نفقة عليه ،قال فى البحر : يعطون منه نفقتهم وأدويتهم-(ردالمحتار مع الدرالمختار ۳/۳۰۸ قبيل باب المرتد)

معلومیده چې هغه جامه ماشوم خوله کې وهلې وه، کیدې شی هم د هغې په وجه باندې مړ شوې وی ځکه چې د رودلو نخښې هم پرې پرتې وې او په هغې باندې د قی لړ شان داغونه هم لګیدلې وو خو د ماشوم مور وائی چې ما دا هرګز د بدن لاندې کړې نه دې ځکه چې زه په کټ باندې داسې ملاسته وم ځکه چې زه اودۀ شوې وم د پاڅیدو په وخت ما د ویرې د وجې نه جامه نه ده لیدلې چې یقینا د هغه حلق ته تلې ده یا نه خو ماته یقینی معلوم دی چې زما د وجې نه دا نقصان نه دې شوې. **بینواتوجروا**

المستفتی: صالح شاه پیښور.... ۲۲ اپریل ۱۹۷۵ء

**الجواب:** چونکې په شهادت یا اقرار سره د مور قاتل کیدل ثابت نه دی لهذا په صورت مذکوره کې د مور وغیره کفاره به واجب نه وی، خو که احتیاطا مسلسل دوه میاشتې روژې ونیسی نو دابه غوره وی(۱) **وهوالموفق**

## په قتل خطاء کې د دیت په مقدار باندې مصالحت جائز دې

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی موټر سائیکل روان کړې وو یو موټر والا هغه وهلو سره زخمی کړو چې په هغې سره د موټر سائیکل والاځې ماتې شوې او شپږ ورځې پس په هسپتال کې وفات شو اوس موټر والا راضی نامه کول غواړی، خو د وفات شوی بچی او وارثان وائی چې آیا زمونږ دپاره د دې سړی نه څه اخستل جائز دی؟ که مونږ ترې څه نغدې اخستل غواړو نو آیا د هغې څه حد مقرر دې؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: حاجی امان الدین، پیر پیائی، نوښهر... ۲۴ دسمبر ۱۹۸۵ء

**الجواب:** په صورت مسئوله کې په مقدار دیت باندې صلح کول جائز دی لکه چې په قصاص کې په کم او زیات باندې جائز دې (۲) او د دیت مقدار د

---

۱) قال الدکتور وهبة الزحیلی: یجب علی القاضی أن یقضی بما ثبت عنده بطرق الإثبات الشرعیة وهی البینة والإقرار والیمین والنکول۔
(الفقه الإسلامی وأدلته ۸/۵۹۴۶، الباب الخامس: القضاء وطرق إثبات الحق)

۲) فی الهندیة: اذا اصطلح القاتل وأولیاء القتیل علی... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده

پنځوس روپۍ فی توله په حساب سره یو لاك یو څلوېښت زره پنځوس روپۍ چوړیږي. (۱) وهوالموفق

## د حاملې زنانه د وژلو په وجه باندې د مړ ماشوم په صورت کې د غره د وجوب مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی یوه حامله زنانه په ډنډا وغیره باندې ووهله، بیا د هغه زنانه نه د صحت مند کیدو نه پس مړ ماشوم پیدا شو او د عادت نه مخکښ هم پیدا شو. اوس د زنانه وارثان د وهونکی نه د غره مطالبه کولو کې په حقه دي یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولانا محمد سردار صاحب، مدرس عربیه. ټل .... ۶ مئی ۱۹۸۲ء

**الجواب:** د کلیاتو په بنیاد جواب دا دې چې که غالب ګمان دا وی چه دا مرګ د دې ضرب د وجې نه واقع شوي دي نو په دې کې غره واجب ده. (۲) والله الموفق

... بقیه ازحاشیه گذشته] مال سقط القصاص ووجب المال قليلاً كان أو كثيراً...ثمّ الصلح في فصل الخطا إن كان بعد القضاء بنوع من أنواع الدية أو بعد تر اضيهما على ذلك فإن وقع على النوع الذي وقع القضاء به أو وقع التراضي عليه وكان الصلح على أكثر من الدية لا يجوز وإن وقع على أقل مما وقع به القضاء فإنه يجوز نسيئة كان أو يداً بيد.
(فتاوى عالمگيرية ۶/۲۰، الباب السادس في الصلح والعفو، كتاب الجنايات)

۱) قال العلامة المرغيناني رحمه الله: والدية في الخطاء من العين ألف دينار ومن الورق عشرة آلاف درهم.
(الهداية ۴/۵۸۵ كتاب الديات)

۲) قال العلامة المرغيناني رحمه الله: إذا ضرب بطن امرأة فالقت جنيناً ميتاً ففيه غرة وهي نصف عشر الدية...وجه الاستحسان ماروى عن النبي ﷺ انه قال في الجنين غرة.
(الهداية ۴/۵۹۸ كتاب الديات)

## په کلي کښې د مقتول موندلې کیدو د وجې نه په اهل قریه باندې د قسامت او دیت حکم

**سوال:** ماذا یقول العلماء الکرام في المسئله الآتیة: إذا وجد رجل في القریة ولم یعلم قاتله فالدیة علی أهل القریة أم لا؟ وماذا حکم أهل القریة؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد جمال، دیر .... ١٢ ذو القعدة ١٣٩٧ھ

**الجواب:** حاکم به د دې کلي پنځوس عاقل او بالغ کسانو ته قسم ورکوی چې نه موږ دا قتل کړې دې او نه موږ ته قاتل معلوم دې پس که ټولو قسم وکړو نو په هغوی باندې به دیت لس زره شرعي روپۍ (٢٣ زره پاکستانۍ روپۍ) لازم وي. کنه نو قصاص به وي. هکذا في الهندیة.(١) وهو الموفق

## ولد الزنا ماشومې لره قتلولو باندې د قصاص او دیت حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړی د خپلې لور وادهٔ وکړو هلته یوه جینۍ پیدا شوه چې کله جینۍ پیدا شوه نو هغې ته د فارغ خطي کاغذ ملاؤ شو. هغې ښځې جینۍ او کالي ځان سره راوړل. هغه جینۍ کومه چې ئې د ځان سره راوړې وه هغه ځوانه شوه نو د هغې د غیر نه حمل راغلو کومه جینۍ چې پیدا شوې وه هغه ئې نیا او نیکهٔ (د مور د طرفه) پولیس سره یو ځای کیدو باندې ختمه کړه اوس د هغه د پاره څه حکم دې؟ او

---

(١) في الهندیة: إذا وجد قتیل في محلة قوم وادعی ولي القتیل علی جمیع أهل المحلة أنهم قتلوا ولیه عمداً أوخطاءً وانکر أهل المحلة فإنه یحلف خمسون رجلا منهم کل رجل بالله ماقتله ولاعلمت له قاتلاً ...فإن حلفواغرموا الدیة.

(فتاوی عالمگیریة ٦/٧٧، الباب الخامس عشر في القسامة)

وأیضاً فیها: الدیة من الورق عشرة آلاف.

(فتاوی عالمگیریة ٦/٢٤، الباب الثامن في الدیات)

د دې کلي پنځلس کسان د دې خبرې ګواهان دي؟

المستفتي: محمد حکیم راولپنډي ...٢٧ اګست ١٩٧٥ء

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت په دې جرم کې حصه اخستونکي ټول په تېره مجرمان دي، په هغوی باندې توبه ضروري ده او دا چې د الله پاک به معافي وغواړي (١) باقي قصاص په ظاهره کې معاف دې خو په دې قاتل باندې د دې جرمونې جینې وارثانو ته دیت (خون بها) ورکول ضروري دي که هغوی مطالبه کوي (ماخوذازشامي) (٢) وهوالموفق

---

١) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: واعلم أن قتل النفس بغير حق من أكبر الكبائر بعد الكفر بالله تعالى وتقبل التوبة منه۔
(رد المحتار ٥/٣٧٦ كتاب الجنايات)

٢) قال العلامة ابن عابدين رحمه الله تعالى: ولو اشترك رجلان في قتل إنسان أحد هما يجب عليه القصاص لوانفرد والآخر لايجب عليه القصاص كالأجنبي والأب والخاطئ والعامد أوأحدها بالسيف والآخر بالعصا فإنه لايجب عليه القصاص و يجب عليه الدية ... (قوله أي أصله) لما في الخانية: لو كان في ورثة المقتول ولد القاتل أوولد ولده وإن سفل بطل القصاص وتجب الدية۔
(ردالمحتار ٥/٣٨٠-٣٨١ كتاب الجنايات، فصل في ما يجب القود وما لايوجبه)

# کتاب المرتد

## د قادیانی د مسلمانیدو د پاره د مرزائیت نه براءت کول ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زه مسمی فلان بن فلانی سره د اهل وعیال د دې اعلان په ذریعه اقرار کوم چې د نن نه مخکښې زما مذهبی اړیکه د جماعت احمدیه لاهور سره وه. ما د علماء او خپل خاندان او محبین په وینا باندې دا فیصله وکړه چې د نن نه پس زما د جماعت احمدیه لاهور سره هیڅ قسم مذهبی تعلق نشته، او د مرزا غلام احمد قادیانی ټول تعلیمات او دعوات کوم چې غلط او ارتدادی دی، د قطع تعلق د ګواهانو او علماء صاحبانو په مخکښې اعلان کوم چې د نن نه وروستو زه تر مرګه پورې د حنفی العقیده اهل سنت والجماعت کیدو اقرار کوم او محمد رسول الله ﷺ لره خاتم النبیین او آخری نبی ګنم او د رسول الله ﷺ نه پس د یو تشریعی یا ظلی یا بروزی نبی قائل نه یم. آیا د دې سړی د پاره دا براءت کافی دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم ...... ۷ نومبر ۱۹۷۳ء

**الجواب:** د یو لاهوری مرزائی د مسلمانیدو د پاره دا اعلان او براءت کافی دې (۱) په دې شرط چې دا سړې مرزا غلام آنجهانی لره بزرګ او خادم اسلام ونه منی. **وهوالموفق**

## علانیه مرتد کیدونکی باندې علانیه توبه کول ضروری دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زما یو رشته دار د خپل ټول خاندان مخکښې ناڅاپه د یو نوې دین خبره وکړه، هغه وویل چې

(۱) قال العلامة الحصکفی رحمه الله: وإسلامه أن یتبرأ عن الأدیان سوی الإسلام أو عمّا انتقل إلیه بعد نطقه بالشّهادتین. (الدر المختار ۳/۳۱۳ باب المرتد)

د محمد ﷺ زمانه ختمه شوه او اوس نوې پیغمبر راتلونکې دې چې خلقو د هغه نه تپوس وکړو نوهغه ووئیل چې ما ستاسو دین یعنی دین اسلام پرېښودې دې او ما نوې دین قبول کړې دې. د دې نه پس هغه باقاعده د خپل دین په اشاعت کې مصروف وو، اوس نژدې وخت کې د خپل خوی سره د بیمارۍ نه پس مړ شو، د هغه د کور خلقو ووېل چې هغه دوه خله په دین اسلام کې داغلې وو. خو د دې خبرې اقرار هغه د خپلوانو مخکښې نه وو کړې، او په اخبار کې د هغه ځوی د هغه د دوباره مسلمانیدو بیان ورکړې وو، د خاندان خلق به د هغه کور ته نه تلل او دا به ئې ویل چې دا مرتد دې. سوال دا دې چې آیا د هغه توبه به قبلیږي یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: نامعلوم ......۲۰ اکتوبر ۹۰ء

**الجواب**: په دې مرتد باندې ضروری ده چې علانیه توبه وکړي (۱) ان سرًّا فسرًّا وان جهرًا فجهرٌ. بهر حال په خلقو باندې ضروری نه ده چې هغوی پته توبه ومنی. (۲) وهوالموفق

## د موره پیدا قادیانی او مرتد قادیانی کې فرق

**سوال**: څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د موره پیدا قادیانی او مرتد قادیانی یعنی کوم چې په خپله قادیانی شی په دوی کې څه فرق شته یا نه؟ **بینواتوجروا**

**المستفتی**: خلیل الرحمٰن، آدینه... صوابۍ... ۲۹ اګست ۷۴ء

**الجواب**: کوم سړي چې پخپله قادیانې شی د هغه حکم قتل دې، او کوم چې

---

۱) وفی الهندیة :وإسلامه أن یاتی بکلمة الشهادة ویتبرأ عن الأدیان کلّها سوی الإسلام وأن تبرأ عمّا انتقل إلیه.(فتاوی هندیة ۲/۲۵۳ الباب التاسع فی أحکام المرتدین)

۲) قال العلّامةابن عابدین :( قوله لإجراء الأحکام الدنیویة)...لا یخفی أن الإقرار لهذا الغرض لابدّ أن یکون علی وجه الإعلان والإظهار علی الإمام وغیره من أهل الإسلام بخلاف ما إذا کان لإتمام الإیمان فإنّه یکفی مجرد التکلّم وإن لّم یظهر علی غیره. (ردالمحتار ۳/۳۱۳ باب المرتد)

د پلار نیکه د تابعداری د وجې نه مرتد شی نو د هغه حکم قتل نه دې

(شامی: ۴۳۳) (۱) وهوالموفق

## په احمدی او لاهوری مرزائیانو کې فرق،
## او هغوی لره د کافر نه منونکی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د احمدی او لاهوری مرزائیانو مینځ کې څه فرق دې؟ او قادیانی لره د کافر نه منونکی څه حکم دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: خلیل الرحمٰن، اَدینه صوابئ، ۲۹ اگست ۷۳ء

**الجواب:** مرزا غلام احمد علیه ما علیه لره مجدد منونکی لاهوریان دی او نبی منونکی قادیانی احمدیان دی (۲) او دا دواړه ډلې د ضروریات دین د

---

(۱) قال العلامة الحصکفی: والولد الأوّل یجبر بالضّرب علی الإسلام وإن حبلت ثمّة لتبعیّته لابویه لاالثّانی لعدم تبعیّة الجدّ علی الظاهر فحکمه کحربیّ. (الدرالمختار)

و قال العلّامةابن عابدین: قوله والولد الأول یجبر بالضرب والحبس، نهر أی بخلاف أبویه فانّهما یجبران بالقتل ... (قوله فحکمه کحربیّ) فی أنّه یسترق و توضع علیه الجزیة أو یقتل و أما الجدّ فیقتل لامحالة لانّه المرتد بالإصالة أویسلم. (ردالمحتار مع الدرالمختار ۳/۳۳۵ باب المرتد، مطلب فی ردّة الصبی)

(۲) قال العلّامة المفتی محمود حسن الجنجوهی رحمه الله تعالی:

سوال: (۱) د قادیانی مذهب لاهوری، محمودی دواړه ډلې کافران دی او که یوه ډله؟
(۲) د مرزا صاحب دله ولې کافران شو؟

الجواب: حامداً و مصلیًا دومره خو تاسو هم پوهیږئ چه مرزا غلام احمد قادیانی نه کفر وتیلی شوی دی او دا تکفیر اهل حق دینداره علماؤ کړې دې، او دا هم تاسو ته معلومه ده چې فی الحال د قادیانانو دوه ډلې دی یوه ډله مرزا غلام احمد نبی منی، او دویمه ډله ئې مجدد او د ډیرې لوټې ډلې ولی منی ... [بقیه حاشیه بر صفحه آئنده]

انکار د وجې نه کافر دی (١) او هغوی نه کافر نه ویونکې هم کافر دې (٢)

**وهوالموفق**

## مرتد لره د قتل کونکی حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې اعلانیه مرتد کیدونکې که حکومت نه قتل کوی، بل یو سړې هغه لره قتل کړی نو قاتل ته به سزا ورکولې شی یا نه؟ **بینواتوجروا**

المستفتی: مولوی محمد ادریس، دار العلوم چار باغ سوات ... ۲۳ جمادی الاولی ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا قاتل به صرف په دنیا کې ماخوذ وی، لحدیث: من بدّل دینا فاقتلوه، رواه أحمد والبخاری (٣) وغیرهما (٤) وفی ردالمحتار ٣/٣٠٥: وأطلق

---

بقیه ازحاشیه گذشته ] (١) د دوا ړو ډلو یو حکم دې. (٢) د قطعیات او اجماعیاتو په وجه (فتاوی محمود یة ٢/١١٨ ما یتعلّق بالقادیانیّة)

١) وفی مجمع الانهر : وأمّا الإیمان بسیّدنا محمّد ﷺ فیجب بأنّه رسولنا فی الحال وخاتم الأنبیاء والرّسل، فإذا آمن بأنّه رسول ولم یؤمن بأنّه خاتم الانبیاء لایکون مؤمنًا، وفی فصول العمادیة من لم یقرّ ببعض الا نبیاء بشیی اولم یرض بسنّة من سنن المرسلین علیهم السّلام فقد کفر. (مجمع الانهر ٢/٥٠٦ باب المرتد، ثمّ إنّ ألفاظ الکفر أنواع)

٢) وفی المرقاة : إذا رأی منکراً معلوماً من الدّین بالضّرورة فلم ینکره و لم یکرهه و رضی به واستحسنه کان کافراً. (مرقاة المفاتیح : ٩/٣١٨ باب الامر بالمعروف)

وقال العلّامة الکشمیری : څوک چې مرزا غلام احمد د څه تنک شبهې نه بغیر کافر نه منی هغه هم کافر دې، ددې وجوهات دا دی بل څای فرمائی مرزا غلام احمد قادیانی او دهغه منونکی ټول مرزایان کافر دی (اکفار الملحدین ١٦٢، ٦١)

٣) (صحیح البخاری ٢٩١، کتاب الجهاد، باب لا یعذب بعذاب الله تعالی)

٤) (بلوغ المرام من أدلة الاحکام ٣٠٠ رقم ١٢٠٠)

فشمل الإمام وغيره لكن إن قتله غيره بلا إذن الإمام أدبه الإمام(١) انتهى-و هوالموفق

## كافر سره د نکاح په صورت کې ارتداد او د ثبوت نسب مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې که يوه مسلمانه زنانه د کافر سره نکاح وکړي نو آيا په دې سره هغه مرتده شوه يا نه؟ او په دې نکاح سره پيدا شوی بچی به د چا نه ثابت النسب وی؟ او بچی به مسلمانان شمارلې شی يا نه؟ **بينواتوجروا**

المستفتی: نامعلوم ...٢٩ محرم الحرام ...١٤٠١ھ

**الجواب:** که دا مسلمانه دا اقدام جائز ګنی نو د اسلام نه خارجه ده. (كتاب المرتد،هندية) (٢) وشامی (٣) او په نورو صورتونو کې د اسلام نه خارج نه دې، او دا ماشومان د پلار نه ثابت النسب نه دی صرف د پلار نه ثابت النسب دی (ردالمحتار٢: ٤٨٢) (٤) او د بلوغ نه مخکښ به مسلمانان

---

١) (رد المحتار ٣/٣١٣ باب المرتد)

و قال العلّامة ابن نجيم :أطلقه فشمل قتل الإمام وغيره لكن إن قتله غيره أوقطع عضوا منه بغير إذن الإمام أدبه الإمام كما فى شرح الطحاوى. (البحر الرائق ٥/١٢٩،باب أحكام المرتدين)

٢) و فى الهندية :من اعتقد الحرام حلالًا أوعلى القلب يكفر ...هذا إذا كان حرامًا لعينه. (فتاوى هندية ٢/٢٧٢،الباب التاسع فى أحكام المرتدين،منها ما يتعلق بالحلال والحرام)

٣) قال العلامة ابن عابدين :والأصل أن من اعتقد الحرام حلالًا فإن كان حرامًا لغيره كمال الغير لا يكفر وإن كان لعينه فإن كان دليله قطعيًا كفر وإلّا فلا. (ردالمحتار ٣/٣١١ باب المرتد،مطلب فى منكر الإجماع)

٤) قال العلامة الحصكفى :و فى مجمع الفتاوى :نكح...[بقيه حاشيه بر صفحه آئنده

شمارلې شي. (۱) وهوالموفق

## د مرتد توبه قبوله ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زمونږ په محله کې یو سړې د درې څلورو کالو نه مرزائي دې او ربوه ته څې راځي، تیره شپه هغه مسلمان شو لهذا استدعا ده چې د مرتد سړی دپاره خو په شریعت کې درې ورځې مهلت دې نو آیا د هغه توبه به صحیح وي؟ **بینوا توجروا**

**المستفتي:** حاجی صاحب گل، بازار شهیدان، هوتی مردان ۶ جمادی الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** چې حاکم یو مرتد ته درې ورځې مهلت نه ورکوي او هغه لره نه قتل کوي نو دا نه لازمیږي چې د مرتد توبه دې نه قبلیږي. (۲) **وهوالموفق**

## د قادیانیت قبلونکې مرتدې زنانه حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یوه زنانه مسلمانه وه، اوس هغه قادیانۍ شوې ده، د هغې دپاره د شریعت په رڼا کې څه

---

... بقیه ازحاشیه گذشته] کافر مسلمة فولدت منه لا یثبت النسب منه ولا تجب العدة لأنّه نکاح باطل-(در مختار)

و قال العلامة ابن عابدین :(قوله لأنّه نکاح باطل)أی فالوطی فیه زنا لا یثبت به النسب-(ردالمحتار ۲/۶۸۷، قبیل باب الحضانة)

۱) قال العلامة ابن عابدین :والولد یتبع خیرالأبوین دیناً ... و یستوی فیما قلنا أن یکون عاقلاً أو غیرعاقل لأنّه قبل البلوغ تبع لأبویه فی الدّین-

(ردالمحتار ۲/۴۲۷ باب نکاح الکافر)

۲) قال العلّامة الحصکفی :کل مسلم ارتدّ فتوبته مقبولة-

(الدرالمختار ۳/۳۱۷ باب المرتد)

حکم دي؟ بینوا توجروا

المستفتی: نذیر احمد گجرات......۲۲ نومبر ۸۴ء

**الجواب:** د حکومت دپاره ضروری ده چې دا ښځه جیل ته ولیږی تردې چې دوباره مسلمانه شی یا په جیل کې مړه شی. (۱) او په ارتداد باندې د اصرار په صورت کې جینۍ وارثه نه شی کیدې. (۲) وهوالموفق

## د عیسائیت قبلونکی مرتدې زنانه حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د یوې جینۍ مور پلار او نیکونه مسلمانان راروان وو او هغه خپله هم د مسلمانې زنانه په تربیت کې وه او د بلوغ نه پس عیسائی شوه اوس هغې سره څه کول پکار دی؟ او حال دا چې مسلمانان مور پلار ئې د خاندان د بې عزتۍ سره سره د مذهب پریښودل لعنت، بې حد بد او د شرم مقام گڼی، دا اقدام ئې د څو لوفرو کسانو په اشاره باندې کړې دې بینوا توجروا

المستفتی: قاضی محمد سلطان... ایف ٦ اسلام آباد... ٦ شوال ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** په شرط د صدق او ثبوت دا جینۍ به مرتد کیدو سره تر مرگه پورې په جیل کې بندولې شی. (۳) او هغه اشاره کونکو ته به سخته سزا ورکولې شی. (۴) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة المرغینانی :وأمّا المرتدّة فلا تقتل ولکن تحبس حتّی تسلم. (الهدایة ۲/٦۰۰ باب أحکام المرتدین)

۲) و قال العلّامة السجاوندی :و أمّاالمرتد فلا یرث من أحد، لا من مسلم ولا من مرتد مثله وکذلک المرتدة.(السراجی ۵۹ فصل فی المرتد)

۳) وفی الاختیار :والمرتدة لا تقبل و تحبس و تضرب فی کلّ الأیام حتی تسلم. (الاختیار لتعلیل المختار ۴/۱۸۳: فصل أحکام المرتد عن الإسلام)

۴) و فی التاتارخانیة :و إنّما یجب التعزیر بأن یرتکب منکراً لیس فیه حد مقدر شرعاً. (فتاوی تاتارخانیة ۵/۹۹ کتاب الحدود ،الفصل الثامن فی التعزیر)

## د مرتد قاتل میراث او د مسلمانیدو نه پس د امیر المجاهدین هغه لره معاف کول

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې ۱ دهری که په خپل حالت باندې مړ شو، یا قتل شو، یا فرار کیدو سره د اهل حرب د حکومت سره متصل شو، د دهری حکومت یو فرد جوړ شو د هغه میراث به د شریعت په رڼا کې څنګه او په کومو خلقو باندې تقسیمولې شی؟

۲ که دهری په حالت کفر کې قتل یا جرح کړې دې او داعی الی الفساد دې نو دې دهری ته به د امراء المجاهدین د طرف نه معافی کول صحیح وی یا نه؟

۳: که دهری د کفر په حالت کې د جنګ دوران یا بغیر د جنګ نه نۀ قتل کړې دې او نه جرح او نه داعی الی الفساد دې نو دې دهری لره د امراء المجاهدین معاف کول صحیح دی یا نه؟ **بینوا توجروا**

**المستفتی:** مولانا عبدالحلیم، پیښور ... ۸ مئی ۱۹۹۰ء

**الجواب:** ۱: که دا مرتد په دار الاسلام کې وی نو د مرګ یا د قتل په وخت چې کوم وارثان وی په هغوی باندې به د هغوی مال تقسیمیږی، او که دار الحرب ته لاړو نو د الحاق د وخت اعتبار به کولې شی (ردالمحتار۴: ۲۴۷) (۱) ۲، ۳: د مسلمانیدو نه پس د حقوق العباد مواخذه باقی ده او ارباب الحقوق هر وخت د معاف کولو اختیار لری. (۲)

---

۱) قال العلّامة ابن عابدين: (قوله ورث كسب إسلامه وارثه المسلم) أشار إلى أن المعتبر وجود الوارث عند الموت أوالقتل أو الحكم باللّحاق وهو رواية محمّد عن الإمام وهو الأصح. (ردالمحتار ۴/۳۲۸ باب المرتد)

۲) قال العلامة الحصكفى: (مسلم أصاب مالًا أو شيئًا يجب به القصاص أوحدّ السرقة) يعنى المال المسروق لا الحدّ، خانية وأصله أنّه يؤاخذ بحق العبد وأمّا غيره ففيه التفصيل (اوالدية ثم ارتدّ أوأصابه وهومرتدّ فى دارالإسلام ثمّ لحق ... ثمّ جاء مسلمًا يؤاخذ به كلّه. (الدرالمختار على هامش الطحطاوى ۲/۴۸۹ باب المرتد)

**نوټ** : واضحه دې وی چې څنګه په پاکستان کې د جمعیة العلماء مخالفین، نیشنل، مسلم لیګ، پیپل وغیره (کوم چې اسلامی نظام نه غواړی) کې ځینې مسلمان او بعض مرتد هم دی ټول کافر نه دی، هم دغه شان په افغانستان کې هم د مخالفینو هم دا حکم دې وهوالموفق

**د مرتد د لمسو (که د خوی نه وی او که د لور نه) هدیه اخستل صحیح دی**

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې زید د پلار نیکهٔ د وخت نه د مرزائیت عقیده ساتی، مرزا نبی منی دا سړې په خپله رضا بغیر د جبر او اکراه نه په یو دینی اداره کې تعاون کوی او د هغه تعاون کله د غلې په صورت کې وی، سوال دا دې چې د مذکوره سړی د تعاون د جواز او عدم جواز، د حلت او حرمت په اعتبار سره څه حیثیت لری؟ که جائز او حلال وی نو څو کسان مثلا طلباء، غریبانانو او مسافرو سره تعلق ساتلې شی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: در محمد، ضلع نواب شاه، پشین کوټ لالو، ٦ جون ٨٠ء

**الجواب:** د مرتد په لمسو باندې د ارتداد احکام نه جاری کیږی لهذا د هغوی عطیه او هدیه اخستل صحیح دی خو خواص لره د دې د قبلولو نه ځان ساتل ضروری ده چې مداهنت او ذلت نه بچ شی، او عوام به په فتنه کې نه پریوځی. يدلّ عليه ما فی الدرالمختار: والولد الأوّل يجبر بالضرب على الإسلام لا الثّانی لعدم تبعيّة الجدّ على الظّاهر فحكمه كحربی(١) انتهی۔

وقال الله تعالى (وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ)(٢) فيكون المداهنة و مقدماتها حرامًا فقط۔ وهوالموفق

---

١) الدرالمختار ٣/٣٣٥ باب المرتد، مطلب فی ردّة الصبی)

٢) (سورة القلم آيت ٩ پاره ٢٩)

## موجوده قادیانی، د حربیانو په حکم کې دی

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې نن سبا حکمران، قادیانی نه قتل کوی، نو بیا به د دې قادیانو څه حکم وی، خپل مینځ کې به میراث اخلی یا نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: خلیل الرحمن انور، ادینه، ضلع صوابی ۲۹ اګست ۷۳ء

**الجواب:** چې کله بې دینه حکام د دې قادیانو د قتل نه مدافعت کوی نو په هغوی باندې به د حربیانو په شان احکام جاری کولې شی، کما یشیر الیه استثناء السراجیة فی بحث المرتد. (۱) وهوالموفق

## د افغان حکومت په خدمت سره د ارتداد حکم

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې یو سړې افغانستان ته لاړو او د افغان حکومت هر قسم خدمت کوی، اوس هغه وائی چې زه د افغانستان نه وځم او اسلام قبلوم نو د هغه د راوړلو دپاره به څه شرطونه وی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد سردار وزیرستانی، متعلم حقانیه... ۲۲ ذی القعده ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که دا سړې د دار اسلام نه خارج شوې وی، نو توبه په توبې او تجدید ایمان سره په اسلام کې داخل شمارولې شی. (۲) وهوالموفق

---

۱) قال العلّامة السجاوندی: و أمّا المرتدّ فلا یرث من أحدٍ لا من مسلم و لا من مرتدّ مثله وکذلک المرتدة إلّا إذا ارتدّ أهل ناحیة بأجمعهم، فحینئذٍ یتوارثون.
(السراجی ۵۹ فصل فی المرتد)

۲) قال العلامة الحصکفی: و إسلامه أن یتبرأ عن الأدیان سوی الإسلام أو عمّا انتقل إلیه بعد نطقه بالشّهادتین.
(الدرالمختار ۳/۳۱۳ مطلب فی أنّ الکفّار خمسة أصناف، باب المرتد)

## د زنديق تعريف او د هغه د توبې د قبلولو مسئله

**سوال:** څه فرمائی علماء دين د دې مسئلې په باره کې چې ۱: زنديق لفظ عربی دې يا عجمی، او د دې مصداق کوم خلق دی؟

۲: د زنديق توبه د گرفتارئ نه مخکښ يا وروستو د گرفتارئ قبليږی يا نه؟ بينواتوجروا

**الجواب:** ۱، ۲: زنديق عربی لفظ دې او زنديق هغه کافر ته وائی کوم چې خپل کفر په پټو تاويلاتو سره پټ ساتی، نه په اقرار لسانی سره مثلا وائی چې د رسول الله ﷺ د خاتم النبيين کيدو دا مطلب نه دې چې د هغه نه پس به بل نبی نه راځی بلکه مراد دا دې او د پيغمبرانو زينت دې، كما صرح به الشاه أنورشاه رحمه الله تعالى (۱) ويشير إليه ما فى ردالمحتار ۴/۲۴۲ مطبع حلبى: فإنّ الزنديق من يموّه كفره ويروّج عقيدته الفاسدة ويخرجها فى الصورة الصحيحة، وهذا معنى إبطان الكفر (۲) او د زنديق توبه قبوله ده د گرفتارئ نه مخکښ، نه وروستو د گرفتارئ نه، كما فى الصفحة المذكورة. (۳) وهوالموفق

---

۱) قال العلامة الكشميرى: او كه چيرې د نبی ﷺ د نبوت اقرار او د اسلامی شعائرو د اظهار كولو باوجود داسې عقيدې لری چه هغه متفقه طور باندې كفر دې ددې خاص نوم "زنديق" دې.

(اكفار الملحدين ٦٥ زنديق، ملحدين اور باطنيه كى تعريف)

۲) (ردالمحتار ۳/۳۲۴ باب المرتد، مطلب فى الفرق بين الزنديق والمنافق)

۳) قال العلامة ابن عابدين: ثم بيّن حكم الزنديق فقال: اعلم أنّه لايخلوا إمّا أن يكون معروفاً داعياً إلى الضلال أولا... والأوّل أى المعروف الداعى لايخلوا من أن يتوب بالاختيار ويرجع عمّا فيه قبل أن يؤخذ أولا، والثانى يقتل دون الأوّل.

(ردالمحتار ۳/۳۲۴ باب المرتد، مطلب فى الفرق بين الزنديق والمنافق)

## د زندیق وژل د حکومت ذمه داری ده

**سوال:** څه فرمائی علماء دین د دې مسئلې په باره کې چې د پیر مبارک شاه گنده عقائد، سحر او عملیات د چا نه پټ نه دی، هغه اول د ولی کیدو دعوی وکړه د هغې نه پس ئې د غوثیت، د هغې نه پس ئې خپلو مریدانو ته د عورت غلیظه د ښکاره کولو دپاره وویل، په هغوی باندې ئې جامې ویستلې او هغوی ته ئې وویل چې په دې جامو کې تاسو گناهونه کړی دی په دې وجه دا اوباسئ او دا خیال مه کوئ چې مونږ منکشف العورة یو بلکه د دې په عوض کې به تاسو ته جنتی جوړې ملاویږی او وائی چې سیدنا آدم علیه السلام هم جامې ویستلې وې او انسان چې کله پیدا کیږی نو حفاة وعراة پیدا کیږی او د قبر نه پاڅیدو سره به هم مونږ حفاة عراة یو تاسو د خپل مور او پلار په نقش قدم باندې لاړ شئ او خپلو مریدانو ته ئې وویل چې ما الله پاك لیدلې دې او ما د هغه نه پوښتنه وکړه چې ماته زما امت راکړه، اوس به زما د تعیین سزا په باره کې تپوس کوم، څو ورځې پس ئې وویل چې په دې رسئ سره به هغوی پاکیږی، دا به په سټ کې لگوی او هلته یو قسم مرداري اوبه وې هغې ته ئې د آب زمزم نوم کیښودلو، په هغه اوبو کې به ډوبولې شی، د دې نه پس به وهلې شی، د هغې نه پس به وژلې شی او پیر ته به سجده کوی. د دې نه پس به ورته زیرې ورکولې شی چې جنت دې مبارك شه. او خپلو مریدانو ته ئې وویل چې څوك زما د غوثیت نه انکار کوی هغه کافر دې او د هغه نفس او مال او عزت هر څه به جائز او حلال وی. د دې نه پس ئې وویل چې زه د الله په غیږ کې یم او زه چې څۀ وایم هغه پرې عالم دې او زه د الله سره ولاړ یم او هغه زما نه څلور کوټې لوړ وو، والعیاذ بالله، دا قسم ډیر افعال ئې کړې دی تردې چې زنا او لواطت ثواب گنې او د نبوت دعوی کوی. د دې بدو عقائدو د وجې نه علماء په هغه باندې د کفر فتوی ورکولو سره هغه مردار کړو. اوس ځینې داسې خلق پیدا شوې دی چې دې مرگ ته شهادت وائی، لهذا تاسو مهربانی کولو سره د دې متعلق دلائل ولیکئ.

**المستفتی:** محمد منصور، شمالی وزیرستان .... ۱۰ جون ۱۹۷۵ء

**الجواب:** محترم المقام مولوی محمد منصور صاحب ادام الله نصرته!
السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! اما بعد! پس واضحه دې وي چې دعا
کونکې په خیریت سره دې، امید دې چې تاسو به هم په خیریت سره یئ، الله
کریم دې تاسو په خیر او عافیت سره ساتی او د شرور او فتنو نه دې تاسو
محفوظ وساتی او د فتنو د بندولو توفیق دې درکړی. دا پیر ستاسو د بیان او
د نورو راتلونکو د بیاناتو مطابق کبیره ګناهونو لره حلالونکې وو لأنّ کشف
العورة عند حضرة النّاس فسق، کما صرّح به فی ردالمحتار (١) وغیره (٢) نیز
زندیق تها، لأنّ الزندیق من یبطن الکفر بحیث یموّه کفره ویروّج عقیدته
الفاسدة ویخرجها فی الصّورة الصّحیحة أی بالاستدلال، فلیراجع إلی ردالمحتار باب
المرتد (٣) بلکې مدعی نبوت وو لهذا د هغه قتل به د شریعت خلاف نه
شمارل کیږی، خو قتلول ئې د شعری پولیتیکل وغیره ذمه ده (٤) او عوام هم
هغه ته د ګناه ورکولو په وخت د تعزیر ورکولو مجاز وی. کما صرح به فی
تعزیر الهندیة (٥) خو توبه کوونکې او د ذهن صحیح توازن نه لرونکې د دې
حکم نه مستثنی دې وهوالموفق.

---

(١) قال العلامة ابن عابدین: والرابع ستر عورته ووجوبه عام أی فی الخلوة وخارجها (قوله وفی الخلوة أی إذ کان خارج الصلوة یجب الستر بحضرة النّاس إجماعاً، وفی الخلوة علی الصحیح... ثم إنّ الظّاهر أن المراد بما یجب ستره فی الخلوة خارج الصلوة هو مابین السرة والرکبة فقط. (ردالمحتار ١/٢٩٧ باب شروط الصلوة، مطلب فی ستر العورة)

(٢) قال العلامة ابن نجیم: واعلم أنّ ستر العورة خارج الصلوة بحضرة النّاس واجب إجماعاً إلّا فی مواضع، وفی الخلوة فیه خلاف والصحیح الوجوب إذا لم یکن الانکشاف لغرض صحیح. (البحر الرائق ١/٢٦٩ باب شروط الصلوة)

(٣) ردالمحتار ٣/٣٢٤ باب المرتد، مطلب فی الفرق بین الزندیق والمنافق)

(٤) قال العلّامة أبوالحسن علی بن الحسین السغدی: فإن ارتدّ الرجل عن الإسلام استتابه الإمام فإن تاب وإلّا قتل... فإن لم یستتبه وقتله أوقتله رجل غیر الإمام فلا شیئ علیه فی ذلک لأنه حلال الدم. (النتف فی الفتاوی ٤٢٤ کتاب المرتد)

(٥) وفی الهندیة: قالوا لکل مسلم إقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة وأمّا بعد المباشرة فلیس ذلک لغیر الحاکم. (فتاوی عالمگیریة ٢/١٦٧ فصل فی التعزیر)

تمت